# انسان او دیوتا

لیکوال نسیم حجازي

ژباړن محمد زبیر شفیقي





# انسان او دیوتا

لیکوال: نسیم حجازي

ژباړن: محمد زبیر شفیقي





مؤسسه انتشارات الازهر



## د کتاب مشخصات:

# ◈ انسان او دیوتا

(د... تاریخي او فلسفي نړاول)

◈ لیکوال: س... سم حجازي

◈ ژباړن: محمد زبیر شفیقي

◈ دچاپ شمیر: زر ټوکه

◈ چاپ: لومړی/۱۳۸۲ غويي

◈ کمپوز: سید سلیمان هاشمي




◈ دیزاین: علي جان سلطاني

◈ ټایټل ډیزاین: صمیمي

◈ نشر او طبع: الازهر خپرندویه مؤسسه

ډهکي نعلبندي، قصه خواني،

پوست بکس۴٦۳، پیښور ـ پاکستان

# اهدا



هغوي ته چې دکایناتو پر رب "ج" ایمان لري ، او له دین څخه ددنیا دسمون شعارنه جوړوي.

"شفيقي"

# دژباړن یادښت

دا دی د ستر لیکوال مرحوم نسیم حجازی یو بل شهکار اثر په پښتو ژبه په کتابی بڼه ستاسو مخی ته وړدم، زه بیا هم د ستر پروردگار شکر ادا کوم چی ما ته یی بیا هم دا ویاړ راولوراوه.

نه غواړم په دی گډو وډو کړښو درانه لوستونکی ستومانه او د «انسان او دیوتا» ځانګړه فلسفی تاول له لوستلو لری وساتم، یوازی د داستان پر نامه څو کرښی لازمی بولم. «انسان او دیوتا» د اردو ژبی «انسان اور دیوتا» پښتو نوم اینښود ل شوی دی. په اردو قاموسونو کی چی د دیوتا کومی معنی گانی راغلی دی، هغه «دخدای استاځی، پیغمبر او یا دخدای نماینده» دی، چی په پښتو کې دا تولی د پیغمبر په معنی دی چی دخدای د سپیڅلو پیغمبرانو لپاره کارېږی. په داسی حال کی چی دیوتا اصلاً د هندی بی شمیره خدایانو په نامه چی کوم بوتان جوړ شوی دی هغو ته ویلی شی، مثلاً د مینی دخدای دیوتا، داور دخدای دیوتا او ....

دیوتا په هندی مذهب او کلتور کی چی څومره دخدایانو شمیر زیات دی،

بالاخره می همغه نوم راوړی دی، دمرحوم نسیم حجازی په بڼکلی قلم لیکل شوی دغه ناول دهندی تولنې د ير مهم اړخ ونه ښيي، تر تولو مهمه دا چې څه ډول ځینو چالاکو انسانانو دمذهب په نامه نور انسانان ښکیل او ترستم لاندی ساتلی دی؟ دا یوازی دپرون او یا یوازی دهندی کلتور خبره نه ده، دانسانی ژوند له پیله تر ننه همدغه نړی ده او انسان دی، همدغه یې خصلت دی، دنن او پرون ترمنځ هم په دی انسانی خصلتونو کی هیڅ توپیر نه دی راغلی، درانه لوستونکی چې داستان تر پایه ولولی، په خپل چاپیریال او اوسنی نړی کی به ډیر کرکترونه دداستان له کرکترونو سره یو شان ووینی، ددغه داستان یو ښکلی تکی همدغه دی چې دروغ ضمیر خاوندان تل، دگردلو او پیښو په تل کی خپل لازواله واکمن او پالونکی پیژنی او دهغه لوری ته پناه وروړی. په پای کی لازمه بولم یو ځل بیا دهغو تولو درنو ښاغلیو ته «چې دلته یې دتولو نومونه راوړل گران دی» دزړه له کومی مننه وکړم چې زه یې ددغو ناولونو دژباړی، دوام او خپراوی ته هڅولی یم. همدغسی ددرنو ورونو سید سلیمان «هاشمی» او علیجان «سلطانی» څخه مننه کوم چې ددی کتاب دکمپوز زحمت یې گاللی دی. د( **الازهر** ) له درنو مسؤولینو څخه مننه کوم چې «انسان او دیوتا» یې په ښکلی بڼه دلوستونکیو تر لاسونو ورساوه.

په درنښت

محمدزبیر «شفیقی»

الفاروق پلازه، دسمار مرڅیالی دفتر

بسم تعالی

# د دیوتاکانو سپاهی

دساون ورځ وه، بیاس سیند په ډیر پوره شان اودبدبه بهیده، پرځنډه یې ځوکښتیو چې په لويو دبرو پوري په پړيو تړلې وې داوبوله ځپو سره ټالونه خوړل. ځوتنه ماشومان چې هلته ولاړوو پخپل منځ کې په روغبړ بوختوو.

یوه بوډا ماڼوپرخپل تندی لاسونه کېښودل او بلې غاړې ته یې په ځیر ځیر وکتل بیایې یوه زلمي ته چې له جاموڅخه پوځي معلومیده مخ راواړاوه اوويې ويل:

ربښتيا يا داره! ستاباوردی چې هغه به نن خامخا راځي.

ځوان ځواب ورکړ: هغه به راروان شوی وي.

- نو آیا همدانن هغه باید له سینده راپوري وزي او يوې دوه ورځې به داوبو دکمیدو انتظار ونکړي؟

- هیڅکله هم نه، دیوځ سالارله تولو اک سره وعده کړې ده چې په

- مګر باداره تاسو هغه خامخا پوه کړی په داسی توپان کی کښتی په سیند کی اچول خطرلری.

- ته لکه چی لوی سالار سکدیو، نه پیژنی، هغه په خپله خبره کلک ولاړ دی.

مانو وپوښتل:

دهغه لامبو زده ده؟

- دچا؟

- دپوغ دلوی سالار صاحب!

- له دی نه دی مطلب څه دی؟

- باداره! که دهغه لامبو زده نه وی نو په کښتی کی بی له سپریدونه ایسارکړی، دلویو خلکو ژوند ډیر ارځښتمن وی.

زلمی و موسکل او ویی ویل:

ته غم مه کوه، دهغه لامبو زده ده، که یی زده هم نه وی په دی پوهیږی چی له مانو ګانو څخه کار واخلی.

- باداره! په دغه برخه کی له سینده په تیریدو کی که کښتی واوښتی بیا به مورږ ملامت نه یو، مورږ په دی لاره بلد نه یو، پوری غاړه د لوړو کمرونو ترمنځ لاره ډیره تنګه ښکاری.

که مورږ ته له خپل ګودر څخه دپوری وتلو امر شوی وای مورږ به ډیرو او بو پرواهم نه کوله دلته مو دکښتیو په راوستلو څلور ورځی ولګیدی،

سینده پوری وتلی وای څه به شوی وو ؟

بوډا مانو چی دغه خبری وکړی دزلمی دځواب په انتظارشو خو هغه په بی پروایی دسیند پوری غاړی ته کتل او مانو داجرئت ونکړای شو چی خپله خبره بیا تکرار کړی.

دزلمی نوم رام داس ؤ، دهغه عمر که څه هم ۲٤ کالو ته نژدی ؤ خو د بنی اوځوانی له تازه گی نه ۱۸ کلن زلمی ښکاریدو، دهغه په مخ کی دپوځی هیبت د کـرښـو پرځـای یو ډول جـدیت اوشـرافت ځلیـده چی پر لیدونکی به یی په همغه لومړی نظر دمینی، اعتماد اوباور اغیز ښینده، دهغه پر شونډوتل موسکا غوړیدلی وه.

لږ ځنډ وروسته رام داس بوډا مانو ته مخ را واړاوداوویی ویل!

ته هیڅکله هم په دی برخه کی له سینده نه یی پوری وتلی؟

مانو ځواب ورکړ:

یاداره زموږ پلار اونیکه هم کله له دی ځایه پر کښتی دتیریدو جرئت نه دی کـړی، اوریدلی می دی چی دراجـه گوبند رام دپوځ سـالار پر هغـو خلکو دیخنی په موسم کی حمله کړی وه خو هغوی ډیری کښتی دکمرو نو لـه سره ډډبرو په رغړولو ډوبی کړی وی، دپوځ سـالار صـیب هغـو خلکو ته دسزا ورکولو لپاره یوه میاشت په غرونو کی سرگردان ؤ، بالاخره یی پنځه تنه ښځی ، دوه بوډاگان چی یو پکی ړوند ؤ اودری ماشومان بندیان بوتلل.

رام داس وویل: له همدی امله منوږ دگرمی په موسم کی له سینده

رام داس وخندل ځواب یې ورکړ:

په یخنۍ کې دسیند اوبه ښکته کیږي اوهغه خلک زموږ دحملو خطر احساسوي بیداریږي ، خو په ګرمۍ کې دوی فکر کوي چې له سینده پورې وتل امکان نه لري اوډاډه کیږي.

رام داس داوویل اوبیا دسیند پرغاړه په یوه ډبره کیناست، ناڅا په په پورې غاړه دغونډیو له شانه توري لوخړې اوچتې اود سترګو په رپ کې پراسمان خورې شوې.

د برسات دنمجن موسم څو ځپې را غلې اوداباران سپک څاڅکي را پریوتل، لږ ځنډ وروسته توري وریښیدي، وریځې وغړمبیدي اوشرکند باران پیل شو.

بوډا مانو وړاندې ورغی اوځوان ته یې وویل:

باداره! ځپرې ته راشي.

رام داس له بوډا سره روان شو.

څو ګامه وړاندې د درګو دځپرې ترڅنګ یو سپین آس تړلی ؤ. بوډا مانو په بیړه خپل څادر را واخیست اوپر اس یې واچاوه، خو رام داس وویل چې خپل څادر دې لرې کړه دایې له لمدیدو نشي ژغورلی.

مانو دخپل اخلاص پرثابتولو ټینګار کاوه خود شمال یوې توندې ځپې څادر د آس له شاڅخه لس ګامه لرې وغورځاوه.

بوډا مانو په خپل څادر پسې منډه واخیسته اورام داس په خندا

ی را غلل، هغوی را غلل، دیا چا یوځ را غی!!!

هغه ... و مانو گان راووتل اوله څپری نه بهر باران ته ودریدل، رام داس ... وځ سالار په یوه مشکی شکلی آس سپور ؤ اوتر څلور سکدیو دپاچا د ... ځ په دوو کتاروکی پر هغه پسی راروان ؤ، چی سوه تنو پوری پلی پ ... نواس ودراوه، بوډا مانو ور وړاندی شو داس څپری ته را نژدی شو سکد ... شو رام داس ور وړاندی شو درناوی یی جلب یی ونیو، هغه د آس نه پلی پرځای کړ.

سکدیو وپوښتل:

کښتی رارسیدلی دی؟

رام داس ځواب ورکړ! هوصیب

- څومره دی؟

- اووه دانی مگر یوه یی لږ ماته شوی ده.

- دمانو گانو مشر کوم یو دی؟

بوډا مانو په بیړه د آس قیضه بل ته ورکړه او ورمخکی شو لاس په نامه ودریدو یی ویل: صیب امرکوئ!

- په یوه پیره کی څو مره کسان پوری ایستلی شی؟

- باداره! په یوه کښتی کی څلویښت کسان تلای شی خو...

- خو څه؟

- باداره! باران څو پخپله وینی، الږ وړاندی دسیند گرندی څپی هم

وكي ګودر دي چي اوس دباران په سبب ليدل کيږي هم نه ، که زمونږ کښتي هلته ورسيدي نو ښه تر ښه که نه ښکته بيا تر ډيره لوي لوي کمرونه دديوال په څير دريدلي دي، چي دکښتي درولولپاره هيڅ ځاى نه لري. تاسو دبوډا خبره ومني يو دوى ورځي تم شي، که نن باران ودريد نو تربل سبا بوري به اوبه ښکته شي.

سکديو وويل:

تربل سبا پوري! زه دومره انتظار نشم کولى.

زه بايد همدا نن له سينده پوري وزم.

– باداره! ستا امر سر په ستر ګو، خو خطر ډيردى. که تاسو خپله خوښه پوره کوى نو زما يوه خبره خامخا واورى.

– څه خبره ؟

– مونږ به کښتي خپل ګودر ته بيرته بوزو، ترسبا پورى به هلته ورسيږو او په همغه ځاى کى به مو دسيند بلى غاړى ته پورى باسو.

سکديو په درانه غږ ځواب ورکړ:

ته ياپخپله کم عقل يى يا مونږ کم عقلان ګنى ، که مونږ غوښتلاى چى په همغه ځاى کى له سينده پورى وزو دومره زحمت ګاللو ته مو څه اړتياوه. که مونږ له دښمن څخه داهيله کولاى شواى چى دمقابلى لپاره به ډګر ته راووړاندى شي نو مونږ به شل ميله څه چى څلويښت ميله ښکته تللى او له سينده به پورى وتلى وو.

شینده پوری وزو نو سوی به ویده ونیولای شو.

- باداره! که سوی ونیول شی او که وتښتی مور ستاسو امر منو، که تاسو نه خپه کیږی نو یوه وروستی غوښتنه په عرض رسوم.

سکدیو فطری مغرور نهٔ، خو یوازی شل ورځی کیدی چی دی دپوغ سالار ټاکل شوی ؤ، او په دی شل ورځوکی یی تل پردی فکر کاوه چی دی تر اوسه زیات نرم زړی دی، یو پوځی باید دومره د نرم زړه خاوند نه وی ځکه خو به یی کله کله هغه سرتیری ترټل چی غوښتل یی له ده سره ځانونه ډیر نږدی کړی.

او خپله ښکلی ځیره به یی چی پیدا کوونکی دموسکا لپاره پیدا کړی وه په جبر غوسه ناکه ښکاره کړه، خو دده اصلی فطرت به دده پر اراده زور وموند، او دخپلی کلکی ارادی سره سره به یی داهیر شول چی دی اوس دپوغ سالار دی، ده به دنورو په مخکی خپل پخوانی ملګری سخت وترټل، خو یوازی به یی بیا ځانته راوغوښتل تسلی به یی ورکوله او ورته ویل به یی: ښنګه آشنا، په دومره خبره خپه شوی، ستا څه خیال دی چی دپوغ سالار شوم نو مغرور شوی یم. نه ستا دا ګومان غلط ی، زه هماغه سکدیویم هغه وخت زه په بل چورت کی وم.

همدغه لامل ؤ چی بوډا مانو ته دکم عقل له ویلو وروسته سکدیو دهغه تسلی لازمه وبلله او په هغه برخه کی یی دسیند نه دپوری وتلو په اړه خپل غرض او هدف ورته بیان کړ، خو چی هغه کله دسوی دنیولو په باب

ووایه څه وایی؟

بوډا مانو د سکدیو په لهجه کی ددی تاثر پی بدلون په سبب پوه نه شو ، پریشانه شو ویی ویل:

باداره! مور ستا نوکران یو، تاسو ولی په غوسه کیږی ، که تاسو امر وکړی نو مور به خپل ځانونه لاس او پښی تړلی سیند ته وغورځوو، له مور سره دخپل ځانونو پروانشته خو ستا دپوځیانو ژوندارځښتنا ک دی، مایوازی همدومره ویل چی که تاسو غواړی همدا اوس له سینده پوری وزی نو لومړی یوازی یوی کښتی ته دتلو اجازه ورکړی. که هغه روغه رمته ورسیده نوری به هم ورسیږی.

مانو گان هم لږ دی. مور به یوه کښتی پوری باسو اوبیا به داسی نوری هم واچوو. په دری څلورو پیرو کی به ستاسو ټول پوځ ورسیږی.

سکدیو دا احساس کړه چی پر بوډا مانو دده غوسه بلکل بی ځایه وه، دخپلی پښیمانی دپټو لو هڅه یی کوله ویی ویل:

ډیر ښه، په یوه کښتی کی به څومره کسان سپریدای شی؟

- باداره که په لومړی پیره کی یوازی شل کسان وی نو ډیره ښه ده.

سکدیورام داس ته وکتل ویی ویل!

له پوځ څخه شل تنه پیاوړی کسان را ټول کړه .

- همدا اوس ؟

موږ باید له همدی نه ګټیه او چته کړو ، زه به پخپله هم په لومړی کښت کی کینم، که موږ ورسیدو نوپاتی پوځ هم پر کښتیو کی راپوری باسی که نه نو بیرته ستا نه شی.

رام داس ځواب ورکړ.

دسالار امر منل زما فرض دی مګر دا کله کیدای شی چی دخطر په وخت کی تاسو مخکی ولاړ شی اوزه وروسته پاتی شم ، په ړومبی کښتی کی ماته اجازه راکړی تاسو خو دپوځ سیوری یاست ستا سو ژوند دهیواد لپاره ډیر قیمتی دی.

سکدیو وموسکل او دواړه لاسونه یی درام داس پر اوږو کیښودل ویی ویل:

رام داسه! ته پو هیږی چی ددغه حملی په باب دراجه په دربار کی هیڅوک هم له ماسره همغږی نه وو. زه په خپله ذمه واری دسیند له دغی برخی څخه پوری وزم، که له څه پیښی سره مخ شم نو ګنګارام اوملګری به یی یوازی دومره وویلای شی چی زه دتجربی خاوند نه وم، خو څوک به ددی ویلو جرئت ونلری چی زه بی همته اوبی زړه وم.

که زه پخپله شاته پاتی شم اوکښتی ته کومه پیښه وشی نو په دربار ‌ کی به بیازما په پلوی یو غږ هم اوچت نشی، زه به دتولو ترنظره کم راشم.

دګنګارام دا ارمان به پوره شی چی دپوځ سالار شی. اوس موږ باید بیره وکړو که باران ودرید نو زموږ چوره شوی لوبه به بیرته ورانه شی.

تاگانو نومونه‌واخیستل او د کبنتی پر بانسونو یی تنابونه اوچت کړل.
بوډا مانو دکبنتی له یوی څنډی تربلی منډی وهلی اومانو گانو ته‌یی لار ښوونی کولی، باران شیبه په‌شیبه توند یده.
کبنتی لا له څنډی نه‌ډیره نه‌وه لری شوی چی داوبو څپو ښکته لوری ته ورسره‌واخیسته.
مانو گانو به په خپل وروستی زیار او زور کبنتی څو گز بره‌بوتله خو داوبوڅپی به‌بیا پری زوروری شوی اوهغه‌به یی څو گزه بیا ښکته یووړه.
بوډا مانو خپل ستونی په‌چیغو وشلاوه او خپلو نورو اندیوالانو ته یی حوصله اوډاډورکاوه.
سکدیو ظاهراً ډاډه‌ؤ او دسیند څپو ته‌یی کتل، خودبوډا مانو چیغو اوکوکارو به‌کله کله‌اندیښمن کړ.
چی دگرداب منځ ته‌ورسیدل نو مانو گانو په ډیر جوش اواحساساتو دسمندری دیر تاگانو څخه دمرستی دعاگانی کولی، اوس دکبنتی پورته بیول خو پر ځای پریږده نیغه چلول هم گران وو.
دمانو گانو له چیغوسره دپوځیانو زړونه درزیدل، سکدیو دهغوی ویریدلی څیری اوغمجنی سترگی‌ښی لیدلی دبوډا مانو ترڅنگ ولاړ ؤ او دخپلی اندیښنی دپټولو اودځان ډاډه ښودلو هڅه یی کوله‌ویی پوښتل:
زمونږ کښتی به په پوری‌غاړه‌له‌کوم ځای سرهولگیږی؟

کښتي هغې ته وروته رسيدای شوه بيا نو ښکته ترڅوميله پورې داسې ځای نشته چې کښتي پرڅنډه و درولای شو. ددې څنډې سره داوبو تګ هم ګړندی دی، کهمور دکښتي دبيرته راګرځولو هڅه هم وکړه نو ډيرواټن بهښکته درومو پهلاره کې ډير داسې کمرونهشته چې اوس اوبو پټ کړي دي اونه ښکاري. هغه کښتي ته ډير خطرناک دي.

سکديو چې داواوريدل چوپ شو او بوډا مانو بيرته په چيغو اوکوکارو پيل وکړ.

کښتي دوه ځله په ګرداب کې را ښکيل اوله ډوبيدونه بچ شوه، باران تم شو اوهغه تنګي اوس نژدې معلوميده خو دمانو ګانو پهڅيروکې د ډاډ نخښې اوس هم نهوې، بوډا مانو اوس هم پهچيغو پورې غاړې ته په لاس اشارې کولې.

مانو ګان لهستوماني نهبې سيکه شوي وو، او زياترو يې داوبو دڅپو په وړاندې خپله ماته منلې وه.

کښتي ورو ورو د څنډې لوري ته ور نژدې کيدله.

دبوډا مانو غږ لوېدلی ؤ، خو چې څنډه يې نژدې وليده په پوره زوريې چيغې کړې:

شاباش ميړنيو، همت وکړې همت وکړې.

مانو ګانو په خپل پاتې ټول توان او ځواک هڅه وکړه چې کښتي څنډې تهورسانې خو داوبو يوه توندهڅپه را غله اوکښتي يې څو ګزه ښکته يووړه، بوډا مانو پهخطرناک حالت کې خپله پګړې پهاوبو

وی، ددوی په مخ کی دتنګ ګودر پرڅای اوس خطرناک ا ویروونکی د کمرونو دیوال ولاړ ؤ. څومره چې کښتی له هغه تنګی نه لری کېدله هومره دغه کمرونه خطرناک کېدل.

دستړیا او مایوسی به‌سبب دمانو ګانو همت ختم شو، او په لاسونو کی یې پر بانسونو او پاروګانوورو وروزور کمیده.

کښتی له‌څنډی څنډی سره په‌یوه خطرناک حرکت ښکته روانه وه، بوډا مانو په مخه کی دریدلی ؤ او په‌ځیر ځیر یې اوبو ته کتل.

هغه ناڅاپه په وارخطایی چیغی کړی:

کمرونه‌دی، کمرونه دی، خبردار!

سکدیو چې په ځیر اوبو ته‌وکتل داوبو له مخ نه لږ اوچت یې د یوه کمره له څوکی پرته څه ونه‌لیدل مانو ګانوسمدستی دکښتی دلوری بدلولو هڅه وکړه خو داویو توند بهیر کښتی له کمره سره ټکر کړه،

دکښتی ښکتنی برخه دکمره پر څو که‌وسولیده او تیره شوه، سکدیو دادمنه ساه واخسته خو مانو ګانو په یوه غږ شور ګډ کړ:

کښتی ماته شوه ډوبیږی دڅانونو ژغورلو ته تیار شی.

دکښتی په‌تله کی درز پیدا شو او اوبه‌د فواری په‌ځیر تری راخوتیدی، بوډا مانو سکدیو ته وکتل چیغی یې کړی:

باداره! کښتی ډوبیږی ، نا تو، شمبو ، کالو بادار وژغوری.

سکدیو خپل لینده اوغشی په‌سیند کی وغورځول ویی ویل:

زه دچا مرستی ته‌اړتیا نه‌لرم بیا یې توره راواخسته او چې غورځوله یې

ته‌اوکله سکديو ته کتل ، سالار په غمجنه لهجه ورته‌وويل: دتولنى ميرينو! دخداى همدا خوښه وه، د تولنى دسوکالى لپاره زمونږ پلرونو اونيکونو ډيرى لويى قربانى ورکړى دى دمرگ له‌ويرى تاسو بايد غمجن نشى ،ستاسو په‌رگونو کى د ميړنيو وينه‌ده، دهمت اوميړانى څخه کار واخلى، داوبو څپى چى‌وينى همت مه‌بايلى ،زه پوهيږم چى اوس بيرته‌ستنيدل ډير گران دى زمونږ په مخکى يوازى يوه لاره ده چى له همدى کمرونو سره په ځنگ کى په‌لامبو ښکته ولاړ شو په‌دى کمرونو کى يوځاى خامخا دوتلولاره شته، چى‌ځنډى ته ورسيږى ښا يى دښمن سره مخ شى ځکه خو تورى درسره وساتى نورى وسلى وغورځوى ،دچا چى لامبو ښه نه وى زده هغه‌دى تورى هم وغورځوى. دمانيو گانو څخه چى څوک بلى ځنډى ته بيرته د ستنيدو همت کوى ولاړ دى شى.

بوډا مانو چيغى کړى:

کښتى ولاړه ، ولاړه خبردار!

(۳)

سکديو دنورو سرتيرو اومانيو گانو په شير هغه کوله چى ځان وژغورى، مانيو گانو هر يوه ده ته ځانونه ورنژدى کول اوغوښتل يى چى مرسته ورسره وکړى خو په‌دى څپو کى ترتولو ښه لامبوزن ته هم‌دا ترهر څه ډيره وه چى خپل ځان وياسى، دسکديو ميرانى اوغيرت‌دانه منله چى له چانه مرسته وغواړى.

پوځيان په ورو کيو دلو سره تيت کړل، دچاچې لامبو نه وه زده ځ ځلې
يې چيغې ووهلې اولاس اوپښې يې غورځول خو بيا د اوبو په غېږه کې
ورک شول، دسيند دتوندو څپو تول زور دسيند پرغاړه دکمرونو
ترځنګ ؤ، داوبو دپرلپسې څپېړو له امله د ځينو کمرونو په ښکتنې
برخه کې ژورې تشې جوړې شوې چې په هغوکې ويروونکې
ځرخوبې جوړ شوي وو.

سکنديو اودهغه څو ملګري په يوه ګرداب کې را ګير شول، سکنديو
هغوی دمرګ په کومې کې پرېښودل پخپله له ډيرو هڅو اولاس اوپښو
اچولو وروسته ترې راووت، په دې څنډ کې دده نور ملګري داوبو څپو
لرې ورسره وړي وو. لږ وروسته سکنديو په يوه بل ګرداب کې را ايسار
شو، څو داوبو زور هغه دڅنډې په لور ورسره يووړ او داوبو پر مخ دکمره
يوه څوکه راوتلې وه، سکنديو هغه په دواړو لاسو راټينګه کړه خولايې
ساه نه وه اخيستې چې دابو يوې توندې څپې دغه لښه دمه ځای هم ترې
واخيست اوبيا هغه هماغه ويروونکې ګرداب ته ورننوت. دډيرو غوټو
وهلو سره سکنديو يو ډول بې سيکه شو چې دګرداب نه راووت اودسيند
په غېږکې په لامبوشو. سکنديو نور دلاس اوپښو خوځولو نه لويدلې ؤ.
بدن يې له يخنې نه کرخت شوې ؤ اوسر يې د خوړو له زوره په
چاوديدوؤ. هغه څلورو خواؤ ته نظر واچاوه خو خپل کوم ملګرى يې
ترسترګو نه شو. هرلورى ته داوبو ياغې څپو دمرګ سندره زمزمه کوله
دډېرې مايوسۍ په حالت کې ...

دبرم اوپرتم اودمذهبي پيشوا دخوښې لپاره دخپل ژوند دنذرانه كولو پراحساس زور ومووند. ديوى شيبې لپاره يې دژوندانه هغه تولې رنگينى اوزره وروونكې ننداري ستر گو ته ودريدې چې دغمكې له ذروځخه داسمان په غيږ كې ترستورويو پورې خوري وري وې. سكديو آسمان ته مخ كړاو په دردمنه لهجه يې چيغې كړې:

خدايه! خدايه زه غواړم چې ژوندى پاتې شم.

زه غواړم ژوند وكړم ، تراوسه پورې ځوان يم ستا داستازيو « ديو تاگانو » راته اړتيا ده.

خدايه! خدايه !!

دسكديو غږ دسيند په شور كې ورك شو، له سترگو څخه يې اوښكې راوخوټيدې ، او له دې اوښكو سره يې پاتې لږ او ډير همت هم ترې ولاړ ، بيا هم ترڅو پورې چې په هوښ كې ؤ، ورويې لاس اوښې وهل ، كله كله به داويو څپو ترڅپله غيږه لاندې پټ كړاو بيا به د نيم بې هوښې په حالت كې ورو ورو پيرته داويو سرته راووت.

تر ډيره پورې دمرگ اوژوند سره له لاس او گريوان كيدو وروسته دسكديو پرسترگو تياره راغله اوپه غورږو كې يې دسيند دڅپو شور ورك شو.

(٤)

چې راپه خود شو سكديو ځونامانوس غږ ونه واوريدل، سترگې يې

یې وغړولې په وار خطایي یې هغو خلکو ته کتل چې دده لیدوته راټول شوي وو،

ناڅاپه یې احساس کړه چې دی ددیرې بې وسې په حالت کې دهغو خلکو په منځ کې دی چې دده ترټولو بد دښمنان دي. خو پردې حیران شو چې دهغوی په څېروکې ده ته دکینې اوغوسې پرځای دخواخوږۍ او اندېښنې نخښې دي. داهغه خلک وو چې دده عدالت خوښوونکې راجه اومذهبي پیشوا دا امر کړی ؤ چې څېرې یې وروسوځوي او ترټولو سخت تکلیف ورکړي چې خپلې سمسورې ځمکې پرېږدي اوبل کوم ځای ته کډې یوسي.

داهغه کسان وو چې له‌نژدې یې لیدل ، خبرې‌ورسره کول ، ددوی غوښونه اوریدل او ددوی پرېدنې یې لاس لګیدل ډیره‌بده ګناه بلله. چې ددوی په مذهب کې تیټ‌ذاتي ګڼل شوي او پرهغوی ظلم‌کول ددوی ازلي حق ؤ.

داهرڅه رو خو اوس سکدیو ددغو خلکو درحم اومهربانۍ اړ ؤ. ددوی په‌یوه شړېدلې جونګړه کې په‌یوه زړه او ورسته بستره پروت ؤ او دادې ددوی څېرې یې‌لیدلې، ددوی له خولو راوتلې غږونه یې اوریدل. دهغوی په‌لاسراوړېدنې لګیدلې شیان دده پرېدنې لګیدل، هره شیبه دده ددین شتمنې لوټ کیدله.

ننداره کوونکیو دده په باب ډول ډول خبری کولی،

یو زلمی په منډه هغی څپری ته ورننوت اوویی ویل : لاره خوشی کړی سردار راغلی، خلک دجونګړی په کونجونو کی سره غونج شول.

یوبوډا سړی لکنه په لاس څپری ته ور ننوت ، له هغه سره یوه ځوانه او په ونه دنګه نجلی هم وه، بوډا سردار دسکدیو سرته ورغی اوپه ځیر ځیر یی هغه ته وکتل ، پردی سربیره چی دی پوهیده چی ژوند یی د بوډا په لاس کی دی سکدیو هغه ته وکتل اوبیا یی په کرکه مخ تری واړاوه.

بوډا سردار وپوښتل:

ته څوک یی؟

سکدیو دسردار له پوښتنی سره هغه ته بیا وکتل خو څه یی ونه ویل.

سردار بیاوویل:

ته دلوږ ذاتو پوځی ښکاری، دلته څه ډول راغلی؟

دسکدیوله چوپتیا سره یوه سړی وویل:

باداره! دی په سیند کی ډوبیدو په حال کی ؤ، موږ په ډیرزحمت را ویوست.

– تاډیر ښه کار کړی دی.

دایی وویل اوسردار بیاسکدیو ته مخ واړاوه او ورته ویی ویل:

ته دلته ډاډه پریوزه، ډیر ستومانه را ته ښکاری، ترسهاره به دی

ثابتولی چی ددی خلکو دوحشت اوځناورتوب پهاړه دلوړذاتی تولن په لوړو مانیو کی بیا نیدلی اودسکدیو غوږونهیی لهوړکوالی پهاوریدو روږدی وو.

دده دزړه غږ خپله لهتسلی ډکه لهجه بدله کړه ویل یی:

دغهخلک ، دغهجوتهاوناپاک خلک!! درحم لهنامه سرههیڅ آشنا نه دی، دوی ددی لپاره چیتا پهډیرزحمت ووژنی نو لومړی تسلی ورکوی اوهیله درسره پیدا کوی. ستا پهزړه کی دژوندی پاتی کیدو هیلی راپیدا کوی، تاپراورلهغورځولو نه وړاندی په یوه خیالی جنت راګرځوی، دډیری بی وسی په حالت کی یی یوځل پر خپل شاوخوا راتولو خلکو نظر واچاوه. بیا یی سردار تهوکتل او وروسته یی سترګی دسردار پهځنګ کی پهولاړه نجلی نښتی پاتی شوی.

سکدیو ناڅاپه دا احساس کړه چی د دغو ناپاکو، بی وزلو اوغریبو خلکو پهمنځ کی یو داسی څوک هم شته چی دلوړذاتو دبنا پیریانو سره ورتهوالی لری، دهغی جامی لهنورو ښځو څخه پاکی وی، دهغی پر مخ دصبح کاذب او سپین سهار دتیارو اوړنا له ګډون څخه را پیدا زړه وړونکی ځلکاوه، پهخط اوخال کی یی بی حده ساد ګی ، معصومیت اوزړه راښکون ؤ، په غټو غټو سترګو کی یی دستوریو ځلا اودشپی توروالی ؤ.

خو ترشوخی متانت پکی ډیرؤ، مزبوط اوښکلی بدن یی دښځینه لطافت

دسکدیو په‌مخکې یوداسې تصویر ؤ چې سترګې پسې‌واخلي او په زړه کې یوه ناڅاپي هنګامه‌نه‌را اوچتوي بلکې په لاشعوري ډول دزړه تل ته‌لوېږي په آرام او خواږه سراو تال یې داسې نغمه چیړله چې څپې یې دوخت له‌مزله سره‌ورو ورو جګیږي اوبالاخره دزړه اوماغزو پر تولو وسعتونو منګولې ښخې کړي.

خود سکدیو پرضمیر دسپیڅلي ذات سره دتړاواحساس داسې زورور ؤ چې دی نجلۍ ته یې دوهم ځلې سترګې ورپورته نکړې دی احساس چې نجلۍ تیټ‌ذاتې ده دده دنظر پرتنده غلبه وکړه.

سردار وویل:

په‌دغسې موسم کې ته سیند ته‌دڅه لپاره ورکوزشوی ؟ داسې ښکاري چې ښه لامبوزن یې، که‌نه‌لوړ ذاتې خلک‌دبیاس دسیند له‌تیزو او توندو څپو نه په‌دې موسم کې‌ډیر لرې اوسي.

سکدیو سردار ته وکتل، زړه یې‌ژبې ته دڅه‌ویلو بلنه ورکړه. خو دشړیدلیو خیالونو په‌راتولولو بریالي نه‌شو. بوډا سردار په مینه ناکه لهجه تری وپوښتل؟

ته‌ولې دومره اندیښمن یې؟

حوصله‌وکړه، په‌دې‌خلکو کې یو هم ستا دښمن نه‌دی.

ستاسو دراجه زړورو پوځیانو څوځلې زموږ دجونګړو سوځولو، زموږ دلوتولو اوغلام کولو په نیت په‌دې خاوره قدمونه ایښي دي، خو دا

سراو مال کی به‌هیڅ شی هم ستا دزړیدو ترخاوره غوره او لوړون بولو.

سردار بیا خلکو ته‌مخ ورواړاوه او ویی ویل:

تاسو به‌داثابتوی چی‌زه‌څه‌وایم دارښتیا دی. هغه‌بیا وروړاندی شو دسکدیو پښو ته ورټیټ‌شو لاس یی پری کیښودل، سکدیو تراوسه پردی حیران ؤ چی ده ته یی‌دته پرځای« تاسو » خطاب کاوه، خو دسردار پردی حرکت یی په زړه کی د پښیمانی دروند احساس راپورته شو ، په‌زړه کی یی ورتیر شول چی ددغه ځپری څخه چی هرڅلی یی ده ته په کرکه کتل جګ شی او په‌یوه منډه ځان سیند ته‌وغورځوی، خو په‌بدن کی یی دومره توان نه‌ؤ ، دی په ډیر ه‌اندیښنه راپور ته‌شو کیناست، خلک دځپل سردار او مشر په تقلید په‌نوبت سره دهغه پرپښو ورپریوتل اولاسونه یی پری ایښودل.

خوددوی لاسونه‌ده پر ځپلو پښو له‌بلو سکروټو څخه هم سوځیدونکی ګڼل، دسکدیو ضمیر په لوړ غږ ویل:

کاشکی دی بوډا دوی ته‌زما په‌پښو دلاسو ایښودو پرځای دا امر کړی وای چی‌زما ټټر پر خنجر سوری سوری کړی.

کله چی ټولو خلکو دسردار امر پر ځای کړ.

بیا یی پیغلی ته مخ ورواړاوه اوویی ویل:

لوری کنول! ته‌څه چورتونه وهی ؟ دمیلمه دعزت ذمه واری ترهر چا زیاته ددی بدمرغه قوم دسردار پر کورنی زیاته‌ده.

راڅابو کړ، سترګی یې بنکته واچولې بیرته راټوله شوه را پا څیده
اودسردار ترخنګ ودریده، یوه شیبه دهغی ټوله وینه په غومبوریو کی را
ټوله شوه اوبیا ترڅه څنده دهغی په مخ کی سرو اوسپینو څپو یو پربل
پسی منډې وهلی.

یوه دبریښنا څپه د سکدیو له پښو څخه زړه ته او له زړه څخه ماغزو ته
وغځیده، خودسپیڅلی ټولنی مغروریچی پر خپل زړه کی کوم نازک
خیال ته ځای ورنکړ.

ماښام شوی ؤ، سردار لهخو تنو پرته نورو ته امر وکړ چی خپلو کورونو
ته ستانه شی. او بیا یې سکدیو ته وویل:
تاسو په ما نیوکی اوسی، ښا یې په دغه بدبویه ځپره کی خوب درنه شی،
دلته ګرمی هم زیاته ده، که تاسو امروکړی دخوب لپاره به دی
بهرېندوبست وکړو. وریځی ټولی شوی دی اوبهر هوا ډیره ښه ده.
سکدیو پرته له دی چی ځواب ورکړی جګ شو او په سردار پسی روان
شو، بهر هوار میدان ته یې چار پا یی راوړه سردار سکدیو ته وکتل ویې
ویل :
تاسو بیغمه آرام وکړی! زما کسان به ستاسو دساتنی خیال کوی.
سکدیو زړه نازړه پر چپر کټ کیناست، سردار څوکسانو ته دشپی لخوا
دپهرې امروکړ، اته ، لس تنه دسکدیو شاوخوا ته په لانده چمن کی
کیناستل، دده اندیښمن ضمیر په لوړ غږچیغی وهلی:
دادې ظلم دی، زه توله شپه ددومره کسانو د ناآرامه کولو حق نه لرم.

کـه‌زه له خپل بشپړ تولگي سره له‌سینده راپوري وتلي وای نو ددغـه ساده انسانانو به څـه حال وُ، دغـه‌خلک ولي دومـره بد نام‌دي! زمـوږ دهیواد دستـور او‌تولني دوی ته‌دانسـانانو درجـه ولي نه‌ده‌ورکړې! دوی له‌ماسره ولي دومره شریفانه چلن کوی؟!

دوی‌زما پښـو ته‌دلا سونو راوړو پرځـای‌زمابوټي ولي ونه‌شکولي ، که له‌دوی سره ددښمنی فطري حق‌لري ، نو په‌ماکی کوم داسی ښیگڼه ده چی زه یی ددی خلکو درحم حقدار گرځولی یم؟

ده دسپوږمی په‌رڼا کی بوډا سردار ته وکتل او د هغـه په‌څیـره کی یی دمینی ، میراني او خواخوږي نخښې‌ولیدی زړه یی راډک شو.

سردار وویل:

ښه نوزه درته ځم، که ستاځه شی ته‌اړتیا وه ددی کسانو نه کوم یو ماته‌راواستوه.

سردار دیر لری نه‌وُ تللي چی سکدیو له چپرکټ ځخه جگ شو او په ریږدیدلي غږیی وویل:

ودرېږه!

سکدیو وویل: مـاته‌ددی خلکو په منځ کي خوب نه‌راځي. تاسو پر ما باور وکړي زه به‌دتیښتي هڅه ونکړم، .... زه غـواړم پرازي وم، نن شپه.....! سردار نژدی را غی اوځواب یی ورکړ!

که تاسو غواړی ولاړ شي ځو ک مورا ایسار ولای شي.

خوب سره عادت نه وي، دښاراوسیدونکي په ځنګلونو کې ویریږي.

سکدیو په غمجنه لهجه وویل:

زه دوی ته زحمت نه ورکوم، تاسو امرورته وکړي چې خپلو کورونو ته ستانه شي.

دسردار په اشاره ټول خلک پاڅیدل اوخپلو کورونو ته روان شول.

بیا هغه سکدیو ته وویل: ماته څه اړتیا وه تا پخپله دوی ته ویلای شوای چې ولاړشي.

دوی ټول دمیلمنو په خدمت اوعزت پوهیږي، او ستاسو غوندي میلمه دخدمت موقع هروخت نه برابریږي.

دسکدیو پرزړه یو ژور زخم جوړ شو اوبې سیکه پرچپر کټ ورولوید، سردار چې تري رخصت شو لږ وړاندي خپل کورته ننوت، دکور په پراخ انګړ کې څو ښځو روغبړ کاوه، هغوی چې سردار ولید هري یوې خپل کور په لور مخه واخیسته.




(۵)

سردار بیله دي چې کنول ته څه ووایي په انګړ کې په یوه چپرکټ څملا-ست او په ژورو سوچونو کې ډوب شو،

دهغه نوم ساون ؤ. دی ددغې نیمي غرنۍ اونیمي سارایي سیمي دقبایلو مشراولار ښود ؤ چې د سیند دپوري غاړي لوړ ذاتو اومذهبي مشرانو دوی ټیټ ذاتي بللې وو. دغه خلک دپنجاب دهغو پخوانیو اوسیدونکیو څخه وو چې دمنځنۍ اسیا آریایي فاتحانو پرلیسي

فاتحانو اویا لوړ ذاتو خلکو دغه مات شوی قومونه په خپل کلتور کی تیټ ذاتی اوسپک گڼل ، بیا هم په‌زرگونو داسی کسان وو چی د خپلی آزادی په‌بیه یی دقوم دغه پریکړه ونه منله چی دوی به‌دټولنی دکرکی وړ پاړکی وی.

دوی پراخې اوهواری ځمکی پرینبودی دکانگړی اوکشمیر په منځ غرونو کی سره تیت اواباد شول، دسارایی سیمو هغه آریا ئی واکمن چی دخپلی واکمنی ځنډی یی لەدغو غرنیو سیمو سره نښتی وی دخپلی میرانی اوزړورتیا دثابتولو په هوس وخت پروخت ددغه خپلواک قوم دلاندی کولولپاره حملی کولې، یوه راجه به چی په‌دغو غرنیو سیمو کی څو مره زیاته برخه ونیوله‌او دفتحی بیرغونه‌به یی پری وړپول په هغه اندازه به په ټولنه اومذهبی کړیو کی دعزت اودرناوی وړبلل کیده، دهوارو سیمو دراجه گانو په‌څیر غرنیوقبایلو هم څوسرداران اومشران درلود ل،

دنورو قومونو دمشرانو په څیرساون هم دخو قبیلو سردار اومشرؤ چی دآریایی فاتحانو لەغلامی نه‌یی کرکه‌کوله. دده په گاونډی هواره سیمه واکمن راجه هم دهغو راجه گانو له ډلی ؤ چی د خپلی ټولنی د عزت او دخپل شهرت او نومیالی توب لپاره یی غوښتل چی ساون او یاغی قوم یی مات کړی اودخپلی ټولنی غلامان اوخدمتگاران یی کړی.

دلوړذاتو خلکو اوراجه اومذهبی مشرانو لپاره دغه خلک څه خطرنه

وی او د آسمان د اوربښت اوځمکو له حاصل څخه هغه ګټی پورته کړی چی د دوی د تولنی ځواکمن دیوتا یوازی د لوړ ذاتو لپاره ځانګړی کړی دی.

خو د لوړ ذاتو د روحانی ځواک د رناوی او دهغوی د بدنی ځواک ویری هغه دغرونو یاغی اوسیدونکی وسلو غور ځولو او تسلیمی ته اړ نه کړل. دګاونډی راجه پلرونو اونیکونو په تیرو پیړیو کی یو پربل پسی پردی خلکو خپل زور ازمایلی ؤ. خو په لوړو څوکو او ګنو ځنګلونو کی تقدیر دی بی وسو خلکو ته دخپلی دفاع په زرګونو مزبوتی کلاوی جوړی کړی وی.

په تیرو ۱۲ کلونو کی که دګاونډی راجه لخوا پر دوی کوم یرغل نه ؤ شوی ،دابه ښا یی په دی سبب و چی اوس دحکومت واګی دکومو خلکو په لاس کی وی هغو د خپلو پلرونو اونیکو نو له تجربو څخه عبرت اخیستی ؤ.

اویاهم ښا یی ددی لپاره چی ددی لوړ ذاتو خلکو په قومی دستور کی پخپله دوی ددی خلکو دانسانی حقوقو نه ورکولو په باب خپله پخوانی نظریه بدله کړی وه، لنډه داچی په تیرو ۱۲ کلونو کی امن اوآرامی دغه خلک ډاډه کړی وو او دوی له سینده پوری غاړی ته دیوه ځواکمن خو امن خوښی ګاونډی قوم په اوسیدو اوژوند روږدی شوی وو.

دمعمولی اړتیاؤ لپاره کله کله ځینی کسان له سینده پوری وتل اودلوړ ذات سپیڅلی ځمکی ته ورننو تل، خو هلته هم ددوی سوداګری

گانو دلوړ ذاتو دسپیڅلو مانیو دزیارت شوق اومینې ښارونو ته دتلو جرئت ورکړ، خو په هغوی کې داسې نیکمرغه ډېر لږ وو چې دداسې خطرناکو ځایونو له لیدو وروسته بیرته ژوندي کورونو ته را ستانه شول، ځکه ساون له ځوکالو راهیسې دا امر کړی ؤ چې ددې قام هیڅوک به هم دخدای د استازیو «دیو تاگانو،» سپیڅلي ځمکې ته نه ورځي، خوبیا هم ځیني خلک له سینده پوري وتل او له سیل او گرځیدو وروسته به بیرته راستانه شول.

ساون ډېر شریف سړی ؤ. دده هوښیاري اوساد گې دټول قوم وړوکي اوبوډا گان ورته تابع کړي وو، ده په تیرو ځوکلونو کې دخپل اولس جلب په لاس کې نیولی ؤ، په دې موده کې دغه بوډا مانو له کوم توپان سره مخ نه شو، خو له سینده پوري غاړې ته ویده توپان دیوه ځوان راجه اویوه بوډا پنډت په ځیرو کې بیا را اوچت شو، دځوان راجه دتخت کیناستلو دوه کاله کیدل اودبوډا مذهبي پیشوا دمنصب سنبالولو لاشپږ میاشتې نه وې پوره شوي چې دسیندنه پوري غاړې ته داوسیدونکیو آزادو قبایلو پرخلاف دټولنې ددیو تاگانو خپ غږونه بیا را پورته شول، ۱۲ کاله وروسته سکدیو دلوړ ذاتو خلکو له ډلې ځنځه لومړی سړی ؤ چې دخپلې لوړ ذاتي ټولنې دځواک دښکارولو لپاره یې دټیټ ذاتو اوپلیدو انساناتو دغه پلیده ځمکه تر خپلو سپیڅلو قدمونو لاندې سر لوړی کړی وه.

لور ترلې خندہ په کټ کیناستله اوده ته یې کتل بیا ورجگه شوه اودساون څنگ ته ورغله‌وې ویل!

پلار جانه! ته‌نن ډیر پریشانه یې، ډوډی راوړم؟

ساون بیله‌دی چی هغه ته‌و گوری ځواب یې ورکړ:

نه ، زه وږی‌نه یم.

کنول بیا ورته‌وویل:

پلار جانه ! هغه میلمه‌نیا یې وږی وی... تاهغه ته دخوراک څه ونه ویل؟

سردار راجگ شو ځواب یې ورکړ:

زما په‌زړه کی‌را تیره‌شوه خوغم دادی چی لوړ ذاتی خلک زموږ دلاس څه‌شی نه خوری.

- ولی پلار جانه؟

- کنول ! ته‌نه پوهیږی، دهغوی دین‌دوی له‌دی‌نه منع کړی، که مجبور نه‌وای‌نو زموږ پرچارپا یې به هم نه‌پریوت.

کنول وویل:

که مجبوری هغه زموږ پر کټ‌څملولی شی‌نو دمجبوری‌په حالت‌کی زموږ دلاسوپه خوړوکی څه‌بدی ده، تاخو به پوښتنه تری کړی وای.

سردار ځواب ورکړ!

ویریدم چی خپه‌نشی ځکه می دپوښتنی جرئت‌ونکړ.

لوری هغه ته د خوراک بلنه نشم ورکولی.

- که یی هغه پخپله وغواړی بیا ؟

- نوبیا هیڅ خبره نه ده، خو هغه یی نه غواړی.

- نوپلار جانه ددی مطلب داشو چی هغه بیچاره ترڅو زموږ سره اوسی نووږی به وی.

- کنول! ته دهغه په باب دومره ولی اندیښمنه یی ، موږ به یی سهار له سینده پوری غاړی ته درسولو هڅه وکړو ، ورځه ته ویده شه!

کنول مایوسه شوه ولاړه پرخپله بستره وغځیده. سترگی یی پټی کړی اوهڅه یی وکړه چی ویده شی خو خوب ورنغی، دښځی دغه فطری احساس چی دیوه پردی سره یوازی په دی خواخوږی ښیی چی هغه مسافر دی اودپوښتنی څوک نلری- اوچی کوم پردیس ووینی سمدستی یی دلوږی اوتندی اټکل کوی، دکوم تېپی درد پرځان احساسوی کنول په وار وار دسکدیو دتوندی لوږی پراحساسولو مجبور وله، ترڅو یره یی هغو وریځوته کتل چی دسپوږمی ترمخ تیریدلی بیا راجگه شوه، سردار په درانه خوب ویده ؤ- کنول خپه چوپه دکوریوی خونی ته ننو تله ،له یوی توکری څخه یی څو آمونه را وایستل اوپه ځولی کی یی واچول، زړه نازړه روانه شوه له کوره ووتله دسکدیو یو کټ تش پروت ؤ ، دی ترلږ څنده هلته یوی اوبلی خوا ته په اندیښنه سترگی اړولی، ناڅا په سپوږمی دوریځو له نقابه راووته اودی ترلری لری ځایه ولیدای شوای، سکدیو څو گامه وړاندی څوړند سرورو ورو

یی ونیوله. څومره چې سکدیو زانژدی کیده ددی دزړه درزا زیاتیدله ،
یوی نامعلومی ویری دادکور په‌لور کشوله خو یوه نامعلوم راښکون بیا
پر همغه ځای درولو ته‌هڅوله.
سکدیو چې چپرکټ ته ورنژدی شو نا ځا په یی کنول ته وکتل اوحیران
پرځای ودرید ، هغه غوښتل چې چوپه خوله پر کټ ورپریوزی خو چې
دآمو نو انبار یی ولید همغسی دریدلی پاتی شو ، ترلږځنډه له زړه نازړه
کیدو وروسته یی کنول ته‌وکتل ویی ویل:
تازما لپاره ولی دومره ځان په‌زحمت کړ؟
دسکدیو په‌لهجه اوخبرو کی داسی څه‌نه‌وو چې دا اندیښمنه کړی،
زړه وره شوه یو گام ور وړاندی شوه وی ویل:
پلارجان می ویریده چې تاسو به خپه شی ...ځکه هغه تاته دډوډی بلنه
درنکړه،،، هغه پخپله هم څه ونه خوړل... ماډوډی نه‌ده راوړی دا ام
دی... که‌وایی چې ډوډی اوشیدی هم‌راوړم.
دکنول هر لفظ دسکدیو له زړه څخه دوهمونو په‌زرگونو پردی لری
کولی، دایی احساسوله چې په دغه آرام چاپیریال کی ددغی ساده او
معصومی پیغلی خبری یوازی دده بر غوږو نو اغیزه نه کوی بلکی ددی
خلوص دونو پانی اودآسمان ستوری هم تراغیز لاندی راولی.
هغه وویل: نه، اوس می‌ډوډی اوشیدو ته اړتیا نشته، ته‌ورځه‌ویده
شه.
کنول سرترپایه په‌عذر شوه ورته ویی ویل:
زه دا آخر ... دخوراکی شیانو په‌خوړلو څه گناه ده... ته‌ښا-

دلته پاتې شي... دومره ورځې بيله څه خوړلو....!

سکدیو دلومړي ځل لپاره کنول ته په ځير وکتل... هغه ته ددې معصومې ځيرې د اویل:

ته وړی یې، که ستا دلوړی احساس راسره نه وای نو په دغه مهال به دلته نه وای را غلی، سکدیو دا احساس کړه چې دغه لیونی تیټ ذاتی نجلی ددې لپاره نه ده را غلی چې دی دلوړ ذاتی تولنی سپیڅلی دیو تا گڼي او نمانځنه یې لازمه گڼي بلکې دده پربې وسی یې زړه سوځیدلی دی او ددی ته دبلنی لپاره را غلی ده، دلوړ ذات مغرور پوځی تر ډیر ځنده د تیټ ذاتی نجلی په مخ کی ځوړند سر دریدلی پاتی نشو، آمونه یې یوی خواته لری کړل او په کټ کیناست، کنول هم چوپه خوله خپل کاله ته ستنه شوه.

سکدیو تر ډیره وخته پر چپر کټ ناست ؤ، د تیټ ذاتی نجلی په لاسو له لگیدو سره د آمو نو په وړم کی هیڅ بدلون را نغی، دهغه لوږه له زغم څخه وتلی وه بیا هم دی ته چمتو نه ؤ چی دذات دبرتری احساس د آمونوله خواږه وړم څخه قربان کړی، سکدیو آم راواخیست او په تصور کی یې دخپلی تولنی دقانون په ځیره دغم او غوسی نخښې احساس کړی، وویریده او ام یې پر خپل ځای بیرته وغورځاوه له لږ ساعت سوچ وروسته یې بیا د آمو نو ډیری ته وکتل که دد غو آمونو بیه یوازی دخپتی ډکولو په یوه شی پر تله کیدای شوای نو سکدیو به دخپلو نا کرارو کولمو سره له مشوری پرته هغه لری غورځولی وای، خو د تیټ

څه پریکړه ونکړای شوه، دضمیر یوه غږ دی دهندی ټولنی اصولو ته په درناوی اړکاوه.

خو دهغه یو ه بل غږ ده ته دیوی داسی جذبی د درناوی درس ورکاوه چی څوګړی وړاندی دی بلکل ورسره اشنا نه ؤ، دده په زړه کی نه له دیو- تاګانو څخه دمخ اړولو همت ؤ اونه دیوه معصوم زړه په لغته وهلوزغم. بالاخره عقل پریکړه وکړه چی دټولنی دیو تا اوس هم ستاد کړو وړو ننداره کوی خو ددغه ګناه ګار قوم ټول خلک ویده دی، ده په یو څه داډ آم په لمن کی واچول او یوی خوا ته روان شو.

**(۷)**

دڅو نګښو اوچر چریو ترانو داورېښت له دیو تا څخه دنور کرم اوباران هیله کوله، دسیند څپی دپخوا په څیر دلویو ګاټو نه وړوکی اوله وړوکیو نه دریګو نو ذرو په جوړولو بوختی وی، سکدیو آمونه په لمن کی ورسره واخیستل اودسیند پر غاړه دیوه کمره پر سر ودریدلکه کوم غل چی دغلی ساتلو هڅه کوی یو ی اوبلی خواته یی کتل.

دهند دټولنی هغه زړور ز وی چی دغیشو په باران او دتورو ترسیوری لاندی روزل شوی ؤ او ورته ښودل شوی وو چی دهندو ټولنی ددستور ددښمنانو مړی باید تربښو لاندی کړی او په وینو کی یی ولامبی. تر دیره وخته دیوی تیټ ذاتی نجلی نڼرانه آمو نو په باب څه پریکړه ونکړای شوای.

یی احساس کړه چې دسیند څپې ، ستوری او سپوږمۍ ټول دده پرخلاف پسپسکی کوی، ده په لوړ غږورته ویل:

که دی په عقیده کی ناتوانی نه‌وی را غلی ، نو د مذهب پرخلاف دیوی تیټ‌ذاتی نجلی درناوی څه معنی لری.

ته یو خواته غواړی چې دخدای استازی « دیو تاګان» درنه خوښ وی بلی خوا ته داهم غواړی چې دهندو مذهب اوټولنی دښمنان هم‌ستا له لاسه آزار نشی. ستاړه پردی ګواهی ورکوی چې دتیټ‌ذاتو د مشر شرافت‌اودتیټ‌ذاتی نجلی میلمه پالنه دبرهمنی ټولنی مغرور زامن شرموی، خو پر دی له اعتراف کولو څخه ویریږی آیا ته اوس هم‌داګنی که‌دغه ام دخوړلو پرځای سیند ته‌وغورځوی او له‌دی ځایه بیرته ستون شی نودبرهمنی ټولنی دقانون په‌زنځیر کی به همدومره برخه لری‌لکه پخوا دی چې درلوده؟

نه، هیڅکله نه، ته‌سر تر پښو بدل شوی یی ، ته‌هغه سکدیو نه یی چې دټولنی دزنځیر یوه مزبوته کړی بلل کیدی.

اوس ته‌هغه‌سرتیری نه یی چې دراجه اومذهبی پیشوا دیوی وړو کی خوښی لپاره دسلګونو تنو وینو تویولو ته‌چمتو ؤ ، اوس به ته‌دراجه اومذهبی مشر په امر سربیره پر چادتوری پورته کولو نه‌دمخه ډیر فکر کوی کیدای شی‌تاته په‌راتلونکی کی په هر تیټ ذاتی کی ددغه بوډا

څواک یې د ( دیوتاگانو ) له پښو څخه لری کشوی اودغه ترپښو لاندې ځپل شوی قوم په‌زرگونو تنه له څلورو خواو څخه منډې راوهی او پرده راتولیږی بوډا سردار اودغه پیغلې لوردی ترلمن نیولی وی اوورته‌وایی:

ووایه په مونږ کی څه‌بدی ده، مونږ څه گناه کړی‌ده؟

ته‌له مونږ نه ولی کرکه کوی اوولی مودوینو تږی یی؟

سکدیو داسی احساس کړه چی ددغه ستم ځپلو خلکو په منځ کی دیوه مجرم په‌بڼه‌ولاړ دی اوزړه یی د پښیمانی تربار لاندی دل کیږی، مگر په‌دغه وخت کی دضمیر بل غږ چی تر څه اندازی مات شوی ؤ دوروستی ځل لپاره په چیغو شو: سکدیوه! ته‌بی لاری کیږی دمذهب وقاروساته.

سکدیو ولړزید اوځپل زړه ته یی دتسلی لپاره په زوره چیغه کړه.

نه، نه ،زما له‌دی ذلیلو خلکو سره هیڅ اړیکی نشته، دوی‌زمونږ دخدایانو استازیو رټلی دی، زما له‌دوی‌سره هیڅ خواخوږی نشی کیدای.

دهغه په‌مړو رگونو کی یو ځل بیا دژوندون وینه وځغلیده داسی یی گڼله چی سپیڅلی دیوتا چی دی یی‌لیدای‌نشی داوبو پر مخ دځپل ستر روحانی څواک په زور دده دمرستی‌لپاره را روان‌دی دی پردی وطن ته‌دیوه بی وسه پردیس په‌توگه نه‌بلکی دناولیو تیټ‌ذاتو کلی

ځل بیا ، سیند غرونه، سپوږمی او ستوری داسی ښکاره شول لکه پرده پوری چی په کرس کرس خاندی ، د تیټ ذاتو په جامه کی دظلم ځپلی انسانیت فریاد یی یو ځل بیا د ضمیر دروازه ورو ټکوله، سکدیو داسی ګڼله چی دسپڅلی هندو مذهب دخدایانو استازی چی دسیند داوبو پر مخ دده مرستی ته راروان وو بیرته پخپلو درمسالونو کی پر یو تل او ویده شول.

اودی بیا یوازی پر کمره ولاړ دی اودځمکی او آسمان په غیږه کی دفطرت له ترخو واقعیتونو سره لاس او ګریوان دی ، دخو شیبو لپاره هغه سترګی پټی کړی او دخیال پر پرده یی ولیدل چی دبدمرغه قوم په زرګونو خلک دخپل سردار سره دده په مخکی ولاړ وی اوده بیا کنول ولیده چی ورته ویل یی:

پلار جـان می ویریده چی ته به خـپـه شی ، ځکه یی دډوډی بلنه درنکړای شوه، هغه پخپله هم څـه نه‌دی خوړلی ، مـا ډوډی نه‌ده راوړی دا آم‌دی.... دخوراک دشیانو په خوړلو څه ګناه ده؟

سکدیو بی‌سیکه پر کمره کیناست.

داسی یی ګـڼله کوم آم چی‌ده سیند ته‌وغورځاوه دسیند په‌څپوکی بلی غاړی ته ورسید ، هلته چی ددیو تاګانو سپیڅلی خاوره پیل کیږی . هغی خاوری تر ی مزبوته‌ونه جوړه کړی‌ده او سپیڅلی دیو تا یی جوړه میوه خوری. دسکدیو له‌زړه نه‌دو همونو پرده له‌یوه‌سره لری

دزړه له کومی قبوله کړه او ویی ستایله ، دآم له خوړلو وروسته یی غوښتل زړی یی سیند ته وغورځوی خو څه یی په خیال کی ورو گرځیدل اوبیرته یی لاس ونیو، زړی یی له ځان سره نږدی کیښود.

دتولو امونو له خوړلو وروسته یی پوستکی او زړی ورسره راواخیستل اوبیرته را غی دخپل چپر کټ ترڅنگ یی وغورځول.

# دتولني ياغي

لمردختيځو لوړو لوړو غرونو له شاڅخه راپورته شو، سکديو وغځيد او سترګي يې وغړولي ، ترټولو لومړی يې سترګی پر بوډا سردار ولګيدی چې ده ته دوه دری ګامه نژدی پريوه چپرکټ ناستۀ.
څو تنه نور کسان لاندی په چمن ناست وو، تيری پيښي دبرښنا په څير دسکديو په ذهن کی را تيری شوی اودی را جګ شو کيناست.
سردار جګ شو وړاندی ورغی اودسکديو پرښنو يې دلاسونو ايښو دو هڅه وکړه، سکديو دهغه لاسونه ونيول اوشاته يې وټنهل بيا جګ شو او دهغه ترڅنګ ودريد.
هغه ددغه چاپير يال ترخه ديوی غمګيني موسکا ترپردو لاندی دپټو-لوهڅه وکړه اوويې ويل:
تاسو ماډير مه پښيمانه کوی.
سردار ورته وويل:

- کاشکې زه د دیو تاپرڅای ستاسو په څیر یوانسان وای.

سردار پریشانه شو ویې پوښتل:

داتاسو څه وایې؟

- زه ریښتیا وایم، زه سپیڅلی استازی نه یم، دراجه دپوځ یو سپاهی یم زه چې په کومه اراده دې ځای ته راورسیدم که تاسو پرې پوه شی نو باور مې دی چې بیا به له دومره سخاوت څخه کار نه اخلی. واوری! که دسیند مستی زه بې وسه کړی نه وای اودلته یې نه وای راوستی نو نن به پردې ځمکه په آزادې دساه اخیستلو پرځای تاسو ددې خلکو په لاس کې بندیان وای چې په زړونو کې یې ستاسو لپاره درحم هیڅ ځای نشته. ستاسو څپرې او جونګړې به سوځول شوی وی او پر څرځایونو به مو موږ لاس موندلی ؤ آیا اوس هم تاسو ما دیو تاګڼئ؟

سردار ځواب ورکړ:

که تاسو دغو څرځایونو او جونګړو ته څه اړتیا لرې نو موږ په خوښې دې ته چمتو یو چې تاسو ته یې پریږدو او موږ بل چیرته ولاړ شو، پردې پراخه ځمکه دغسې په زرګونو سمسورې سیمې شته او په لکونو دغسې جونګړې جوړیدای شی.

دجګړې نه پرته چې څوک خپله ماته منی له هغوی سره جګړه هیڅ دعقل خبره نه ده.

زموږ تولنه یې ښا یې تر پیړیو پورې اړتیا احساس نکړي، تاسو انسانان نه‌بلکې دیو تا یاست، زه ستاسو نمانځونکی یم. سکدیو داوویل او بیا تیټ‌شو غوښتل یې دبوډا سردار پرپښو لاسونه کیږدي خو هغه دې په غیږ کې ونیو، دلوړذات اوټیټ ذاتي غاړه غړي کیدوسره د دواړو له زړونو څخه په یوه مهال داغږ راپورته کیده چې موږ په‌دې نړۍ کې له یو بل څخه ددومره لرې اوپردي اوسیدو لپاره نه‌وو پیدا شوي .زموږ بیلتـون ډیر غـیـرفطري خـبـره ده. سکدیو ته‌دهندو ټولنې د ځـان غـوښتـونکو قانون یوچل ،فـریب اودوکه ښکاره شو، دی یوباغي ؤ. دهغه‌راجـه اومذهبي مـشر څخه باغي چې دهغوی لپاره یې یوه ورځ دمخه ځان دمرګ کومې ته په‌ورغورځولو هم دریغه‌ونکړه، دټیټ‌ذاتو دسردار ناولې بدن‌چې ده‌پرې دخپلې تورې دتیره والي از مویښت کاوه اوس دانسانـي وروروالي په اساس دکرکې وړ نه‌بلکې دمینې اورحم‌وړ ښکاریده.

سردار وویل:

دلتـه لمر را غی راڅی هلتـه دونو ترسیوري لاندې کینو، سکدیو له سـردارسـره ملګری شو، دهغـه په‌اشاره څو کـسـانونورچپر کتـونه راواخیـستل اودسردار دکورسره نژدې یې دآم‌دونې لاندې کیښودل ، څوګامـه‌لرې یوه چینه‌وه، سکدیو پریوه ډبره کیناست اوخوله‌اولاسونه یې ومـینځل بیـا دسـردارسـره دونولاندې یوبـل ته‌مـخامخ پرکتـونو کیناستل ،لږ څنډ وروستـه کنول د یوې کټوي اوپیالې سره راغله

کنول داخه شی دی؟

- پلار جانه شیدی می راوړی دی، تاسو نن ناشته نه ده کړی، بیا یی سکدیو ته په معنی دار نظر سترگی واړولی.

سردار هم سکدیو ته وکتل اوویی ویل:

کنول دشپی هم تینگار کاوه چی تاسو ته دډوډی بلنه درکړم، خو په دی خیال چی تاسو به مرور تیت ذاتی گڼی جرئت می ونه کړ اوس دی زمانه له پوښتنی پرته شیدی راوړی دی، که ددی ځښل تاسو دخپل مذهب خلاف گڼی نوزه به یوه غوا دلته راوغواړم تاسو یی پخپله ځانته شیدی ولوشی.

سکدیو وویل:

ستاسو دآم له خوړلو وروسته زما مذهب ستاسود شیدو له خوړلو نه هم نه منعه کوی، ستاسو آم ډیر خواږه وو، زما باور دی چی دغه شیدی به هم ترخی نه وی.

سردار په حیرانی وپوښتل!

کوم آم؟

- هماغه چی دشپی تاسو را استولی وو، زه ریښتیا وایم داسی آم ما په خپل عمر نه وو خوړلی.

کنول چی خپل پلار زیات پریشانه ولید وی ویل!

پلار جانه! ته ویده وی ماده ته آم راوړل ماویل وبه یی خوری سردار سکدیو ته وکتل اوویی ویل:

هم ؤ او ترې هم.

دآمونو په خیرشیدی هم دیری مزه داری ورته معلومی شوی.

هغه دوی پیالی په خپله خوښه وخښلی اودریمه یی دسردار په تینګار پرسر واړوله.

لهسکدیو نهوروسته سردار هم شیدی وخښلی اوکنول لوښی ورسره واخیستل اودننه کورته ستنهشوه.

سردار وویل:

زه ویریدم چی تاسو بهزموږ دلاسه څهشی ونه خوری.

څکه می دا اراده وه چی سبا ته دی لهسینده پوری غاړی تهورسوم، خواوس به دی دلته څو شپی نور هم په پاتی کیدو مجبور کړم، تهبه دلتهله موږ سره هیڅ پهتکلیف نشی.

سکدیو ځواب ورکړ:

ستاسو لهبلنی څخه مننه، خو کهتاسو ماته دابلنهنهوای راکړی هم دومره پهبیره می لهدی ځایه دتلواراده نهدرلوده، زموږ قانون دااجازه نهراکوی چی د نورو قومونو انسانان موسیمی تهرانوزی خوزما باور دی چی کهڅوک دهغه مذهب اودستور څخه ګوښه شی او تاسو ته راشی نو تاسو بهیی بیرته شړل نه خوښوی.

- موږ بهداسی څوک پرلیمو کینوو، دهغو بهددی ځمکی له نعمتونو څخهدګټی اخیستلوهمدومره حق وی لکهزموږ چی دی.

سکدیو وویل:

زمور‌جونګړی ستاسو پرمخ خلاص اوپراخی دی.

**(۲)**

خوورځی نوری‌چی سکدیو پـه‌دغـه‌ساده چاپیریال‌کی تیری کـړی داسی یی احـسـاسـوله لکه چی‌کلونـه پـه‌دی کلی کـی اوسیـدلی وی، دژوندانه تیر ۲۵ کلونه چی ده‌ د لوړذاتو پـه منځ کی‌تیر کـړی وو دیوه خـوب پـه‌څـیـر ورته‌ښکاریدل، ده ددغـو خلکو پـه‌سینوکی دداسی مـشـالونو رڼا لیـدلی‌وه چی دآریایی فـاتحـانو پـه مـحـفل کـی‌له‌ډیرو پیړیو راسی چوپ شوی‌وو ، غوښتل یی چی‌لوړی مانی ددغه‌مشالونو له‌رڼا ګانو سره آشنا کـړی ، خو پـه هغو مانیو کـی‌دویروونکو ویدو شویو تو پانونو ویری دده پـه‌داسی ارادو غلبه کوله.

سکدیوپه‌سهار اوماښام کله‌کله‌له‌سردار سره اوزیاتره یوازی دسیند اویا غـرونو پـه‌لوری پـه چکرولاړ ،ده ته‌د طبـیـعت هره‌ننداره داسی ښکاریده چی‌دلوړ ذاتو پرقـانون اودسـتـور پوری خـاندی اوملنډی پری وهی ،هغـه‌دی ته‌ناکـراره‌ؤ چی‌بیـرته سـتوڼ شی اودغولوړذاتو ته‌یو نوی پیغـام‌ورسوی خو یوه پیاوړی راښکون هغـه‌ څو ورځی نور هم پـه دی غـرونو اوسـمـسـوروسیـمـو کی ګـرځـیدا تـه مجبـور کـړی ؤ، دچا معصومو کتوده دزړه چوپوتارونو ته‌ترنګ ور کړی ؤ چی‌داسی نغمه یی تری اوچتوله چی پـه زیرویم کی‌یی دطبیعت ټولی ننداری تراغیزی لاندی غوندی وی.

دچا پـه‌حیـاکی ډوبی موسکا دی دخوبونو ښکلی دنیا تـه‌وربالـه، دچاد ښ ... ه دکلمه ده ته یو راګ ګرځیدله.

دښکلو ننداړو یوه برخه ښکاریدله.

خو سکدیو پردی خبری اعتراف نه خو ښا وه چی دکنول په لوری دده دزړه میل دهغی دبدنی ښکلا په سبب دی. ده پردی ویاړ کاوه چی دعالی ذاتو له ټولنی اومذهب څخه یې بغاوت کړی دی او دټیټ ذاتو سره یو ځای شویدی خودیوی ټیټ ذاتی نجلی په لاسودده دزړه فتحه کیدل ده یوه ډیره بده ماته ګڼله. ده چی له ځلورو خواو څخه ماته وخوړه نو زړه ته یې دومره تسلی ضرور ورکوله چی له کنول سره یې زړه لګیدل یوازی دهغه رحم او برابری دهغو سپیڅلو احساساتو حاصل دی چی انسان هرلویدلی انسان ته لاس ورکولو اومرستی ته چمتو کوی، خو دټیټ ذاتو یوه نجلی چی دی ډیوه کړی اویا دپتنګ په څیر پری طوافونه وکړی دایی دخپل وقار منافی بلل. دی پردی عادت شوی ؤ چی پخوالدی چی چاته د مینی اومهربانی لاس وراوږد کړی باید هغه دده دمینی اومهربانی هیله من ووینی خو چی ورځی تیریدی دده دغه وهم لری کیده چی دښکلا اومعصومیت دغه شهزادګی به دخپل غرور تاج له خپله سره راواخلی اودده په پښو کی به یې کیږدی.

له سکدیو سره دکنول لومړی خواخوږی دهغه ښځینه احساساتو زیږنده وه چی معمولاً ځوانی نجونی دکوم پردیس درد اوغم دځان بولی، خو چی کله دسردار دقوم په سلګونو تنو سکدیو ته ددوستی لاسونه وراوږده کړل نو کنول یو څه دبی پروا یی نه کار واخیست، په پیل کی

دسردار لور دخپل پلار په ځیر سرګردانو لارورکو ته لار ښوونه اوله لویدلیو سره مرسته خپله ذمه واری بلله، خوخپل په درزا زړه اوله زیدونکی بدن لپاره یی دچا دځواکمنو لاسونو تکیه نه خوښوله. هغو سترګو چی دسکدیو پر غمځلی ځیره خپګان ښودلو اوس یی په زړه کی د ځپا ند کیدو توپان دتمو لوهځی کولی.

(۳)

یو ماښام دمعمول په‌ځیر سکدیو دچکر لپاره ووت. پرآسمان وریځی را خوری شوی وی اودساون د نمجن شمال په‌څپو کی یو نیم ځاځکی دباران داوریدو پیغام راوړ ،سکدیو دسیند پرغاړه په یوه لوړ کمره ودرید اودسیند دیاغی څپو په‌نندار ه ډوب شو.

دسیند زړه وړونکیو څپو ده ته تیری پیښبی وریادی کړی، او بیا له شاوخوا نه بی خبره یی یوځل بیا د ژوند هغه ترټولو ښکلی سندره واوریده چی الفاظ یی داسی وو.

« پلار جان ویریده چی ته به خپه‌شی... ماډوډی نه‌ده راوړی دا آم دی... دخوراکی شیانو خوړل څه ګناه لری.

بیا یی دکنول اوسنی چلن ته‌پام وکړاوداسی یی احساس کړه چی په فضا کی دخپګان څپی خپریږی په خپل زړه کی یی وویل:

زه دلته څه کوم ، دلته می څوک دی؟ دکنول په ځیر معصومه اوساده نجلی څنګه زما زړه ته‌لاره کولی شی.

کړی. دهغه ددومره نیکیو نه وروسته زه اوس کله داجرئت کولی شم چی هغه ته ددومره لوی بخشش لپاره لاسونه وراوږده کړم.

هغه مادشرافت مجسمه گڼی ،زما له خوا داسی څه حرکت به ما دهغه په وړاندی را ټیټ کړی .نه، نه ،زه دانشم کولی،زه دلته نشم اوسیدلای خو اوس چیرته تلای شم؟

په خپل هیواد کی زه اوس رټل شوی یم اوداوسیدو لپاره ځای نه لرم، چیرته لری به ولاړ شم، په هغو لوړو غرونو کی به چیرته ښا یی آرام اوسکون ومومم.

سکدیو په خپل زړه کی په زرگونو دغسی لاری جوړی کړی اوبیرته راوگرځید، له کمره څخه چی راکوز شو لایی څو گامه نه وواخیستی چی لږ وړاندی یی څوک په چمن کی ناست ولیدل، دماښام په خړه کی یی هغه نه پیژندل چی څوک دی خو چی ورنژدی شو زړه یی په درزاشو ،

کنول وه چی مخ یی بل لوری ته اړولی ؤ او په ځمکه یی دوښووډنهر یو یو راشکول و یوه لوری ته یی غورځول، دسکدیو دپښو دغږ په اوریدو یی شاته راوکتل اوویریده له ځا یه راجگه شوه، سکدیو دخپل زړه دد رزا را قابو کولو هڅه وکړه ویی ویل:

کنول! ته په دی وخت کی دلته څه کوی؟

کنول ځمکی ته اشاره وکړه وی ویل:

زرغونې شوې وې،

سکدیو وویل : داسې ښکارې چې له آمو نو سره ډیره مینه لرې، تاپخوا هم دآمونوزړې کرلې دې؟ دې زړه نازړه ځواب ورکړ:

نه...... دغه آم په هغه ورځ تاخوړلې وومایې زړې راوړل دلته مې ښخ کړل، اوس تول راشنه شوې دې.

دکنول دغه ساده او معصوم الفاظ د سکدیو له هیلې نه ډیراولوړ وو، زړه یې چې لږ شیبه پخوا یوه ترخه احساس ځبلې ؤ یو ځل بیا له خوښیو په تو پونو شو.

دواړو یو بل ته وکتل اوبیا یې سترګې ښکته واچولې.

دمینې ښا پیر یو دآم دبو تیو ترمنځ اتڼ کاوه.

سکدیو دبو تیو ترڅنګ کیناست اودهغو له شاوخوا را زرغون شوې واښه یې ترې وایستل.

دهغو را زرغون شویو زړیو په نازکو ډنډرونو او پاڼو کې یې دکنول دزړه سادګې اوبیا یست تر سترګوشو، نوریې په خپله ماته په اعتراف هیڅ عذر نه درلود.

ناڅا په دتوند شمال څپه راغله اود باران غټ غټ څاڅکي راپریوتل، سکدیو اوکنول دواړه په منډه ولاړل اودیوې لویې ونې لاندې ودریدل.

دواړه لومړې یو له بل نه لږ لرې دریدلي وو خو چې باران توند شو اوترونې لاندې هم څوندې ځاې پاتې نه شو دواړه دونې تنې ته سره

شوی وی.

سکدیو وویل: کنول! تاهغه آم ولی وکرل؟

- آم ستا نه خوښیږی؟

- ولی نه، ستا دلاس آم خوبیا ډیر خواږه وی.

دهغوی آمو نو مزه تراوسه پوری زما په خوله کی ده.

- ته وږی وی که نه په هغو آمونو کی څه ځانګړتیا نه وه.

سکدیو ترلږ چورت وروسته وویل:

کنول! زه ستا سو سره یوازی څو ورځی نوریم.

هغی تکان وخوړ ویی پوښتل:

څو ورځی نور؟

- هو کی کنول! زه ویریږم که زیاتی ورځی پاتی شم تاسو به راسره ستومانه شی.

- که ته په دی خیال درومی نوپلار جان به می اجازه درنکړی، خو که ته له موږ نه ستومانه شوی وی او ځی نوڅو ک دی نشی راایسارولای، تاسودخپلی خوښی خاوند یاست.

- خو په دی کلی کی یوه داسی هستی شته چی ما را ایسارولای شی اودهغو یوه وړوکی اشاره زما ارادی ماتولای شی.

- هغه څوک دی؟

- ته یی نه پیژنی؟

- زه!

- هو کې ته!

- نو زه یوځل نه زر ځله وایم چې مه ځه!

سکدیوپه لړزیدلې غږوویل:

زه نه ځم کنول، زه نه ځم، زه چیرته تلای هم نشم.

دواړه ترلږ ځنډه چوپ شول، تیاره زیاتیدله، شمال دریدلی ؤ خوباران ښه په زور کې ؤ.

کنول وویل: ښا یې باران کم نشي ، موږ باید ولاړ شو، پلارجان به پر یشانه وي.

- راځه!

دواړه یو ځای څو گامه وړاندې ولاړل چې وریځې وغړمبیدې اوکنول وویریده سکدیو یې ترمټ ونیو.

- وویریدې؟

هغې یې مټ پریښود ویې ویل:نه!

څو ځلې توری وبریښیدې خو سکدیو او کنول ددې پرځای چې دتورو په بریښنا کې خپله لاره وگوري دواړو به دیوبل دلیدو هڅه کوله.

له کور څخه لږ لرې کنول ودریده اوورویې وویل:

ته دلته ودریږه، زه به لومړی دننه ولاړه شم لږ ځنډ وروسته تاسو راشې.

(٤)

پيښېږي ده ته دومره يو له بل سره تړلي ښکاريدلي چې په يوه نامعلوم ځواک يې اعتراف ته اړ کړ چې دده په زړه اوماغزو کې غلي ؤ اوديوه لوړ او عالي هدف لپاره يې کار کاوه.

دخپل ديانت دويجاړ شوي درمسال دبيارغونې لپاره ده دخپلې ټولنې دهغو ديو تاگانو پرځاي چې دده او کنول ترمنځ دتيت اولوړ ذات دکرکې او نفرت ديوالونو درولو مجرمان ښکاريدل ديوه داسې ځواکمن خداي تصور ته ځاي ورکاوه چې دي يې په سيندکې له ډوبيدو ژغورلی ؤ.

هغه خداي ته چې دمصيبت په وخت کې يې دده ترټولو بد دښمن ورته ترټولو غوره دوست وگرځاوه.

چې يوي ساده سيده نجلې ته يې دميلمه پالنې يو حيرانوونکې انداز ورزده کړی ؤ. اودهماغه خداي د لوي ځواک تهويري دکنول دلاسو آمو نو خوړلو ته مجبور کړی ؤ.

سکديو پردي پوهيده چې کنول په هغه ورځ يوازې ددې لپاره هلته نه وه تللې چې په خپل لاس دکينول شويو بوټو واښه لرې کړي اوويې گوري، بلکې تقدير په همدې پلمه ددوی دواړو ترمنځ دليدو او يوله بل سره دخبرو فرصت برابر کړ. دوی باور درلود چې ارواوي يې له يو بل سره دشريک اوسيدو لپاره پيدا شوي دي، اوهماغه ځواک به چې ددې هدف دسرته رسيدو لپاره يې داهر څه وکړل په نژدې وخت کې کوم داسې گام پورته کوي چې دده اوکنول ترمنځ پاتې درسم اورواج ظاهري [illegible]

کی تیری کړی چی دقاضی پرعدالت یی باوروی اودخپلی بی گناهی له احساس سره په محکمه کی پښی اولاسونه زنځیر اوزولنی ولاړوی خو پر شـونډو یی مـوسکاوی چی دمـحکمی پریکړه دده پر خـلاف نشی کیدای.

په دی موده کی ده له سردار څخه هیله وکړه چی ده ته دیوی ځانگړی څپری جوړولو اجازه ورکړی ، خو سردار ځواب ورکړ چی:
ستاسو په څیر میلمنو لپاره زما کور ډیر پراخ دی.
زه داسی گنم چی په وروستی عمر د یو زلمی زوی خاوند شوم.

سکدیو ته دغـه انکار هم دهمـاغـه ځواکـمن قـوت رضـا ښکاره شـوه اودسردار دکور یوه کوټه یی دځان لپاره جنت باله.
په دی کلی کی یوازی دسـردار کـور داسی ؤ چی دیوالونه یی لـه کـانو اوبام یی لەلرگیو جوړ شوی ؤ.

نور ټول خلک ددرگو په څپرو کی اوسیدل.

دشپی مهال به یی تل دسکدیو چپرکټ بهر آزادی هوا ته را ایستلو، خو دباران په وخت به په خپله کوټه کی ویده کیدو ، دکوټی دسینگار اوښا یست لپاره پړانگ اوپړی پوستکی کاریدلی وو ددیوال سره یو ه توره هم را ځړیده.

چی په خپل گومان سکدیو نور دتل لپاره غورځولی اولری کړی وه، خو کنول یوه دار ځښت وړشی گڼله اودلته یی راځړولی وه.

# سزا

د «بهادو «١» » میاشت چې تیره شوه موسم بدل شو.

دغه خلک هم دبهرپرځای په کوټو کې پریوتل، سکدیو چې په کومه خونه کې پریووت دهغې ترڅنګ دسردار خونه وه.

دشپې دډوډۍ خوړلو نه وروسته به کله سردار دی خپلې کوټې ته ور وغوښت او کله به سردار او کنول دده کوټې ته ورغلل او سره کیناستل به، سردار به دخپلې ځوانۍ دوختونو دښکار په زړه پورې کیسې اورولې.

او سکدیو به یاد راجه ګانو او پاچاهانو دجګړو کیسې کولې اویابه یې دتیټ ذاتو خلکو سره دهندو تولنې له رواياتو ګیلې کولې، چې کله به دغه په زړه پورې مجلسونه رنګ شول او ټول به خپلو خپلو کوټو ته ولاړل نو سکدیو به سر پر بستره ورننه یوست او دڅنګ په کوټه کې دپرتې محبوبې سره به یې په تصور کې خبرې کولې اوویده به شو.

سهار به چې راویښ شو له کلې څخه لرې یو ډنډ ؤ هلته به ولاړ، په یخو اوبو اوبو کې به یې ولنبل بیا به یې دنیلو فر غټ غټ ګلان

---

راوشکول او را به یی ورل.

یوسهار دپخوا پهخیر کنول دشیدو لهګیلاس سره دده.

کوتی تهورغله، سکدیو ددی لهورتلو ناخبره دنیلوفر« کنول» ګل ښکلاوه او دهغه خوږ بوی یی زړه تازه کاوه.

کنول ترلږ ځنډ انتظار وروسته پیاله وروړاندی کړه ویی ویل! داواخله!

سکدیو ټکان وخوړ اوګل یی وغورځاوه، دکنول له لاسه یی پیاله واخیسته اودی ته یی وکتل.

دهغی پرشونډی زړه وړونکی موسکا وغوړیده ویی ویل:

داګل ستاډیر خوښ دی؟

- هوکی! خوکه یی نوم (کنول) نهوای نو ښایی دومره می نهوای خوښ.

دکنول سترګی لهحیانه ښکتهشوی، سکدیو دهغه په څیره کی دومره ښکلا پخوا نهوه احساس کړی.

بیا یی وویل:

کنول! زهرښتیا وایم تهتردی ګلانو ډیره زیاته....!

دهلاخبره نهوه بشپړه کړی چی هغی پرخپلو شونډو ګوتی کیښودی دځنګ کوټی تهیی اشاره وکړه.

- هغه تراوسه دلته دی؟

کنول ځواب ورکړ:

هوکی.

– ډیر ښه، هغه دشیدو پیاله جګه کړه اولاپی شونډی نه وی پری لګیدلی چی له کور نه بهر دخلکو شور ماشور اوچت شو.

کنول په‌وار خطایی وویل:

لکه چی بهرجګړه شوه.

سکدیو حیران شو ویی ویل : جګړه!

نه‌داجګړه نه‌ده ما له کلیو الیو څخه دفریادونو اوچیغو غږ ونه واوریدل لکه چی هغوی را ورسیدل.

– څوک ؟

– د هندو تولنی توریالی ،زه اوس بیرته راځم.

هغه داوویل او توره یی ورسره واخیسته خودی لا له کوټی نه‌ؤ وتلی چی څوک په چیغو او منډو انګړ ته‌ور ننو تل دوی ټولو چیغی وهلی: هغوی را غلل ،هغوی را غلل مونږ یی ووژلو سردار چیرته دی؟

سکدیو څو ځلی هڅه وکړه چی له هغوی نه‌وپوښتی چی څوک را غلل.

څه‌وشول ؟ خو هغه هرځل داځواب اوریده چی هغوی پر کلی حمله وکړه.

سکدیو غوښتل چی په‌منډه بهر ووزی خویوه ځوان ترمټ راونیو، ده غوښتل خپل مټ خوشی کړی اولاس یی کش کړ ویی ویل : پری می ږده پری می ږده چی ووزم.

ځوان ورته‌وویل:

نه، هغوی ډیرزیات دی ، تاسو دمرګ کومی ته مه‌ورځی، هغوی

پەدې کې سردار ستر گې مىبلى لەخپلى کوټې نه را ووت ، پەويره
يې وپوښتل :
څەخبره ده ؟
هغوى دشپې مهال لەسينده راپورې وتلي وو ، ناڅاپه يې حملەراوړه
، شاوخوا ټول کلي يې ويجاړ کړي دي.
زيات پوځيان يې زموږ کلي ته هم راننوتلي دي او څوک چې پەمخه
ورځي بې دريغه يې وژني ، ډيرى څپرى يې وسوځولي اوس دمقابلې
فرصت نشته پەيوه اوبله دتيښتې اوځان ژغورلو فکر بايد وکړو.
سردار سکديو تەوکتل هغه وويل:
تاسو ټول دلته پاتې شى زه ورځم هيلەده چې لەيرغل څخه يې را
ايسار کړم.
پەدې کې څو نور کسان هم پەمنډه انګړ تەور ننو تل او ويې ويل چې
دراجه پوځيان دې لورى تەراروان دي.
دسردار پەاشاره ځوان دسکديو مټ خوشي کړاو هغه پەمنډه بهرته
ووت.

(۲)

تر لرې لرې ځايه پر جونګړو اورونه لګيدلي وو او خلک هيبت ځپلي
پەيوه اوبلەخوا تښتيدل ، دزياترو مخه دغره پە لورى وه ،زياترو لاتر
اوسه پرخپل بوډا سردار تر ټولو زياته تکيه کوله اودهغه دکور پەلور
ورمات وو ، دپليو سرتيرو يو ټولګى ديوه سپاره پە مشر تابەدسردار
دکور پەلور ورروان ، اوپەوژلو او ورانولو بوخت سکديو پەمنډه هغوى

ددوی ځوان افسر چې پراس سپور ؤ چې کله یې پرسکدیو سترګی ولګیدی له آس څخه پلی شو او دپوغ سالار! دپوغ سالار!

چیغې یې وهلې سکدیو ته ورغی او پرپښو یې ورپریووت.

سکدیو هغه په غیږ کې ونیو، هغه رام داس ؤ.

– دبګوان (خدای ) شکر دی چې ته روغ یې ، ووایه څه دربانډې تیر شول؟

سکدیو وویل:

دادخبرو خت نه دی ، ته سمدستي پراس پښه واړوه او پوغ دوژلو اولوټ اوتالان څخه ایسار کړه.

– مګر....!

– مګر څه..... زه درته امر کوم.

– ستا امر سرپرسترګو خو اوس دپوغ سالار ګنګارام دی.

هغه امر کړی دی چې چاته دافرصت ورنکړی چې ژوندی وتښتي.

– زه درته امر کوم!!

سکدیو خپل غږ دروند او لوړ کړ.

دپخوانی سالار قهرجنو کتو درام داس په زړه کې د اطاعت پخوانی جذبه راویښه کړه سمدستي پر آس سپور شو اودهغو جونګړو اوخپرو شاته ورک شو.

سکدیو نورو سرتیریو ته هم امرو کړ یوی اویلی خوا ته تیت شي اوټول پوغ ته داحکم ورسوي چې نور وژني اولوټ بند کړي ، پوځیان له څه دلیل او ځواب

ددغه کلی په بل کونج کی گنگارام پریوه لوړه غونډی دسپین آس جلب را ټینگ کړیؤ اودخپل ژوند تر ټولو لویی کار نامی ننداره یی کوله، اته-لس تنه سپاره دخپل سالار دساتنی لپاره شاوخواته ولاړوو اوتش لاس ټیټ ذاتی یی د نجیب زاده گانو ټولنی دتوریالیودوینو څنبو نکو تورو په مخ کی لیدل چی وارخطا به‌لویدل اوولاړیدل اوپه یوه اوبله خواتښتیدل ، وژل کیدل او ټپیان کیدل.

دوی دخپلو جنگی دیو تاگانو دبری‌ناری وهلی ناڅا په رام‌داس راښکاره‌شو چی آس یی چار گام‌رازغلاوه گنگارام دغسی له‌میدان څخه دده را تلل نیک‌شگون ونه گاڼه‌رام‌داس چی نژدی ورغی اس یی ودرواوه‌او ویی ویل:

باداره! دلښکر سالار پیدا شو، هغه امر وکړ چی دغه خلک پریږدی اوله‌وژلو او لوټ څخه لاس واخلی.

- کوم دپوغ سالار داحکم ورکوی؟ ، دپوغ سالار خوزه یم ،رام داسه فکرخودی پرځای دی؟

- زما حواس پرځای دی باداره! ماهمدا اوس دپوغ سالار سکدیو ولیده، هغه‌ماته په‌کلکه امر وکړ چی پردی تش لاسوخلکو باندی تیری ونکړو.

- سکدیو! هغه‌دلته‌دی، ژوندی‌دی‌اودا امر ورکوی چی تاسو زما امرمه‌منئ یعنی زما اوراجه پرخلاف بغاوت‌وکړی!

... داخلک بی گناه

راسي يي زمونږ دحکومت پرخلاف دبغاوت بيرغ پورته کړی دي هغه چيرته دي؟

رام داس دکلي بل اړخ ته اشاره وکړه ويي ويل:
هغه لوري ته دي تاسو زما سره راځئ!

گنگارام اودهغه ملگرو په رام داس پسي آسونه وزغلول. دگنگارام له وررسيدو څخه مخکي دپوځ زيات شمير سرتيري دسکديو څخه خبر شوي وو او هلته ورتول شول. دټيټ ذاتو سردار او ملگريو يي داسي احساس کړه چي بلاتم شوه، ورو ورو راووتل او سکديو ته چي نژدي ورغلل د سرتيريو له ډلي ته بيل لې لري ودريدل، سکديو يوازي يو نظر دبوډا سردار غمجني څيرې اودکنول ډکوسترگوته وکتل اوله پيښيماني يي سرښکته واچاوه.

يوځوان يوتپي هلک راوست اودسکديو په پښو کي يي څملاوه اودهغه مخي ته ودريده. سکديو وليدل چي دماشوم له تتبر څخه دوينو فواره راخوتيږي اودهغه دويريدليو سترگو نه پرته په نوريدن کي دژوند نخښي ختمي شوي دي. سکديو پوهيده چي ددغه ماشوم له مور پرته دډيرو نورو ميندو، نارينه ؤ، ماشومانو او بوډاگانو سترگي اوس پرده ښخي دي. ده ته د سرپورته کولو پرځاي خپل پام هغه ماشوم ته وراړول اسانه وو. دهغه ترخنگ کيناست توره يي پرځمکه کيښوده اودماشوم سريي په لاس تکيه کړ راپورته يي کړاو په ځيريي ورته

کیښود ، یوه ښځه له زړه لړزوونکیو کړیږو سره وړاندې ورغله او دماشوم
مړی یې پورته کړ او پر سینه پورې یې ورکلک کړ.
سکدیو جګ شو او ودرید ، سر تیریو ته یې وکتل ، هغه سرتیري چې
سکدیو یې په ډیرو میدانونو کې پر مړیو د تیریدو په حالت کې لیدلي وو
اوس پردې هک پکې وو چې هغه دیوه تیټ ذاتي ماشوم په مرګ
دومره خپه شو ، ځینو پرده ګومان وکړ چې دماغي وضعه یې روغه نه ده.
په دې کې ګنګارام او دهغه ملګري له رام داس سره را ورسیدل، ګنګارام
چې نژدې راغی چیغې یې کړې:
تاسو دلته ولاړ یاست؟ اودغه بدماشان تیټ ذاتي هم درسره ولاړ دي،
داڅه وشول ولې له ځایه نه خوځیږې؟ هغه داوویل څو ګامه نور هم
وړاندې راغی او دسکدیو په مخکې ودرید.
دهغه دخبرو په اوریدو دسردار او دهغه د څو تنو ملګریو نه پرته خلک
تول تیت اوپرک شول، خو دسکدیو په شته والي کې څوک په هغوی
پسې ورنغلل.
ګنګارام له غوسې څخه له واکه ووت سکدیو ته یې وکتل اوویې ویل:
ماچې ژوندي ولیدې خوښ شوم اودیوه پوځې په توګه دپوځ دپخواني
سرلښکر درناوی هم خپل فرض بولم، خواوس ددغه پوځ سالار زه یم .
ته چې زما پوځیان بې لارې کوې دراځه اوتولنې دواړو څخه دبغاوت
ثبوت ورکوې. تاپخپله خپله ذمه واري ترسره نکړای شوه او اوس دذاتي

کړویی ویل:
واخله دخپل برې سوغات! دخپل برې ترټولو ستر انعام درسره یوسه، او
ددې په وینو دخپل راجه اوټولنې دشاندارو کارنامو تاریخ ولیکه، چې
ستاراتلونکې نسلونه ونه وایي چې پلرونه او نیکونه یې دتورو اونیزو له
کارولو څخه ناخبره وو.
ګنګارام چیغې کړې:
زما راجه او زما ټولنه! یعنې ستا له هغو سره هیڅ اړیکې نشته ته
دغو بې دغه ناولې ټوټه پورته کوې اوزموږ په مخکې زموږ دمذهب
اوټولنې سپکاوې کوې؟
– دغه معصوم بدن ترتازیات سپیڅلې دی.
ګنګارام غابښونه وچیچل ویې ویل:
سکدیوه! ته کم ذاته یې هغې دسپې لور دربانډې کوډې کړې دی.
سکدیو ترڅان تیر دیوې زخم خوړلې مورسپکاوې ونه زغملای شو
دګنګارام خبرې یې په مړو رګونو کې نوې ژوند پیداکړ او کنګل شوې
وینې یې غیر معمولې تودوخه وموندله، هغه سمدستې مخ راوګرځاوه
دماشوم مړې یې دهغه مورته وسپاره په بېړه یې توره اوچته کړه
اوډګنګارام مخې ته ودرید، وې ویل:
ګنګارامه! ته بې زړه هم یې اوبې همته هم، پلې کیږې او که زه هم
پراس سپورشم؟
ګنګارام چې...

دازموږ شخصي معامله ده افسران او سرتیري بیا لري شول یوې اوبلې خواته ودریدل.
دسکدیو زنګ وهلی توره دګنګارام له غلیدونکی توري سره وجنګیده. دزیاترو سرتیریو له ګنګا رام څخه کرکه کیدله، خو دټیټ ذاتي هلک پرناولي مړی دلاس لګولو نه وروسته دوی سکدیو هم د ښه سلوک حقدار نه باله، بلکې دوی تردی پوری احساسوله چې سکدیو چې دټولنې کوم سپکاوی کړی دی دهغه سزا باید ورکړای شي او دټولنې د یوتا، به ده ته دګنګارام په لاس سزا ورکوي.
کنول دخپل پلار ترڅنګ ولاړه وه، سترګی یی پټی کړی وی اوپه ډیره عاجزی اوبی وسی یی دڅمکې او آسمان ټول ځواکونه دسکدیو مرستی ته را بلل.
دګنګارام دخو ګوزارونو له درولو اوهغو ته له ځواب وروسته سکدیو یوڅل زور وره حمله وکړه اوګنګارام یی مجبور کړ چې شاته ولاړ شی، دشاته کیدو پروخت دهغه پښه په وښو کی وښوئیده اوده سره له دی چې دراسنبالیدو هڅه وکړه ستونی ستغ پرڅمکه راوغورځیده څو یی هڅه کوله چې راپورته شی دسکدیو دتوری څوکه دهغه پر تټر برابره وه، ګنګارام د ډیری بی وسی په حالت کی خپل رقیب ته کتل، سکدیو توره لری کړه او ویی ویل:
جګ شه سالار صاحب! زما توره پر لویدلی دښمن پر ګوزار عادت نه ده.

سکدیو پر خپله توره دهغه دځو ګوزارونو له دفاع وروسته یو ځل بیا یوه زوروره حمله وکړه، خو داځل یې توره په ډیرزور دګنګا رام له ډال سره وجنګیده، چې نژدې نیمایي برخه یې ماته شوه اولاندې ولویده، ګنګا رام دمیړنیو دجګړو اصول په پام کې ونه نیول او ددغه وضعې څخه یې پوره پوره ګټه واخیسته پرسکدیو یې ترپخوا زیاتې توندې حملې پیل کړې، له ماتې نیمایي تورې سره سکدیو اوس ایله دګنګا رام ګوزار ونه درولای شوای. اویوې اوبلې خواته په ټوپونو دځان په ساتنه اودفاع مجبوز شو. په دغه وضع کې هغه پر مټ ځوروړوکې ټپونه هم وخوړل رام داس چې کله دهغه له متو دوینو بهیدل ولیدل نوله سکدیو سره یې پخوانی مینې جوش وخوړاو توره یې کش کړه، خو پخواله دې چې هغه میدان ته راشي ساون ورمنډه کړه د سکدیو اوګنګارام ترمنځ ودرید اوچیغې یې کړې:

ودریږئ! ودریږئ! خودستر ګو په رپ کې دګنګارام توری دسردار کوپړۍ ورسره والوزوله او هغه په ځمکه راپریووت، هغه ډیر ونه ترپیده او ډیرزر بې حرکته شو، سکدیو خپله ماته توره وغورځوله پر سردار ورټیټ شو دهغه بنې لاس یې په دواړو لاسوکې ونیو راپورته یې کړ اوپر خپل تندی یې کینبود ویې ویل:

زما مرستندوی اوز ما پلاره! ته زموږ منځ ته ولې راتلې!

دسکدیو دې خبرو پرځیان نورهم خوابدی کړل او په حیرانی یې یو بل ته کتل، ګنګارام چې لاهماغسې توره په لاس کې ولاړ ؤ وویل:

سرتیر یو چې د گنگارام امر واورید بیا یې یوبل ته وکتل:
گنگارام بیا په درانه غږ وویل: تاسو څه ته گورئ!
هغه ولې نه را نیسئ!

هغه داوویل او بیا یې خپلو څو ځانگړیو کسانو ته اشاره وکړه، هغوی راوړاندې شول او په یوه مزبوت، پړی یې د سکدیو لاسونه وتړل. سکدیو د دوی د هیلې پرخلاف څه مزاحمت ونکړ، رام داس چې د گنگا رام وضعه ولیده پرخپل ځای چوپ ودرید.

پرکنول چې د پلار په وژل کیدو یو ډول سکته را غلې وه ناڅاپه وړاندې ورغله د برښنا غوندې گړندې یې د سکدیو ماته شوې توره راپورته کړه او پر گنگا رام یې حمله وکړه، یوه سرتیري سمدستي خپله توره وروړاندې کړه او دهغې د گوزار د درولو هڅه یې وکړه خو پوره بریالی نه شو او د گنگا رام مټ زخمي شو، دوهم سرتیري په یوه ټوپ د کنول له لاسه توره واخیستله.

د سکدیو ټول پام د سردار د مړي په لوري ؤ، چې کله یې ناڅاپه سترگې راپورته کړې کنول یې د دوو سرتیرو په منځ کې د خلاصون په هلو ځلو ولیده، د هغه له خولې ناڅاپي «کنول» چیغه ووته، بیا یې گنگارام ته وویل چې د غه سپیڅلې پیغله پرېږده ما چې هرځای ته بیا یې درسره یم.

گنگارام ځواب ورکړ:

ته د حکومت گناهگار یې پریکړه به دې حکومت کوي. او دازما

گنگارام دخپل مټ زخم وروښود ویې ویل:

هو کې دی ته وګوره ! مګر داسې ښکاري چې زما له مجرم سره ستا ډیر ژورزړه لګیدلی دی. ته یې نوم هم پیژنې او ښایې ددې دزړه دخوښولو لپاره دی هغه ذلیل ته پلار جان وویل.

دسکدیو غیرت یوځل بیا وخوښیده، هغه سرتیری یو اوبلی خواته تیل وهل او هڅه یې وکړه چې خپل تړلی لاسونه خلاص کړي.

خوګنګارام دتوري څو که دکنول پر ټټر ورکښوده ویې ویل:

که دی ډیر لږ حرکت وکړ نو ستاد کنول خیر نشته ، سکدیو ددغه ګواښ په وړاندې بې وسه شو اوودرید.

(۳)

سبا ته دری کښتی دبیاس له سینده پوري وتلې، په یوه کې ګنګارام ، رام داس اودپوغ څو تنه سر تیري وو.

په دوهمه کې سکدیو ، کنول اوڅو تنه پهره داران او په دریمه کې څو اسونه وو، دټولنې دباغیانو دسردار له وژل کیدو وروسته ګنګارام پردې پوره باوري ؤ چې هغوی به نور بیا رامنظم نشي اوبیا به مقابله ونکړای شي بیا هم ده داحتیاط لپاره له څو افسرانو اوسر تیرو نه پرته نور پوغ همالته پرینښود اوقومانده یې خپل ورور جې رام ته وسپارله، دپوغ ځینې افسران دده پربیرته تلو خوښ نه وو خو ګنګارام ته دغه بری پر سکدیو دوروستی بری په وړاندې هیڅ ؤ.

هغه غوښتل چې راجه ته پخپله خوله د بري زیری ورکړي ، او غوښتل

به‌دراجه په پوغ کی هغه ته ديوه عادی سړی په‌نظر کتل کيدل.

په‌دربار کی دسکديو د دوسيی وړاندی کولولپاره گنگارام پرځپل کوم سپاهی اوافسر څه باور نه‌درلود.

کښتيو دبياس‌سيند په‌ړنو اوبو کی ورو ورو تالونه خوړل اودڅنډی په‌لور نژدی کيدلی.

سکديو اوکنول يوبل ته‌نژدی دريدلی وو او په‌حيرېی بلی غاړی ته کتل.

سکديو يو سوړ اسو يلی وکيښ کنول ته‌يی وکتل او ويی ويل: کنول! داتول زما په‌سبب پيښ شول ، خو زه ربښتياوايم چی‌زه می دځپل پلار په‌مرگ دومره غمجن نه‌شوم لکه‌ستا په‌پلار.

دهغه په‌ځواب کی دکنول له‌ښکليوسترگو څخه داوښکو غټ‌غټ څاځکی راتوی‌شول، دواړو ترلږ ځنډه يوبل ته‌کتل ناڅا په دکنول په زړه کی‌څه ورتير شول اوويی ويل:

غواړم زه له‌تانه يوه پوښتنه وکړم.

سکديو تری‌وپوښتل:

څه ؟

کنول وويل:

تاولی داوويل چی‌داپرېږدی او ما چی هر چيرته مۀوزړه غواړی درسره بوزی ، ايا داگومان‌دی کړی ۋ چی يوه‌تيټ ذاتی نجلی ستاسره دملگ تيا ورتيانه‌لری ؟

ژوند تر زرگونو ژوندونو گران گڼم.
کنول بیا په غمجنه لهجه وویل:
تاته ښایي دا معلومه نه وي چې زه ستا سره یوځای مرگ له تا نه پرته په یوازې ژوند انه ترزرځله زیات غوره گڼم.
کښتی له څنډې سره ولگیدی ، سکدیو او کنول د پهره دارانو په څارنه کې له کښتی نه را ښکته شول.
گنگارام وویل:
سکدیوه ! زه دانه غواړم چې ته دراجه دربار ته دیوه عام بندي په څیر لاس تړلی ولاړ شې.
دایوازې ستا سپکاوی نه بلکې د ټولنی او مذهب سپکاوی دی، ځکه خو که ته وعده وکړې چې د تیښتی هڅه به ونکړې نو زه دې همدا اوس دلاسونو او پښو دخلاصولو امر کوم تاته به ستادشان سره مناسب آس هم درکړای شي.
سکدیو ځواب ورکړ:
زه داوعده په هغه صورت کې درکولای شم چې ددغه نجلی لاسونه هم خوشی کړی، او ددې دسپرلی هم وعده وکړی.
ستالومړی شرط منم، نجلی لاسونه دې هم خلاص کړی، خو ټیټ ذاتی نجلی ته دراجه دپوځ آس نشي ورکول کیدای.
ستا په نظر چې ددې نجلی هر څومره عزت وي خو موږ یوه ټیټ ذاتي ته

- زه دا اجازه هم نشم درکولی.

- نوزه به بیا پلی ولاړشم.

- ډیر ښه دی، وعده کوی چې د تیښتې هڅه به نه کوی؟

- زه وعده کوم.

- ډیر ښه ، نو زه دی لاسونه خلاصوم ، گنگا رام سرتیریو ته اشاره وکړه اوهغوی دسکدیواو کنول لاسونه خلاص کړل.

لږ څنډ وروسته دغه وړوکی کاروان دبیاس سیند په جنوب ئی له یوی سمسوری دری نه تیر یده، له څو میله مزله وروسته سکدیو کنول ته وویل:

ستړی شوی به یی؟

کنول ځواب ورکړ:

نه، زه چې له تاسره روانه یم ستومانی نه احساسوم.

ماسپښین مهال دغه وړوکی کاروان یوه وړوکی ښارته ورسید ، درام داس په تینګار یی هلته دکنول لپاره یوه دغوایی گاډی تیاره کړه اوسکدیو یی پردی راضی کړ چې پر آس سپور شی.

ماښام مهال دغه خلک منزل ته ورسیدل. دشپې مهال دشاهی ماڼیو نه نیولی تر عامو کورونو پوری دګنګارام دستربری اود یاغیانو دسردار له ښکلی لور سره د سکدیو د مینی کیسی اوریدل کیدی.

راجه اومذهبی پیشوا دګنګارام پربری دخوښی پرځای دسکدیو

(٤)

سبا ته سکدیو دراجه په دربار کی ځوړند سرولاړ ؤ، ده پخپل خیال ځان بی گناه ثابت کړی ؤ، هغه په وار وار داویلی وو چی دانسان له مغزونو راوتلی قانون چی په ملیاردونو انسانان یی له خپل فطری حق څخه محروم کړی دی دمذهب درجی ته درسیدو حق نه لری خودده دبرخلیک په باب دپریکړی خاوندانو په انددده خیالونه باغیانه وو.

سکدیو دگنگارام دتورو نوردولو په باب خوله هم چوله نه کړه، تولی خبری یی دتولنی دهغو دښمنانو په پلوی وی چی په قانون اومذهب کی دهغوی په باب درحم هیڅ ځای نه ؤ.

له راجه سره له یوه پلوه دسکدیو دپلرونو او نیکونو دخدمتونو پاس ساتل اوبل لوری ته دمذهبی مشراونجیب زاده گانو دقهراوغضب ویره وه، هغه دا غوښتل چی «دیوتا» هم ناراضه نشی اودسکدیو ژوند هم وژغورل شی.

خوسکدیوپخپله دځان بربادولو سببونه برابرول.

دهغه داوینا چی یو برهمن اویو عادی انسان هیڅ توپیر نه لری داسی یوه خبره وه چی دربار یانو واوریده تول دده پرخلاف ودریدل، ده دخپلو دغو خبرو دبیرته اخیستلو پرځای دهغو په تائید داسی دلایل راوړل چی پر هغو دده دیرو غوره دوستانو هم داگومان راغی چی سکدیو پر یوی تیټ ذاتی نجلی دمینی له امله دماغی توازن له لاسه ورکړی دی.

سکدیو هم پوهیـده چی په‌دی معـامله کی‌راجـه دمـذهبی مـشـر په وړاندی بی وسـه دی اود دوسیی دپریکړی داعـلان په مهال به‌همـاغـه الفاظ دده ترخـوله راوزی چی‌دمذهبی مشـر پر ظالمـه خیـره یی کرښی کښل شوی‌دی، دراجـه په‌باب دی پوهیـده چی فطرتاً بی‌رحمـه‌نه‌دی خو دمذهبی پیشوا په‌باب یی باورؤ چی‌زړه یی ترکانی سخت‌دی.

ترماسپښین پوری راجه څه پریکړه ونکړای شوه.

مـذهبی مـشـر ته‌داگومـان پیدا شـو چی راجـه لـه‌سکدیو سره دذاتی خواخوږی په‌خاطر هغه ته‌له‌سزا ورکولو څخه ځان تیروی ویی ویل:

تولوا کـه! مـجـرم چی څـه‌ویلای شـوای ویلی یی دی، اوس یوازی دابایـد وکـتل‌شی چی دهغـه گناه دسـزا وړده اوکـه‌نـه، اودا پریکړه به زموږ په خـوښـه‌نه‌کیږی. بلکی دابه‌گـورو چی‌زموږ دټولنی قـانون دداسی گناهگار گپـاره څـه سزا ټاکلی ده، دراجـه په‌مـحکمی کی هر مجرم‌ته‌داحق شتـه چی‌ځان‌بی گناه ثابت کړی‌خودا اجازه نشی ورکول کیدای چی‌خپل گناهونه‌روا وگنی.

تولوا کـه! داثابتـه شـوی ده چی مـجـرم یولوری تـه‌له‌یوی ټیټ‌ذاتی نجلی سره مینه کړی او هندو مـذهب‌یی‌سپک کړی‌دی. دوهم‌داچی دحکومت دیاغیانو په‌ملاتړ یی دپاچا دسرلښکر سره جگړه کړی‌ده.

اعلیحضرته! زه ویریږم چی کـه‌له‌دی سړی سره یوه ذره هم‌رعـایت‌وشی نو دده په خیـر پـه‌زرگونو سرشاره ځوانان‌به‌د ټولنی مقابلی ته‌چمتو

ددوسیی پریکړه بەنن ماښام اعلان شي ، مجرم اوس جیل تەبوزئ.

سپا هیانو سکدیو دجیل پەلوری بوتلو، راجەلەمذهبی پیشوا ، گنگارام اوځونورو درباریانو پرتەنور ټول رخصت کړل او لەدوی سرە یی دمجرم پردوسیه دپریکړی لپارە مشوری وکړی.

**(٥)**

ماښام مهال لەشاهی مانی څخه بهر دنارینەاوښځو سخت بیروبار اوشورماشورؤ، سکدیو دایستلوتورو پەسیوری کی دگنی گوڼی پە منځ کی تیرشو اوشاهی دربارتەورغی. ترټولو ړومبی دده نظر پرراجه پریوت، راجه دده کتوته تینگ نەشو مذهبی پیشوا تەیی مخ وروگرځاوه.

اوبیا یی ورمیږتیټ کړ، سکدیو دراجه نورو مشاورینو تەوکتل ، هغوی هم ټولو مذهبی پیشوا تەوکتل. دگنگارام اومذهبی پیشوا نەپرتەدنورو ټولو زړو نەدرزیدل، مذهبی پیشوا وویل:

ټولواکه! مجرم دپریکړی داوریدو انتظار کوی.

راجه تکان وخوړ مذهبی پیشوا تەیی وکتل اوترلږ ځنده چوپتیا وروسته یی پەغمجنه لهجه ځواب ورکړ.

پریکړه تاسو واوروئ! اوبیایی سترگی ښکته واچولی.

مذهبی پیشوا سکدیو تەوکتل او ویی ویل:

سکدیوه ! ټولواک دخپلی شاهانه سخا څخه کارواخیست او

دمرگ له‌سزا اوریدو وروسته سکدیو یوځل بیا هم د دربار پرحاضرینو نظر راوګرځاوه، هیڅ‌ یو له‌ده‌سره دسترګو پرستر ګو کیدو جرئت‌ونه کړی شو، دده دزړه له‌تل نه داغږ راپورته‌شو چی ته ګناهګار نه‌یی، ګناهکاران دغه‌خلک‌دی چی سرونه‌یی دپښیمانی پربوج ښکته شوی دی. ته‌ددغو بدمرغه خلکو له‌ډلی څخه نه‌یی چی په نړی کی‌له‌څه نخښنو پرینښودو پرته ورکیږی، ستا دوینو په‌څاڅکو به‌دژوند دبڼ په زرګونو مړاوی بوټی اوونی بیا تاند شی او وبه غوړیږی.

دضمیر غږ د سکدیو پرشونډو یوه بریمنه‌موسکا را وغوړوله، خو ناڅاپه یی کنول ورپه‌زړه شوه او موسکا یی ورکه‌شوه، دده په‌زړه کی یو بل غږ دا را پورته‌شو چی بیشکه‌ستا قربانی یوه‌لویه‌قربانی‌ده خو ته له مرګه‌وروسته یو شین‌بوټی زهرجنو بادونو ته‌پریږدی اوولاړ به‌شی.

سکدیو ته په‌دی‌نړی کی دکنول بی‌کسی خپله ښکاره‌شوه، سره له‌دی چی‌دده داهیله به‌ونه‌منل شی بی‌اختیاره غوندی وړاندی ورغی اودراجه په‌پښو کی پریووت.

ټولواکه! ماچی څه‌وکړل هغه می‌سهی وبلل او ومی کړل، خوکه تاسو هغه‌ګناه ګڼی اوماته‌دمرګ سزاراکوی نجلی بی ګناه‌ده، دهغی له دی پرته‌نور څه قصور نشته چی‌دخپل پلار مرګ یی په چوپه خوله‌ونه زغملای شو.

عالی مقامه! که‌زما دپلار اونیکه دتیرو خدمتونو په‌سبب پرتاسو څه

جگ شو اودراجه پرخیره یی دخپلی غوښتنی نخښی لیدلی، راجه په عذر ته ورته کتو مذهبی پیشوا ته وکتل خو هغه مخ واړاوه. دراجه زغم ځواب ورکړ ناڅا په جگ شو بلی کوټی ته ولاړ، سکدیو مذهبی پیشوا ته وکتل او ویی ویل:

زه له تاسو نه رحم نه غواړم، یوازی دومره درنه پوښتم چی تاسو دی نجلی ته څه ډول سزا غوره کړی ده؟

مذهبی پیشوا ورته وویل:

مانه غوښتل چی هغه درته ووایم اوته نور هم وځوریږی. خو که ته پوښتنه کوی نو غوږ شه، دغی مکاری نجلی دټولنی یو تکړه زلمی پلید کړ، په خپل فریب کی یی راگیر کړ، مذهب یی پری سپک کړ او هغه یی دخپلی ټولنی پرخلاف بغاوت ته وهڅولو ددی جرم په سزا کی که ته له هغی سره هرڅومره مینه لری دټولنی قانون دانشی بخښلی، ټولواک دی نجلی ته سزا ټاکلی ده، ددی به لاس او پښی تړل کیږی او ستا دمړی داور لمبو ته به غورځول کیږی.

دمذهبی پیشوا له دی خبرو سره دسکدیو دبدن رگ رگ له غوسی ډک شو په لړزیدلی غږ یی وویل:

ذلیل انسانه! کاشکی تاته هم زما په څیر داسی څوک پیدا شوی وای چی ددغه مذهب اوعقیدی برجونه یی درته نړولی وای ښا یی ته هم دیوه وحشی ځناور پر ځای انسان شوی وای.

دمذهبی پیشوا دغه ...

دشاهي ماني پر بهرني دروازې دسکديو پخواني ملگرې رام داس ولاړ ؤ، دهغه له سترگو اوښکې بهيدې، سکديو هغه ته يو نظروکتل اوبيا يې سترگې بلې خواته واړولې.

# وروستی تکیه

دشپی مهال سکدیو ته یوازی په جیل کی هره شیبه تراونیو اومیاشتو ډیره اوږده ښکاریده ، دژوند رڼا دخپلو ټولو ښایستو نوسره دده دسترگو په مخ کی پیکه کیده او دمرگ تیاری یی په زړه اوماغزو زور راووړ ، دشپی تر توری پردی لاندی یی دتوری دیوی هیبت ناک تصویر په سترگو کی نښیده.

هغه وویریده سترگی یی پټی کړی، خو ویروونکی تیاری د مرگ په هیبتناکو کړسندو خندا گانو بدلی شوی چی دده په غوږو نوکی کړنگیدلی ، ساه یی بنده بنده کیده ،اوغوښتل یی چی دلیونیو په شان چیغی ووهی.

خودغه حالت یی تر ډیره دوام ونه موند، کنول یی ورپه یاد شو چی بیا په دغو تیارو گوټو نو کی په زرگونو ډیوی ورته بلی شوی په خیال کی کنول وروگرځیده چی له ده څخه بیلیده اویوی ځانگړی کوټی ته یی بیوله، ددی په سترگو کی اوښکی ځلیدی خو دی سکدیو ته پر شونډو دموسکا غوړولو ناکامه هڅه کوله.

چي دکښتې له ډوبيدو څخه دکنول ترکوره اوبيا تراوسه پوري ديوه ډير ستر ځواک په لاسوکې لوبيده، دي پخپله خوښه نه ؤ بې سده شوی چې دتيټ ذاتو کورته ورسيږي، دی پخپله اراده نه بلکې دکوم بل چا په غوښتنه دآم خوړلو ته مجبور شوی ؤ. هغه څوک ؤ چې دده لاس يې سيند ته دآمو نو له غورځولو نه را ايسار کړ؟ هغه څوک ؤ چې په نيمه شپــه کې يې کنول ته آم ورکـړل او ور ويې ليـږله، چې دده دارادی پرخلاف يې دده دخودی په عبادتځای کې ددیو تاګانو تصويرونه لرې کړل اودهغوی پرځای يې ديوی تيټ ذاتي نجلی تصور کينبود، هغه څوک ؤ چې ددیو تاګانو په شته والي کې يې يوی تيټ ذاتي نجلی ته دده پرزړه دتسخير تولی لاری ورو ښودلی؟

پردغو پوښتنو له غور وروسته دسکديو خيال باورته نژدې شو چې يو نامعلوم او زورور ځواک تراوسه پوري په هر نوی ګام کې دده لارښوونه کوی، له دی سره يې داخيال په زړه کې را پيدا شو چې ښايې هغه زورور ځـواک داخـوښ نکړی چې ددی لوبي وروستـی ننداره دده اودکنول پر غمو ونکيو مرګونو پای ومومی.

دبی وسی اومـايوسی تربوج لاندی ځـپل شـوی زړه ددغـه ځـواک دوروستي بنياد له نکيي په توګه دمنلو تائيد وکړ، سکديو پ مخ پريووت په ډيري عاجزی اوزاري يې دازمزمه کړل:

ای ديوتا، ای د ديوتاګانو ديو تا...!!

ده چې دومره وويل ودريد، ددغه سترځواک په باب تصور چې د ده په

له لږ فکر وروسته یې خپله دعا داسې پیل کړه:

ای دمظلومانو اوبې گناهو ملاتړ کوونکیه عادل اوستر ذاته!

ماچې څه وکړل ستا په اشاره مې کړي دي په دې وخت کې ته ماته تکیه اوپناه کیدای شې، که ته شته یې زه مرسته درنه غواړم، که زه دلوړذاتو تولنې دعدل حقدار نه یم نو ستا درحم حق خامخا لرم، که ددیو تاگانو په څیر ستاعدالت هم ماگناهگار گڼي نو زه په خوښې له ځانه تیریم.

خودیوی بې گناه نجلې دردناک پای ماته ستاله عدالت څخه ډیر لرې ښکاري، ته داسې نشې کیدای کاشکې زما غږ اوفریاد درورسیږي!

ای ستره ذاته! ته اوس چیرته یې؟!

**(۲)**

سکدیو لاسرنه ؤ راپورته کړی چې بهرېې دپهره دارانو چیغې اوفریادونه واوریدل، تکان یې وخوړ راجگ شو اودخپلې تیاره کوټې له دروازې سره یې غوږونیو، دتورو شرنگا یې واوریده اتکل یې وکړ چې پر پهره دارانو چاحمله کړې ده لږ څند وروسته دغه چیغې اوفریادونه دتېپیانو ترزگیرویو پورې محدود شول اوسکدیو دپښو له ترپهار څخه داسې احساس کړه چې څوکسان دده د خونې په لور راوان دي، زړه یې په درزا شو، له بهر نه دده دروازه ته ټوري ته تیل وهل شوه له څو ځله جټکو وروسته دروازه له یوه درز سره خلاصه شوه، سکدیو په یوه ټوپ بهر ته ووت اوویې لیدل چې پنځلس - شل کسان ایستلې توري ولاړ دي، دهغوی پر څیرونقابونه غوړیدلې ووځکه ده ونه پیژندل، یو تن

یو پهره دار له مورږ نه تښتیدلی دی ، په لږ ځنډ کی به نور یوځیان راورسیږی.

سکدیو د هغه غږ وپیژاند ورته ویی ویل:

را مداسه ! داته یی.

رامداس ورته وویل:

اوس دخبرو وخت نه دی په ماپسی راځه!

سکدیو له رام داس سره دوه دری گامه واخستل خو هغه یوځل بیا ودرید.

رام داس په غوسه شو ویی ویل:

ته ولی ودریدی! پوځیان به اوس راورسیږی.

زرکوه ستالپاره آس تیار ولاړ دی.

سکدیو په غمجنه لهجه ځواب ورکړ:

رام داسه! هغه مظلومه نجلی ترمازیاته ستا درحم او مرستی حقداره ده، که زما لپاره دی خپل ژوند په خطر کی وغورځاوه او جرئت دی وکړ نو له مانه داتمه مه کوه چی هغه په خطر کی پریږدم او وتښتم.

رام داس وویل:

هغه لکه چی په هغه کوټه کی ده راځه بیړه کوه!

سکدیو ،رام داس او ددوی نور ملگری دپهره دارانو له مړیو نه تیر شول او د جیل دیوی بلی کوټی په لور ورغلل او په یوه ځواکمنه جټکه یی

لاندي يې آس درولی ؤ ولاړؤ ، رام داس وويل:

بیړه کوی لکه چې تبتیدلی پهره دار پوځ خبر کړ.

غوړونیسئ! دکلا له لوری غړونه راځی، سکدیو زر پر آس سپور شو او کنول ته یې لاس ورکړ او ترشایی ورپسی سپره کړه.

رام داس سکدیو ته خپله توره ، لینده اوغیشی ورکړل اوویی ویل:

داواخله ښا یې در ته په کار شي، دوی به په تاسو پسی درشی، تاسو ځنګل ته مخه کوی دوی ښا یې دسیند لوری ته پام واړوی.

سکدیو آس پونده کړ او کنول له شاورپسی جوخته شوه.

آس دیوه توپ سره دشپې په تورو پردوکی ورک شو.

رام داس نور سپا هیان یوی اوبلی خوا ته تیت کړل اوپخپله په همغه ځای ولاړ ؤ اوتر ډیره پوری یې دآس دپښو ترپهارته غوږ نیولی ؤ.

دغه ترپهار ورو ورو خپ کیدلو اوبالاخره ورک شو.

اودکلاله لوری اوس غړونه صفا اوریدل کیدل.

**(۳)**

درام داس له اتکل سره سم تبتیدلی پهره دار پوځ راخبر کړ خودده دغه اتکل سهی نه شو چې هغوی به یوازی دسیند په لوری په سکدیو پسی ورشی، ګنګارام چې له پیښې نه خبر شو دښار ځلور و لوریو ته یې سپاره ورپسی واستول اوپخپله یې دیوه ټولګی سره دځنګل لاره ونیوه.

دتیښتې پرځای چې ددښمن دغیشو تربرید لاندې بهراتلل داغوره وګڼله چې دشپې له تیارې څخه ګټه اوچته کړي هغه په ګڼ ځنګل کې اس ودراوه پلې شو اوبیا یې کنول ته هم لاس ورکړ چې پرپلې کیدو کې ورسره مرسته وکړي.

بیا یې دآس جلب دې ته په لاس کې ورکړ او ورویې ورته وویل چې چوپه اوسې.

ګنګارام چې په ګڼ ځنګله کې دسکدیو هیڅ درک ونه لګولای شونو سپروته یې داسونو د درولو امر وکړ ، سکدیو په تیاره کې دګنګارام دملګریو سم شمیر معلوم نکړای شو، خو دده په ګومان له ۱۵ څخه زیات او ترشلو لږوو.

لږ ځنډ وروسته دګنګارام غږ اوچت شو.

زما په ګومان خوکه دې لوري ته را غلې وي نو ډیر وړاندې نه دې تیر شوې ، وړاندې ځنګل دومره ګڼ دی چې دشپې په تیاره کې اس ځغلول پکې اسانه نه دي، هغه به دلته چیرته غلی شوی وي اودسهار انتظار به کوي ، سهاریې موږ هم باید په همدغه ځای کې ولټوو، دورځې په رڼا کې به دهغوی پل هم معلوم کړای شو.

دګنګارام دغږ په پیژندلو دسکدیو وینې په جوش را غلې.

هغه بیا وویل:

موږ باید له دې ځایه دوه دوه اودرې درې تنه سره تیت شو اوتر سهاره

هغــه کســان چی پنځلس - شل تنه پهـره داران یی ووژل اوبندیان یی خوشی کړل ورسره وی اوهغوی به دوو دریو تنو ته وسلی غورځول خوبښ نکړی، زه لا په دی ویرېږم چی هغـوی بـه دلتــه اوهلتــه غلی شـوی وی اوزموږ دورتلو انتظار به کوی.

گنگارام وویل:

بی همته کیږه مه، تښتیدونکی مقابله نه کوی ، تر لږ ځنډه به زموږ پلی پوځ ورپسی راورسیږی ، اوس موږ یوازی دامعلوموو چی هغوی په دی ځنگل کی شته که نه؟

دگنگارام له خبرونه سکدیو دراتلونکیو خطرونو اندازه معلومه کړه او یوی پریکړی ته ورسید.هلتــه گنگارام خپله ورو ستی خبره پوره کړه او ورسره جوخت دسکدیو له لیندی څخه یوغیشی ووت او د هغه پر پښتی ونښت.

گنگارام له یوی وړوکی چیغی سره سرپرزین ورکیښود ، سپاهیان لاهم پوهیدلی نه وو چی ځلور پنځـه غـیشی نور را غلل او په نورو کســانو ونښتل.

یوه سرتیری چیغی کړی.

وتښتــی ، وتښتــی ، هغـوی همــدلتــه دی لوی سالاریی وواژه ، لـه ځلورو لوریو د غیشو باران دی ، وتښتی وتښتی.

یوغیشی پریوه آس ولگید اوهغه نور تول آسونه وترهول، گنگارام چی

تش شو.

سکديو دکنول له لاسه دآس جلب ونيو ويې ويل:

که مانن ستا دپلار دبدل په اخستلو کې غفلت کړی وای ښا يې ټول عمر به مې افسوس کاوه.

کنول وپوښتل!

هغه هم له دوی سره ؤ ؟

- زما لومړی غيشې دهمغه پر ټټر کې خښ شو، اوس بيړه کوه موږ په شپه شپه کې له دې ځنګل څخه بايد تير شو، دايې وويل او پراس سپور شو اوکنول يې له شاورپسې سپره کړه.

# له ښارونو څخه لرې

پرختيځ افق دتيارولمنې مخ پرتوليدو شوى اودسهار نخښې را ښكاره شوې، په گڼوونوكې دشبنم څاڅكي لاندې پرو ښولويدل . سكديو اوكنول له ستومانه آس نه پلي شول، په دغه اروا پاله تنهايي كې ددوى زړونودمينې ،آزادۍ او خوښۍ زړه وړونكي راگ زمزمه كاوه، ژوند له خپلو زړه وړونكو حقايقو سره په موسكاؤ.

كنول په غير ارادي توگه يوه څانگه راونيوله اوغوښتل يې ماته يې كړي ، دڅانگې له ټكان سره پرسكديو دشبنم څاڅكي راپريوتل، داپريشانه غوندې ودريده اوسكديو وخندل هغه بل ښاخ راونيو اوويې څانډه بيا دڅانگو نه څو گامه شاته شو.

كنول په خندا شوه اوجامې يې وڅنډلې ويې ويل:

زه له باران څخه نه ويريږم اوچې تەراسره وې له هيڅ شي نه ويره نه لرم.

سكديو وويل:

کنول وپوښتل :

ستا باور دی چی اوس موږ ته هیڅ خطر نشته؟

سکدیو ځواب ورکړ:

اوس موږ دخطر لهساحی راوتلی یو، دوه دری میله چی نور ولاړ شو ددغه ریاست لهبریده بهواوړو، پردی سربیره دګنګارام انجام چی ووینی لومړی خو بهراجه پخپله په موږ پسی څوک نهرا استوی اوکهدا مسوولیت چاته وسپارل شی هم ترڅو زموږ دآس پل پیدا کوی او تردی ځایه رارسیږی موږ بهلهسرحده اوښتی یو اوووړاندی بهتیر شویوو، اوس بهترلږ ځنډه پوری زموږ آس تازه دمه هم شی.

دوی ښکلی مرغی را غلی او په یوه مخامخ ښاخ کیناستلی وچغیدی اوبیا بیرته والوتی.

دسکدیو لهخولی بی اختیاره دآزادی کلمه ووتهاوبیا یی کنول تهوکتل ویی پوښتل:

کنول! ته پوهیږی چی موږ چیرته روان یو ؟

کنول ځواب ورکړ.

ترڅو تهرا سره ملګری یی زما داسی پوښتنو ته اړتیا نشته.

سکدیو وویل:

ماتر لږ ځنډمخکی پوری دافکر کاوه چی ښا یی پهدی دنیا کی زموږ لپاره هیڅ ځای نهوی خو دهغو مرغیو لهلیدلو وروسته می احساس کړه چی پهدی نړی کی په زرګونو داسی ځایونهشته چی هلته

کنول وویل:

خو مارغان هم پرخپل وخت خپلو ځالو ته ځی ، موږ هم یوځای باید دآرام ژوندانه لپاره پیدا کړو.

سکدیو لږ په غمجنه لهجه وویل:

کنول! زه اوس کوم ښار ته نشم تلای اوپه داسی کوم کلی کی هم ښه نشم ایښودلای چی لوړذاتی خلک پکی اوسی زه باید داپاتی عمر یاباید په یوه ویرانه کی تیر کړم اویا دټیټ ذاتو په کوم کلی کی پناه واخلو.

هغه غریب خلک به ستا دپلار په خیر بی کسه او مرستندویه خلکو ته په خوښی پناه ورکړی، زه به ددغو خلکو په خیر ژوند غوره کړم، ددوی وزی به پیایم او ته به...!

دکنول سترگی راډکی شوی ویی ویل:

زه به څه کوم؟

سکدیو وویل:

ته به زما دزړه درمسال آبادکړی، هغه ددیو تاگانو له خپه کیدو سره تش شوی دی، مگر ستا دااوښکی!

کنول زه ستا په غم اووير خپه یم. خو زه ډاډ درکوم چی په ژوند کی به هیڅ تکلیف درنکړم.

کنول اوښکی پاکی کړی وی ویل:

زه به له تاسره هر ډول تکلیفونه په خوښی وزغمم خو پردی خپه یم چی زما په سبب تا آرام ژوند پریښود اوداسی دزحمتونو ډک ژوند دی غوره

- کنول داسې مه‌وايه، که‌زه راجه‌واى هم ټول ژوند به‌مې ستا سره دخو شيبو تيرولو دخوښيو قيمت نه‌ګاڼه. که‌زما په‌څير دغه په دنګو دنګو ماڼيو کې پراته‌لوړ ذاتي خلک دآزادى او خوښى په نعمت پوه شي چې دتوپان څپې يې زما په‌زړه کې را پورته‌کيږې نو باور مې دى چې خپلې ماڼى به‌پريږدى اوپه دغسې ځنګلونو کې به‌واښه وشکوى او دڅپرو جوړولو ته‌به تيارشي.

کنول ترډيره چوپه ولاړه‌وه‌اوده ته‌يې کتل. دهغې له‌څيرى څخه دغم اوخپګان وريځې لرې شوى وى‌او دحسن اوښکلا ځلايې دسکديو دزړه اودماغ ټول ځواکونه‌مات کړى وو. هغه‌دعبوديت‌جذبې چې ده ته‌يې دځمکې اوآسمان دځواکونو په‌وړاندى سرپه‌سجده لګول ورښودلي وو، اوس يې ديوى تيټ‌ذاتي نجلى په مخکې سرټيټولو ته اړکړى ؤ خو سکديو خپله دغه‌ماته دخپل مردانه وقارسپکاوى وګاڼه‌راسنبال شو ټکان يې وخوړ اوويې ويل:

کنول! راځه چې ناوخته کيږى.

دوى دواړه يو ځل بيا په سترى اوستومانه آس سپاره‌شول.

**(۲)**

ماښام مهال ؤ، سکديو اوکنول ديوه خوړ پرغاړه له‌آس نه‌پلي شول، سکديو زين ترى لرى کړ اوپه‌وښو کې يې دڅريدولپاره خوشى کړ، پخپله په شنو وښو کې پر يووت. کنول ده ته‌نژدې کيناستله.

سکديو و غځيدويې ويل:

مور دواړه وړی شوی يو.

- نن شپه ښا يی پراوبو گوزاره وکړو، سبا وختی ښا يی د شپنو کوم کلی ته ورسيږو ، که په آس کی دوړاندی تلو توان وای نو همدا نن به مو کوم کلی ته ځانونه رسولی وای خو هغه ځواب راکړی دی.

زه ترلږ دمی جوړولو وروسته شاوخوا لتهوم ، که می کوم شپون وليد ستالپاره به شيدی تری راوړم.

ته ستومانه يی آرام وکړه ، زه ډيره وړی نه يم ، سهار ته به بيا گورو ،زه دی اوس يوازی نه پريږدم چی ولاړ شی.

لمر لويدلی ؤ اوپرلويديځ افق خورو ورو دوريځو پرتوتواودسرخی پرځای تياری زور وری کيدی، دماښام ديخ شمال ځپو دخوړ په رنو اوبو کی وړی وړی ځپی جوړولی ورو ورو پراسمان دستوريو کاروان را ښکاريده.

يخنی هم ورو ورو زياته شوه، سکديو جگ شو کنول ته نژدی کيناست.

- کنول!

- باداره څه دی؟

- زه داسی احساسوم لکه له کلونو کلونو چی دواړه يو دبل ملگری يو. اوهيڅکله نه وو سره بيل شوی ، داسی راته ښکاری چی دهغو ستوريو دشميرنی په وخت کی پخوا هم ماله تاسره څو ځله خبری کړی دی، ښا يی په تير ژيږون کی دواړه تيټ ذاتی ووا و دمرگ نه وروسته دکومی

اومور، يو ځل بيا يو بل سره ومونډل.
نه پوهيږم چې ته څه وايې، ماته خو په وار وار داسې په نظر راځي چې ته پر ما دزړه سوى له امله داسې خبرې کوې او تسلي راکوې، که دا خبره رښتيا وي چې په تيرژوندانه کې دواړه تيټ ذاتي وو نوزه ويريږم چې کومه رشته هغه وخت زموږ ترمنځ وه اوس به پاتې نشي.
- کومه رشته کنول؟ داته څه وايې، ماله تاپرته نورې ټولې رشتې شلولې دي، اوس يوازې ته زما ژونديې، سکديو تريوه حده تراحساساتو لاندې راغی اود کنول لاس يې ونيو اوپر شونډويې کيښود.
کنول له حيانه مغلوبه شوه لاس يې کش کړ اوويې ويل:
زه ستا له ميني څخه انکار نه کوم خو د رشتې نه زما مطلب ديوه نارينه او ښځې ترمنځ روا اړيکې دي چې ښايي ديوه ذات ترمنځ کيداى شي، چې کله تاسو کوم کلي ته ننوزئ نو خلک به درنه پوښتنه کوي چې دا د تاڅه کيږي ته به څه ځواب ورکوې؟ ښايي ستا داځواب کافي نه وي چې موږ يو دبل ملګري يو اوددوى پام هغه زنځير ته نشي چې ددواړو زړونه پرې تړلي دي. آيا ته داخوښوې چې دوى ما يوه بې سره ښځه وبولي اوډول ډول خبرې وکړي؟
سکديو وويل:
کنول! چې ته څه وايې زه پرې پوهيدلی يم، که ته غواړې نو سرله نن څخه دې ته تياريم چې ستا خاوند وبللی شم...
زه پردې پوهيږم چې ددې رشتې لپاره موږ دمذهبي پيشوا مذهبي

نشي.

خو موږ ته ددې ضرورت نشته چې دهغوی په مخکې دارسم پرځای کړو ، ددې پرځای به یې دهغه سترځواک په وړاندې پرځای کړو چې دواړه یې سره یوځای کړو او دټولنې او مذهب دزیاتو هڅو سره سره یې موږ دمرګ له کومې راوایستلو.

زه داسې احساسوم چې هماغه سترځواک اوس هم له موږ سره دی.

هغه دستور یو په سترګو چې موږ دواړه په یوه ځای وینې خوښ دی ،زه یې نوم نه پیژنم خو چې زه څه وایم همغه راسره تکرار کړه.

سکدیو دکنول لاس پخپل لاس کې ونیو او وویل:

ای ستره عادل ځواکه! ته ګواه یې چې موږ نن دمیړه اوښځې په رشته سره تړل کیږو ،موږ به تر مرګه یو له بل سره ملګرتیا کوو او یو دبل لپاره به ژوندي پاتې کیږو ، ای ستر او انصاف خوښوونکې ځواکه! زموږ مرستندوی شه .

کنول ترشونډو لاندې له سکدیو سره دغه الفاظ تکرار کړل.

دسکدیو سترګو له ستوریو سره خبرې کولې اودکنول په سترګو کې دخوښۍ اوښکې ډنډ شوې وې.

سکدیو وویل: کنول! دهغه سترځواک نوم باید محبت او یا دمینې مرکزوي.

خو کنول دسکدیو په شته والي کې دکوم بل لوی ځواک دتصور اړتیا نه احساسوله هغه را تیته شوه اودسکدیو پرپښویې لاسونه کیښودل.

سکدیو وویل: نه ، نه ، کنول داسې مه کوه اوبیا یې ور کش

پټې کړې، دواړو یو دبل دزړونو درزا واوریدله، دیو بل دساه ګانو تودوخه یې احساس کړه اودواړو ریږدیدونکی شونډی سره ولګیدی.

کنول وپوښتل:

ایا ستا باور دی چې دلته موږ ته څه خطر نشته؟

سکدیو ځواب ورکړ:

نه،دلته هیڅ خطر نشته، موږ دخپل ریاست له سرحد نه ډیر لری را غلی یو ،دلوړذاتو خلکو ښارله دی ځایه په میلونو لری دی، امکان لری موږ دلته دآزاد اولس د شپنو کوم کلی پیدا کړو.

(۳)

دشپې په وروستی مهال دسپوږمی په رڼا کی سکدیو اوکنول له خوړنه پورته وتل، کنول پرآس سپره وه اوجلب یې د سکدیو په لاس کی ؤچی په مخه کی یی روان ؤ، هغوی ترډیره څنډه پوری مزله ته دوام ورکړ خو دشپنو دکلی هیڅ نخښه نه وه، په لاره کی داوبو کمی نه ؤ خوله لوږی دواړه بی سیکه شوی وو، ستړی ، ستومانه آس به یوځل ودرید اودوښونه به یې خوله ډکه کړه بیا به یی مزل پیل کړ، ماسپښین مهال یی دونو په منځ کی څو پسونه او میږی لیدل چی څریدل او دونو په منځ کی له یوه ځای نه دشپیلی خوږ غږهم را پورته کیده، سکدیو اوکنول چې پسونو ته ورنژدی شول دیوی ونی لاندی یوه زړه اوشلیدلی بستره پرته وه چې دکباړو نیولو یو وروکی جال او یوه خاورینه پیاله پراته وو.

کنول بیا یوې ونې ته اشاره وکړه ویې ویل :

هلته وګوره!

سکدیو چې پورته وکتل دونې په ګڼو څانګو کې یې دیوه انسان څیره ترسترګو شوه.

سکدیو وړاندې ورغی ویې ویل:

اشنا څنګه لاندې نه را کوزیږې؟

شپیلی غږوونکي تکان وخوړ ویې ویل:

څوک یې؟ له دې سره شپیلی دهغه له لاسه لاندې را ولویده.

سکدیو وویل:

وروره! موږ مسافر یو ، ستومانه او ډیروږي شوي یو.

شپون دونې پر ښا خونو ځان را وځړاوه او لاندې راکوز شو ، سکدیو اوکنول ته یې په اندیښنه وکتل.

ناڅا په یې سترګې پراس ولګیدې اوویې ویل:

دا آس ستا سودې؟

سکدیو ځواب ورکړ: هو کې!

– ډیر ښکلی دی، ما تراوسه پورې دومره ښکلی آس نه ؤ لیدلی.

تاسو دکوم وطن اوسیدونکي یاست؟

– موږ دلرې وطن اوسیدونکي یو.

– تاسو کله چې زما دشپیلی غږ اورید دلته را غلی ؟

کینبودی.

سکدیو وویل:

وروره ودرېږه! موږ به آرام کینو او ستا شپیلی به واورو، لومړی خو زموږ دلوږی څه علاج وکړه.

- تاوسو وږی یاست؟

سکدیو ځواب ورکړ؟

له‌دوو ورځو راسی مو څه‌نه‌دی خوړلی.

- اوهو! ولی مو اول راته‌ ونه‌ ویل.

- درته‌ و موویل خو تا نه‌ اوریدل.

- بس زه اوس ژرراځم، شپانه‌ دومره وویل او په یوه لوری یی منډه واخیستله، دسترګو په رپ کی یی څو وزی راګیر کړی اودونو لاندی یی راوستی د خاورو پیاله‌ یی را واخیسته‌ او شیدی یی پکی را ولوشلی، سکدیو او کنول تریوی‌ونی لاندی کیناستل شپا نه‌ لومړی پیاله سکدیو ته‌ وروړاندی کړه.

سکدیو هغه کنول ته‌ ونیوه، خو هغی تری انکار وکړویی ویل چی لومړی یی ته‌ وڅښه، سکدیو یو ځل بیا هغی ته وړاندی کړه، په‌دی کی دشپا نه‌ صبرونه‌ شوو ویل:

زموږ په‌ وطن کی خو په‌خوراک، څښاک کی نارینه‌ لومړی وی، خو داسی ښکاری چی ستاسو دهیواد رواج سرچپه دی.

او تر هغو پوري چي ددوی زغم ځواب نهٔ ورکړی هغه تینګار ور ته کاوه چي نوري هم وځنبي، سکدیو تری وپوښتل:

شپنه وروره! نوم دی څه دی؟

شپانه ځواب ورکړ: بدهو.

– چیر ته اوسي؟

– له دی ځـایه دری مـیـله وړاندی دراوی سـینـه دغـاړی ته نژدی زموږ کلی دی.

– سیند له هغه ځایه څومره لری دی؟

– یو میل.

– ستاسو په کلی کی څومره خلک آباد دی؟

هغه ځواب ورکړ:

ډیر خلک دی.

دځـو نورو پوښـتنو نه وروسـتـه سکدیو ته مـعلومـه شوه چي دسـیند پرغـاړه دشپنو ډیر نور کلي هم شتـه چي زیاتره خلک یي وزي اوپسـونه ساتي او ځیني یي بیا کبان نیسي اوګوزاره پری کوی.

دسکدیو دپوښتنو له ځواب ورکولو وروسته شپانه له ده نه وپوښتل:

تاسو څوک یاست، له کوم لوری را غلی او چیر ته درومي؟

سکدیو دده په ځواب کی خپل لنډ داستان ور ته واوراوه.

شپون دهغه پر کیسه څه وپوهیده او څه نه، خو پردی پوه شوی ؤ چي یوه ښکلي او ښایسته نجلې او یو خور ....

دسکدیو د داستان له پای ته رسیدو وروسته بدهو غوښتل چی څه ووایی خو کوم احساسات چی دده په زړه کی په غورځنګ وو دهغو د ښکارولو لپاره دده زده الفاظ اوجملی کافی نه وی ده دخپل زړه ماغزو اوژبی ټول ځواک په کار واچاوه ویی ویل:

تاسو ډیر مصیبتونه ګاللی دی ، تاسو له ماسره ولاړشی زه به مو په خدمت خوښ شم. زمونږ سردار ډیر ښه سړی دی، ستا سو داوسیدو بندو بست به وکړی ، کـه نه زما څپره هم ستاسو داوسیدو لپاره بس ده، زه یوازی یم ځانته به بله څپره جوړه کړم.

سکدیو دبدهو ددغه سیده اوساده خبرو نه ډیرتر اغیزی لاندی راغی اودمننی او احسان دیادولو اړتیا یی نه لیده ، جګ شو له ونی څخه یی دآس پړی را خلاص کړ، دآس زین اوقیضه یی تری لری کړل، په شایی وتپاوه اوبیا یی یوه لوری ته دخریدو لپاره وزغلاوه.

آس څو ګامه ورو ورو ولاړ اوبیا په وښوکی په خوراک بوخت شو، سکدیو یوه ډبره راجګه کړه اوداس په لوریی ورو غورځوله اوآس هم په منډه وړاندی ولاړ.

بدهو ترلږ ځنډه په آس پسی چی منډی یی وهلی کتل بیا یی سکدیو ته وکتل ویی ویل:

آس ډیر لری ولاړ ښا یی بیرته راستون نشی ، زه ورپسی ورشم رایی ولم؟

پوښتنه وکړه، خو سکديو دده د داډ لپاره وويل:

موږ دری واړه دټولنی غله يو، موږ ښايی ستا په څېره کی پناه واخستلای شو خو دآس غلی کول ډیر راته گران ښکاری.

دی ځواب بدهو نور هم انديښمن کړ، هغه سکديو ته دارعايت ورکولای شوای چی ځان هر څوک بولی حق لری، خوداحق يی نشو ورکولی چی يوه ښکلی ښځه که څه هم دده خپله ښځه وی دخلکو په مخکی بدنامه کړی اوهز ځای يی ورسره وگرځوی. دکنول دمصيبت په اوريدو يی له هغی سره په زړه کی دورور گلوی مهربانی را پيدا شوه او دا اراده يی وکړه چی خور به ورته وايی.

سکديو چی دده په څېره کی کرښی وليدی چی لاندی باندی کيدلی، ويی موسکل اوويی ويل:

له غله څخه می مطلب دانه دی چی موږ څه غلا کړی ده. مطلب می دادی چی موږ دټولنی له جيل څخه راتښتيدلی يو، ښه وروره اوس شپيلی راته واوروه.

بدهو دشپيلی په غږولو کی دچادفرمايښ له ردولو سره عادت نهٔ، سمدستی يی هغه راپورته کړه او په چمن کيناست اويوه په زړه پوری نغمه يی پيل کړه.

سکديو چی داوليدل چی دغه ساده اوامی شپون دموسيقی په ټولو رمزونو بلد دی حيران شو.

بدهو! ته‌شپیلی ډیره ښه غږوی، دانغمی تاته چا درښودلی دی.

- هسی په ځنګل کی په ګرځیدو کی می زده کړی.

- له دی ځایه به څه وخت بیرته ستنیږی؟

بدهو دونو سیوری ته‌وکتل ویی ویل:

زما په‌خیال نور باید روان‌شو. ماښام‌رانژدی شو، تاسو دلته تم‌شی زه‌به میږی راتولی کړم.

**(٤)**

ماښام‌چی په‌کلیوکی دسپیانو غپا اوچیغو خپلو خپلو کوړونو ته‌دشپنو او ــــ

کب نیوونکیو دراستنیدو خبرورکاوه سکدیو اوکنول له‌بدهو سره په‌یوه لوړه تیـریدل، له‌دی ځـایـه یی هغـه‌لوی ډنډ لیـدو چی‌شـاوخـوا تـه یی دځاروی پالونکیـو کلی آبادوو. دهغـو کلیـونه‌لې لری دسیند اوبه هم ځلیدونکی ښکاریدلی، دوی له‌لوړی څخه راښکته شول‌اود ډنډ پرغاړه غاړه تلل اوپه‌یوه کلی ورننوتل.

.دکلی وړوکی مـاشـومـان په‌لوبو اوخندا دبدهو مـخی تـه راووتل خـوداځل دبدهو ورور سـره دوی ناآشنا څـیـری هم‌ولیـدی چی‌دوی دډیرورنژدی کیدو جرئت‌ونه کړ، دوی له‌یو بل‌سره خپ خپ‌وپسیدل اوبیا هریوه دخپل خپل کور مخه‌ونیوه، دسترګو په‌رپ کی په ټول کلی کی داخبر خپور شوچی بدهو ورور چی دپیریانو کیسی اوروِلی تن یی دوه

په لېږ ځنډ کې دکلي نارينه او ښځې دبدهو په کـور کې راټول شـول او هلته دپښې ايښودو ځای پاتې نشو. له بدهو څخه دشلګو نو پوښتنو نه وروستـه دکلي خلک يوازې دومره وپوهيـدل چې دغـه نجلي ديوه ډير لوی سردار لورده، ددوی په هيواد کې يو ډير لوی راجه ؤ، هغه ددې پلار وواژه اونجلي يې جيل ته واچوله، ددغه زلمي سره ډيرپوځ ؤهغه دراجه سره جګړه وکړه خوراجـه ددې هم بندي کړ، يوه شپـه دوی دواړو دجيـل دروازې مـاتې کـړې اوبهـرتـه راووتل دراجـه پوځـونه يې برباد کـړل اووتښتيدل، اوس به دلته له بدهو سره اوسيږي.

دبدهو دغـه کيسـه په څو ژبو له مرچ اومسالي سره ددې خلکو لوی سردار موتې ته ورسيده، لږ ځنډوروسته هغه لکښه لګوله، سيليدلي او په توخلو راورسيـد، دموتې په ليدوخلک د درناوی اوادب په سبب يوې اوبلې خواته شول. بدهو په منډه ولاړ دګـاونډې له کـوره يې يو بل کټ راوړ اوموتې ته يې پرهغو دکينا ستلو ست وکړ.

بوډا سردار دبدهوپه حيرانوونکې کيسـه چې خلکو نوری مبـالغې هم ورسـره زياتې کـړې وې لـه پخـوانه ترزعب لاندې راغلی ؤ. اوس يې چې دسکديو دخيـري رعب اوجلال ولـيد نور هم تراغيـزلاندې راغی ، هغـه پرکټ دکيناستلو پرځای ورووړاندې شو اوغوښتل يې چې دسکديو پښو ته ور ټيټ شي خو سکديو يې لاس ونيول اوجګ شو ويې ويل:

مامه خجالت کوه ته ډير مشريې.

دراجه په زرگونو پوځونه ووژل خپله میرمن دی‌له جیل نه‌را وایستله اودلته‌را غلی. تاسوخپل هیواد پریښود اوزموږ سیمی ته‌را غلی یی ستا خدمت پر موږ فرض دی ، خو زه ویریږم چی په تاپسی تردی ځایه را ونه‌رسیږی او پر موږ مصیبت را نشی.

سکدیو ځواب ورکړ:

دغه‌سیمه‌زموږ درياست له‌بریدونو څخه ډیره لری ده، ځکه خو زما باوردی چی څوک به‌دی‌لوری ته نه‌را ځی ، له‌دی پرته زما له‌راجه سره څه دښمنی نشته، هغه‌زما دوست ؤ، ددی‌ټول مصیبت اصلی سبب له ماسره دراجه‌دپوځ دیوه افسر ځانگړی دښمنی وه، هغه‌زما دمیرمن پلار و واژه، خو اوس هغه هم‌وژل شوی دی اوزه څه خطر نه‌احساسوم، اوس که‌ستا سو خوښه‌وی پناه‌راکړی که نه‌موږ به‌بل ځای ته‌ولاړ شو.

موتی پښیمانه غوندی شو پر کټ کیناست اوویی ویل: زموږ څپرونه ستاسو پر مخ خلاص دی دلته‌به‌تاسو ته هیڅ تکلیف نه‌وی، زه غواړم ستا ټوله کیسه درنه‌واورم، زه چی دتوریالیو کیسی اورم ډیر پری خوشالیږم.

سردار داوویل بیا یی مخ خلکو ته ورواړاوه‌او زیاته یی کړه:

تاسو دلته څه کوی؟ ورځی خپلو خپلو کورونو ته!

دسرارد ددی امر له‌اوریدو سره هلته راټول نارینه اوښځی دبدهوله کوره ووتل، سردار سکدیو ته‌وکتل ویی‌ویل: ښه‌نو کیسه کوه!

سکدیو خپله کیسه لږ په‌تفصیل سره پیل کړه، دکلی څو نور په

نژدی پر ځمکه کیناستل، موټی ته ددغه کیسی هره برخه په زړه پوری وه. دسکدیو دکیسی له پای ته رسیدو وروسته یی وویل:

وبخښی تراوسه پوری ترټولو دضروری خبری یادونه ونه شوه. تاسو په دوو ورځو کی یوازی شپږدی خوړلی دی، تاسو به ډیر وږی یاست، خودادبدهو ګناه ده، زرشه بیره کوه زموږ له کوره ډوډی راوړه!

بدهو وویل:

باداره! خوراک دلته هم ډیر راغلی دی ما ویل چی تاسو ولاړ شی زه به یی دوی ته راواخلم.

سردار دبدهو سادګی خوښوله اودهغه په هره ساده خبره به یی وموسکل ورته ویی ویل:

موږ به ولاړ شو وروره! خو خواړه تاته له کومه راغلل؟

- باداره! ستانو کرکالو ډوډی راوړی ده، دولو کبان راکړی دی، مایی سنتی یوه کټوی کوچ راوړل.

باګو دوه سره کړی دغوښی ورنو نه راوړی دی.

نورو خلکو هم ډیر څه راوړل خو ما بیرته وروسپارل.

موټی وویل:

ډیر ښه ته دوی ته ډوډی ورکړه بیا یی زما کورته راوله.

په یخنی کی دوی ته بهر ویده کیدل ښه نه دی اوستاځپره ډیره وړوکی ده.

بدهو وویل:

سکدیو دبدهو سپارښت وکړ اوموتي راضي شو خپل کورته ستون شو، خو دبدهو دبي وسی په باب احساس ورسره ؤ چی کور ته ورسید دوه داونو ځادرونه اودوی روجایي یی راواستولی.

سبا ته سکدیو دموتي میلمه ؤ، اویوه اونی وروسته دشاوخوا کلیو خلک راټول شوي وو دبدهو دکور تر څنګ یی په یوه میدان کی یو کور جوړاوه پر موتي برسیره دشاوخوا کلیو وړو سردارانو هم ددی کور له جوړولو سره ډیره مینه ښودله.

(۵)

څو ورځی وروسته سکدیو له کنول سره خپل نوی کورته ورغلل، سکدیو وویل:

کنول! نور زموږ دسرګردانی ورځی پای ته ورسیدی او سرله نن څخه مونوی ژوند پیلیږی، کنول چی دننه ورغله وی لیدل چی دکلی خلکو دوی ته دکور پر جوړولو برسیره دخوراک څښاک ښه ډیر شیان انبار کړی دی چی دځو میاشتو لپاره بس دی.

دکلی په ښځو کی دا آوازه ډیره توده وه چی کنول دیوه لوی سردار لورده اوسکدیو دیوه لوی راجه دپوځونو مشر سالارؤ- دوی به له کنول سره په ناسته اوخبرو اترو اودهغی په خدمت ډیری خوښیدی. دوی به چی فرصت وموند دکنول کره به ورغلی، کومی به اور ورته بلاوه، چابه ځای ورته جارو کاوه، دی به منعه کولی خو دوی به په ډیر ټینګار داپه آرام کیناستلو مجبوره کړه.

دی گـانه ، دی به چی بهـرته ووت غـوښـتل به یی لـه شـپنو اوکب نیوونکیو سره دهغوی په کارونو کی مرسته وکړی، خودوی به لاس په نامه ودریدل اوویل به یی:

باداره! داامکان نه لری چی موږ وو او ته کوم کار کوی، ستا خدمت زموږ فرض دی.

سکدیو به بدهو ته ورتلو اوتینګار به یی ورته کاوه چی وروره ته نن ارام وکړه زه به دی نن وزی څرولو ته بوزم کـه نه زه به بیا شیـدی درنه وانه خلم.

هغه به غمجن شو ویه یی ویل:

وروره! ګوره داسی مه کوه، ته غواړی چی زه می کنول خورته په مخه دورتلو جوګه پاتی نشم.

په دنیا کی زما هیڅوک نشته، زه داسی ګنم چی ورور اوخور می پیدا کړل ، خو ته بیا په وار وارد پردیو په څیر خبری راته کوی.

موتی به امسالګوله اودورځی به یی یو دوه ځله د سکدیو دوی احوال اخیست، اوتل به یی پوښتنه کوله:

کنول لوری! ښه یی څه تکلیف خونشته؟

هغه به ځواب ورکاوه:

ښه یم پلار جانه!

دد به په مینه دکنول پرسر لاس کیښود اوویل به یی :

ژوندی اوسی لوری! ته چی مـاته پلار جـان وایی زه داسی ګنم چی په

شي اوترڅو اونيو پوري به‌دوى دهغو خلكو دسخا په‌ډوډى له‌ژونده خلاص شي اودهغو پرځاى به په خپل زيار اوزحمت ډوډى خاوندان‌شي اوله بدهو سره به يوځاى ديوه‌شپا نه په‌څير د زحمتونو ډ ك ژوند تيروى . خــو ددى خلكوپاملرنه‌لازياته‌شــوه ، ددى كلى له‌خلكو نه پرته ډنوروكليو خلك‌به چى كله دخپل لوى‌سردارليدو ته‌را تلل سكديو ته به يى يو څه خامخا راوړل ، كه‌به سكديو ورور ددوى ددى شيانو له اخيستلو څخه انكار كاوه نو دوى‌به‌بيا كنول خورته‌زارى كولى اوپردى به‌يى راضى كړه چى‌وايى خلى ، كله‌كله به‌ددوى په كور كى شـات، كـوچ ، كبــان‌او نور شيــان دومــره زيات‌شـول چى كنول به‌پر ګـاونډيو وويشل.

دسكديو غـيـرت‌اوخوى دى ترډيره پورى چوپ پرينښودهغه يو سهار چى‌له‌بسترى څخه‌را جګ شو نيغ‌سردار ته‌ورغى ، هغه‌پربستره ناست ؤ او تږخيده، دسكديو پرليدو يى وو يل: راځه‌بچيه‌راځه! پرون دكالو له كلى نه څو كسان‌را غلى وو جوار اووريجى يى‌راوړى وى.

جوار مى څو بنځو ته وركړل چى اوړه يى كړى ترسبا پورى به‌يى اوړه ستاكورته درورسيږى، وريجى همدا اوس درليږم.

سكديو وويل:

كه تاسو همدغسى كولو ته دوام وركړى ، نو زه به كوم‌بل ځاى ته‌ولاړ شم، زه دلته‌نه‌اوسم.

سردار ټكان وخوړ سكديو ته‌يى وكتل أوويى ويل:

هسی بی سببه خپه کیدل سیی نه دی.

سکدیو لې پښیمانه غوندی شوویی ویل:

زه له تانه خپه نه یم، خو زه ددی خلکو دخولو تویو لو په حاصل چی خپله خیتهډکوم ډیر شرمیږم ، ماتاسوته ځو ځلی عرض وکړ چی غواړم خپل بار پخپله پورته کړم.

زما متې ښی مزبوتی دی اوترټولو سخت کار کولی شم.

- څه کارکولی شی زویه!

سکدیو وویل:

ستا وزی چی نور شپانه ځروی ، لههغوی نه به یو څهزهوځروم ، کومه مزدوری چی تاسو نورو تهورکوی هغه ماتهراکړی.

-زویه داکار ستا لهشان سره مناسب نه دی.

- داهم زما لهشان سره مناسبه نهده چی لهنورو څخه یی واخلم اوویی خورم.

- ښهنوزما یوه خبره بهومنی ؟

- ووایه!

- واوره! تهزما زوی اوکنول می نیږورده.

څه چی لهماسره دیهغه زما په ژوند همستاسودی اوله مرګهوروسته هم ، کهتهآرام نشی کیناستلای نوچی څومره وزی ځرولای شی تری رابیلی یی کړه، تاتهبهیو مزدور هم ونیسم.

سکدیو وویل:

- ښه‌زویه! نن آرام وکړه، ماښام‌چې شپانه راستانه شول له‌بدهو سره یو ځای ماته‌راشه.

سبا ته‌په یوه پراخه ځړځای کې د بدهو له‌رمې سره دسکدیو پنځوس وزې اوځلویښت پسونه هم څرېدل، سکدیوتریوی ونې لاندې پروت ؤ اودبدهودشپیلۍ خوږې نغمې یې اوریدلې.

# راجه اومذهبی مشر

دسکدیو له جیل نه تښتیدلو او دگنگارام وژل کیدلو پیښې له امله راجه دباغیانو پرخلاف په خپل چلن کې بدلون ته اړتیا احساس کړه.

گنگارام ددې لپاره چې راجه ته دخپلې لومړی سوبې زیرې پخپله ورسوي اودنور وړاندې تلو لپاره زیات پوځیان وغواړي دپوځ قوماندې یې خپل وروړ جې رام ته وسپارله او ولاړ، دتلو په وخت کې یې جې رام ته لارښوونه وکړه چې په یوه محدوده سیمه کې خپل عملیات جاري وساتي.

هغه دخپل وروړ له تلو وروسته تر ۲۵ میلې پورې دبې وسلو انسانانو پرتښتر اوبدن دخپلو تورو اونیزواز مویلو ته دوام ورکړ، هغه خلک چې په پښو کې یې دبدن دبوج اوچتولو توان ؤ دسردار پرکلې دزورور دښمن دیرغل دخبر له اوریدو سره غرونو ته وتښتیدل او پناه یې یووړه، بیا هم ددښمن سپر و په خپلو گرندیو اسونو دزیاتو بوډاگانو او ماشومانو دتیښتې لاره ونیوه اوجې رام دهغوی په وژلو کې دسپیڅلي دیو تا

بیرغونو رپولو اجازه ورنکړه اودسکدیو پرغیشو ولګید مړشو.

دګنګا رام له مرګه وروسته راجه غوښتل چې رام داس دپوغ سالار کړي، خومذهبي مشر چې دګنګا رام په ځیر دسکدیو دهردوست مخالف ؤد جی رام سپا رښتنه وکړه، دراجه په نظر جی رام نه زړورؤ اونه هوښیار، خو دهغه دنویو بریو په باب چې کوم خبرو نه را تلل دهغی په سبب دبرهمني سردارانو نه پرته یو شمیر ټیټ ذاتي سرداران هم دهغه پلویان شوي وو.

راجه له مجبوري هغه ته دپوغ مشري وسپارله ، دوه زره تنه پوځیان یې مرستي ته ورواستول اوامر یې ورته وکړ چې پر مختګ ته دوام ورکړي.

جی رام ددښمن له وارخطایي اوتیت پرک کیدو نه ډیره ګټه اوچته کړه په خوورځو کې دهغه پوځ له کوم دیادوني وړمقاومت پرته ډیره سیمه تر واک لاندي راوستله ، په لوړو غرونو کې دتوندو لارو له امله ددوی دپر مختګ بهیر کرارؤ غرنیو قبایلو ته دخپلو کلیو پریښودلو اوشاته خوندي ځایونو ته دتلو فرصت په لاس ورغی، دحمله کوونکیو ویری دهغو خلکو ځواک فلج کړی ؤ. تریوی مودی یی په ځانګړي ځانګړي ډول دځان ژغورلو هلی ځلي کولی اوپه زړونوکی ایسار شوی دبدل اوریی دبی وسی په اوښکو بدل شوی ؤ.

نژدی دوی میاشتي وروسته یوه پیښه وشوه چې دقوم دځوانانو وینی چې له ویری او وحشت څخه وچې شوی وی بیا راوخوټیدی.

د ... دپوغ سالار په یوه ورځ کې پر کلي حمله وکړه. خلک دحمله

څخه خپلې جونګړې ليدلې چې لمبې ترې پورته کيدې، دهغوی ځينو خلکو هغه غرونه ددښمن داسونو له پښو څخه خوندي ګڼل اوهغوی ته يې بدرد ويل پيل کړل. د راجه سرتيروته ددښمن دغه جرئت يوه نوې خبره وه، ددوی سالار امر ورته وکړ چې له آسونو پلې شي اوپه هغوی پسې ورشي.

کله چې پلې پوځيان پر غرونو وروختل نوذغه خلک وارخطا شول او وتښتيدل، خو يو ځوان په غيرت راغی او پر خپل ځای ودريد، کله چې سرتيری يوه خطرناک ګړنګ ته وروررسيدل ده پرې له پاسه دکانو باران پيل کړ. دستر ګو په رپ کې پنځلس-شل تن سرتيري وغورځيدل اولاندې ورغړيدل. دهغوی بل سالار پر غره دور ختلو پرځای داغوره وګڼله چې بيرته کوز شي.

نورو خلکو چې دانندارہ له لرې ليدله نودبريښنا په څير په شاوخوا لوړو غونډيو راوختل چې بيا ددغې تنګې درې په هر ګړنګ کې ډبرې پرې ور ورغړيدلې، سرتيرې ددښمن له دې ناڅاپي حملې څخه وارخطا شول دځان ژغورلو لپاره يې يوې اوبلې خوا ته منډې وهل خو باغيان د دغې درې پر ټولو لارو دريدلي وو.

دشپې مهال چې کله چې رام دخپلو افسرانو دعمليا تو راپور اوريده نو دهغو سلو تنو جنګياليو څخه يوازې څلور تنه ټپيان ژوندي ورغلي وو.

(۲)

اودسختو غرونو په منځ کې یوه دره یې خپل مرکز وټاکه، خوځوانان له دې درې وو تل اولرې لرې تیت شول، چې دخپل قوم ځوک به یې ولیدل دې درې ته به یې را استول.

جې رام دزور په نیشه مست ؤ، هغه دخو سرتیریو زیان ته هیڅ ارځښت ورنکړ اوله ځنډه پرته یې له خپل ټول پوځ سره پر مختګ ته دوام ورکړ. د ډېرو تشو کلیو دځپرونو له سوځولونه وروسته یوه ورځ دجې رام پوځ دیوه تنګي څخه تیریده چې له پاسه ناڅاپه دډبرو باران پرې پیل شو. جې رام په وارخطایي پرغونډي دحملې امروکړ، خو هغه ځوکه چې ده دیوې غونډۍ څوکه بلله دغره یوه اوږه وه دې دخپل پوځ دځلورمې برخې په له لاسه ورکولو هغې ته ور وخوت، هلته یې ولیدل چې دغره له کومې څوکې چې پردوی دډبرو ویشتل دوام لرې دراختلې ځای نه دوه چنده نور جګ دې، د ډبرو باران ناڅاپه ودرید، اوجې رام داسې وګڼله چې دښمن دده همت وارخطا کړ، ځکه یې پوځ ته د وړاندې تلو حکم وکړ، خودده سرتیرې به ایله سل متره پاس ختلي و چې دښمن لاپه جوش اوتوندي دډبرو اورول پرې پیل کړل، له لوړ غره څخه یوې ډبرې په لاره کې نورې ډبرې ورسره رارغړولې او یو سرتیرې به چې غورځیدو نو یو- دوه نور ملګرې به یې هم لاندې ورسره غورځول. دپوځ وارخطایي دجې رام اعصاب خراب کړل اوخپلو سرتیروته یې دبیرته ښکته کیدو امر وکړ، تردې وخته دجې رام نژدې نیماېي پوځ تباه شوی ... ولګیده او دده خپل دوه تنه نور سرتیري هم

اوڅوک خپل ملګري ورسره واخیستل ، چې د سرلښکر نه علاوه ټول دوه نیمیم زره تنه سرتیري د مرګ په خوب ویده شول.
ځلور ورځې وروسته دهرم پور له هر کور څخه دژړا او تندي وهلو غږونه پورته کیدل.

**(۳)**

راجه په ځومیاشتوکي دجې رام دبریاو په باب ډیر داسي خبرونه اوریدلي وو چې حوصله یې زیاتوله ،مذهبي پیشوا څو ځله ده ته ویلي وو چې دجې رام په سالار کیدو کي د دیو تا ګانو خوښه شامله وه هغه به دهر نوي زیري سره راجه ته دغه خبره تکراروله:
ټولوا که ! که تاسو رام داس ته دغه دنده سپارلي وای نودومره ستري بریاوي به نه وي تر لاسه شوي.
راجه دنوي ماتي او تباهي دخبر لهاوریدو نه وروسته خپلو هغو ټولو درباریانو ته کتل چې دکوم یو خپلوان په مرګ یې اوښکي تویولي اوددي ماتي ټولي پړه یې دبدمرغه مذهبي پیشوا پر اوږو وراچوله، هغه په غوسه وغړمبید ویې ویل:
ښاغلي پیشوا! ووایه اوس د دیوتا ګانو رضا څه ده؟ دکوم راجه پر سرچې ستاغوندي مذهبي پیشوا وي هغه باید تخت او تاج پریږدي اوکوم ځنګل ته پناه یوسي ، تاتل ماته داسي ځای خپله پښه خیرلي ده چې هلته دي دمداخلي هیڅ حق نه درلود ووایه اوس دي خلکو ته څه ځواب ورکوم؟

راجه په غوسه شو ویې ویل:
بنه ! دبگوان دارضاوه چې دده دین داوچتولو لپاره جنگالیو سرتیریو قومانده یوه خره ته وسپارل شي. ایا دخدای همدا رضا وه چې زموږ رعیت څخه په زرگونو میرمنې کونډې اوپه زرگونو ماشومان یتیمان شي! ، نه دا دخدای رضانه وه ، ددې ټولو گناه ستا پر اوږوده.
مذهي پیشوا په عذر سردارانو ته وکتل ، یوه سردار وویل : واکمنه ! اوس پخپلو کې دجگړو وخت نه دی له دښمنانو څخه دبدل اخستلو وخت دی.
څنگه بدل ؟ نن چې تاسو دخپلو عزیزانو اودوستانو دبربادۍ کیسې اورئ نوپه سینو کې مودبدل اور په غرغنډودی. خوزه داپوښتنه درنه کوم چې هغو خلکو چې دخپلو بچیانو ، ښځو اوماشومانو وژل کیدل پخپلو سترگو لیدل ترکومه به چوپ پاتې کیدل؟ کاشکې تاسو دسکدیو پر مشوره عمل کړی وای اوددې پرځای چې هغه خلک مو خپل دښمنان کړل ددوستۍ لاس مو ورغځولی وای . خو تاسو غوښتل ددښمن په وینو خپله تنده ماته کړې خو په نړۍ کې هیڅ داسې انسان نشته چې دلوټې ځواب په خپله موقع په ډبره ورنکړي.
کله چې تاسو ته فرصت په لاس درغی تاسو پرهغوی هرډول ظلم وکړ اوچې دوی موقع وموندله پر تاسو به یې ولې رحم کاوه ؟ هغوی یوځل رحم کړې ؤ او پایلې یې لیدلې وې، هغوی سکدیو له ډوبیدونه ژغورلی و ، تاسو دهغو بدل څه ډول ورکړ ؟

هم‌وانه‌وریده . پرهغه موډول ډول توروته پوری کړل دمرگ سزا موورته غوره کړه، داهم ددیو تا گانو کرم ؤ چی ځان یی وژغوره اوولاړ، خو په‌تاسو کی به څوک دهغه ځای ډک کړای‌شی ،ایا هغه‌احمق چی دغره سرته دختلو په‌شوق یی دوه‌نیم زره ځوانان‌ووژل ددی وړ ؤ چی دپوځ سرلښکر اوسالاردی وټاکل شی؟

سردار دراجه درانه غږچوپ کړای شو خود مذهبی پیشوا لپاره دغه خبری دزغم نه‌وی هغه‌وویل: واکمنه! زه پوهیږم چی‌دی خبر تاته ډیره صدمه‌رسولی ده خو ته نه پوهیږی چی‌څه وایی؟

زه‌دسکدیو دښمن‌نه وم خو دمذهب ساتنه‌زما ذمه‌واری‌اوفریضه ده زموږ مذهب چاته له ټیټ‌ذاتو سره‌ددو مره‌اړیکو او یوځای‌ژوند اجازه نه ورکوی. مذهب اودټولنی قانون یو لوړ ذاتی ته‌له‌ټیټ ذاتی نجلی سره دمینی اجازه نه‌ورکوی‌سکدیو ددین سپکاوی کړی دی او دمذهب د ساتونکی په‌حیث‌دا زما دنده‌اوفرض وو چی هغه ته‌سزا وټاکم، که هغه‌زما زوی وای‌هم دهغه‌لپاره به‌ می بگوان « خدای» نه‌ؤ ناخوښه کړی.

راجه وویل: که‌دهغه په‌سزا خدای‌خوښ کیدای نو هغه‌به‌خامخا ځان نه ؤژغورلی اونه‌به تښتیده.

مذهبی پیشوا وویل:

ټولواکه! کیدای شی خدای هغه‌دیوی لویی‌سزا لپاره ژوندی‌ساتلی وی.

بخښې اونه يې هيروي.

مذهبي پيشوا پردې ځواب فکر کاوه چې رام داس دربار ته ورننوت اودهغې پريشانه څيرې دټولو درباريانو پام وروااړاوه، رام داس وويل: ټولواکه! بهرډير خلک راټول شوي دي، تاسو له ورووځې هغوی ته تسلي ورکړي.

راجه ځواب ورکړ.

مذهبي پيشوا درسره بوزه، زه مې رعيت ته په مخ نشم ورتلای.

يوه بوډا سردار وويل:

باداره! چې څه وشول وشول، اوس له تاسره داسې خبرې ښې نه ښکاري، تاسو همت وکړې د دښمن څخه دبدل اخيستولپاره زموږ توري ستا سو په مخ کې حاضري دي توريالي دبدنامي داغونه په اوښکو نه بلکې په وينو مينځي.

راجه پرغوسه شوی ويل:

بيا همغه خبره! زه هيڅ نه پوهيږم چې تاسو بدل څرنگه اخستلای شئ؟

سردار وويل: ټولواکه! زموږ سره اوس هم دوه زره تنه پوځ شته که هڅه وکړو دو مره نور هم را ټولولای شو، زموږ دماتې سبب يوازې داؤ چې دښمن له سختو غرونو څخه گټه پورته کړه، که نه په ميدانونو کې زموږ يو سرتيري ددوی په سلگونو تنه زغلولی شي.

راجه ځواب ورکړ:

ډير ښه، ته له مذهبي پيشوا سره ورشه اودښمن ته زاري وکړه چې

که هغوی ستاسو عذر ومانه نوزما پاتې پوځ بیا ستاسو په واک کې دی، که نه هغو غرونو ته ووایی چې ستاسو له مخې نه لرې شي.

سردار ترلږ ځنډه سرښکته واچاوه بیا یې وویل: که تاسو گومان کوی چې دا هرڅه د مذهبی پیشوا له لاسه وشول نو تاسو ته داډ درکوو چې بیا به په راتلونکې کې هغه په داسې معاملو کې لاس نه وهي.

راجه لږ رانرم شو ځواب یې ورکړ:

تاپخواله دې چې داسې ویلی وای له مذهبی مشر سره به دې مشوره کړې وه. زه ویرېږم چې دی به خپل عادت بدل نکړای شي.

بدنصیب مذهبی پیشوا ته دځان ژغورلو یو تدبیر تر نظره شو ویې ویل:

ټولواکه! وعده کوم چې په راتلونکې کې ستا په هیڅ کار کې لاس وهنه ونه کړم.

راجه ته دا یو لوی بریؤ پر تخت له کیناستلو څخه ترننه هغه دې خبری دننه خوړلو چې دحکومت اصلی واک دهغه لوی بریتونو خاوند برهمن سره دی او دده حیثیت دهغه مذهبی مشر په لاسو کې دلوبیدونکې یوی نانځکې نه زیات نه دی او دده هره هیله اواراده دمذهبی مشر رضا ته اړتیالری. دهغه پرماته اعتراف دراجه دغوسې اورسوړ کړ. دخپلې خوښې دپټولو هڅه یې کوله وی ویل:

ښا یې تاسو به گومان کوی چې ماتې زه بې همته کړی یم، نه، زه به پرغلیم بری ترلاسه کوم، خو دابه داسې بری نه وی چې دښمن څلور میاشتې وروسته بیا سر را پورته کړای شي، زه غواړم داسې ...

شو، خو پر هغوی د تل لپاره غلبه نشو ترلاسه کولای ، زمونږ په هیوادکی په زرگونو تیټ ذاتی ژوند کوی.

دوی هم یو وخت زمونږ د دښمنانو په څیر آزادوو، که زمونږ پلرونو اونیکونو د داسی مذهبی مشرانو په رایه پر دوی هسی ظلم کړی وای نو نن به دوی زمونږ په امن کی خوښ غلامان نه وای ، که د دوی څېری اوجونگړی ورسوځول شوی اوښځی اوماشومان یی وژل شوی وای نو دوی به هم چیرته پناه اخیستی وه اوزمونږ څخه به یی بدل اخیستلو هڅی کولی ، خوزمونږ نیکونو پر دغو خلکو دبری ترلاسه کولو نه وروسته دوی ته د پناه ورکړه، دوی ته یی له خپلو ښارونو سره د کلیو جوړولو اجازه ورکړه، دا دهغوی دهغه سلوک نتیجه ده چی دغه کسان اوس مونږ د دښمن پرځای باداران گڼی او په غلامی اوخدمت مووياړی مونږ ته اوس داحق راکوی چی هر ډول مونږه غواړی هسی سلوک ورسره وکړو، مونږ دوی د سپیانو په څیر ذلیل گڼو خو دوی پر دی خبره هیڅ نه احساس‍‍ن که مو په وار وار نشتر ورچوخولی نو دوی به مو خامخا په ژوندی دښمن بدلول، خو زمونږ د مشرانو تیولو دوی د مرگ په خوب ویده کړی دی، زه په خپل لوی دښمن هم دغسی بری غواړم. که مذهبی پیشوا تریوی مودی پټه خوله پاتی شی زما باوردی چی په خپل مقصد کی بریالی شو.

دراجه اغیزمنی وینا ټول تراغیزی لاندی کړل، ټولو سردارانو په یوه غږ دده دتدبیر ستاینه وکړه، بوډا سردار وویل:

مذهبي پيشوا له دربار څخه دخپل اقتدار جنازه په وتلو ليده، خو دخولي چوله کولو جرئت يې نه درلود.

راجه چې دسردارانو له لوري ډاډه شو مذهبي مشر ته يې وکتل اوويې ويل:

ښا غلی پيشوا ! زما باوردی چې ته هم زما له نظر سره موافق وی.

هغه ځواب ورکړ:

خدای دی ستا په ارادو کی برکت واچوی ، دا نوکله کيدای شي چې تاسو دمذهب خدمت کوی او زه ورسره اختلاف وکړم.

راجه رام داس ته وکتل ويې ويل:

ډيرښه رام داسه! له نن نه وروسته ته زما دپوځ سالار يې ته نن بايد له سينده پوري وزی.

په ښارکی چې څومره پوځ دی درسره بوي يې زه ، دښمن به له غرونو راښکته نشي اوپر تاسو به حمله ونکړی ، ته اوس د پرمختگ هڅه مه کوه په غرونو کی چې واوری راپريوزی دغه خلک به پخپله هواری ته راکوزشي ،خوستا کار دانه دی چې په نشتر يې زخمی اوراوينښ کړی ،بايد ويې تپوی اوويده يې کړی، زه تاته ډيره لويه ذمه واری سپارم.

رام داس راجه ته په معنی دار نظر وکتل اوويې ويل:

ټولواکه زه پوهيږم.

لږ ځند وروسته چې دربار رنگ شو راجه رام داس هما لته ايسار کړ ورته ويې ويل:

پوری کړی دی‌داسی ونه‌شی چی‌ددښمن دیوه تن قربانی ټول قوم‌یو ځل بیا زموږ پر خلاف راوپاروی ا وزه د پوغ د مشر تابه‌نه پرته د هغی سیمی سرداری هم تاته‌سپارم.

# نوی سردار

وخت تیریدلو ، سکدیو دهغو خلکو په منځ کی له هره اړخه آرام ژوند درلود ، د نړی هرنعمت چی په هغه ساده او معصوم چاپیریال کی یی آرزو کیدای شوای قدرت ده ته وربخښلی ؤ. دټولنی دقانون پرخلاف چی ده په خپل زړه کی دکرکی اونفرت کوم توپان ورسره راوړی ؤ ورو ورو تم شو. هغه ټولی ولولی، هیلی اوجذبی چی دعدل او برابری لپاره یی په زړه کی په غورځنګ وی، دژوندانه سره دمینی ترړنګونو لاندی خپ شوی .

دسکدیو له ماغزوڅخه دبرابری دانسانی اصولو پربنیاد دیوی نوی دنیاابادولو خیال ورک شوی ؤ ، دده دپام مرکز اوس یو وړوکی هلک اویوه ماشومه نجلی ګرځیدلی وو ، سکدیو دهلک نوم مادهو اود نجلی شانتا ایښی ؤ.

کنول به مادهو په واروار پرسینه پوری کلک کړ اوسکدیو ته به یی ویل:

وګوره کنول! ددې پزه، سترګې، تندی او شونډې کټ مټ تاته ورته دی.

بدهو به چې کور ته راغی ما دهو به په منډه ورغی او تر پښو به یې لاسونه ورتاو کړل، شانتا چې دهغه نه دوه کاله کشره وه اوتر اوسه پورې ګرځیدای هم نشوای پرځمکه به ناسته وه او په نیمه ژبه به یې (کا...... کا) ویل او لاسونه به یې غورځول.

هغه به دواړه واخیستل په چېرکټ به کیناست، ددوی دخوښې لپاره به یې شپیلی غږ وله اوددوی د خندولو لپاره به یې دوزو، ګیدړو او میږو غوندې رمباړې ترخوله ویستلې. دوی به یې په ځواب کې غوړونه ونیول او ویښتان به یې کشول، کنول به هر ځل ورته ویل:

بدهو وروره! تادوی شوخ کړل،اوهغه به په خندا ځواب ورکاوه:
کنول خورې! ماشومان شوخ ښه وي،زه پخپله په دغه عمر کې ډیر شوخ وم.

موتی به راغی اوماد هو به یې خپل کورته ورسره بوتله، اوچې ما دهو به پخپله دهغه په کور کې په لوبو ستومانه شو بیا به بیرته راغی. په اته کلنی کې به ما دهو په یوه خره سپور شو اوله سکدیو او بدهو سره به ساراته تلو، تر ماښامه به په ځړ ځایونو کې له هغوی سره ګرځیده.

بدهو هغه ته په ډنډ کې لامبو اوپه ونو دختلو اوشپیلی غږولو زده کول ورښودل. او یوه وړوکې لینده به یې په لاس کې ورکړه اوهغه ته یې

موتى ډيربوډا شوى ۋ اوزياتره بەناروغ ۋ. دناروغى په حالت كى هم چى تركومه ممكنەوه ده دسردارى دذمه واريو سرته رسولو هڅه كوله اوچى نوربى توان پاى ته ورسيد نو پەډيرو معاملو كى بەيى لەسكديو څخه مرسته غوښتله تولو كليو پخپلوكى د څرځايونو حدود ټاكلى وو، كب نيوونكو هم پەخپلو كى لوى ډنډ سره ويشلى وو پرځمكو كى دكرنى كاروبار په هغو خلكو كى ډيرلږ ۋاووددوى ترمنځ جګړى هم ډيرى لږى وى، خودكب نيو ونكيو اوشپنوترمنځ بەكله ناكله جګړه پيښيدله اوټول سرداران به دخپلو خپلوكليو دخلكو په ملاتړ راپورته شول، پەدغسى معاملوكى دموتى پريكړه وروستى پريكړه بلل كيده، چى ده نور دكار توان نەدرلودنو هغەدغسى معاملى سكديو تەسپارلى.

دسكديو عدالت خوښونى اوپرمعاملو پوهيدلو دى پەخلكو ډير ګران كړى ۋ خودنورو كليوځينى سردارانو چى د موتى نەوروستە يى دسردارى خوبونەليدل، دسكديو پر خلاف پەزړونو كى كركە اوحسد پالەپه هغو سردارانو كى را مولە موتى نەوروستە دنفوذ اواغيزى لە حيثه په دوهمه درجه كى ۋ.

دى دخپل ژوند ديوەلوى هدف دترلاسە كولو لپارە دهغو خلكو سردارى اومشر تابە تەناكراره ۋ اوپەډيره بى تابى يى دموتى دمرګ انتظار كاوه، دەباور درلود چى نور سرداران بەدده پەمخكى سرپورته نكړى خولەسكديو تەډاډه نەۋ.

مرستي پرته له بستري ثخه را جگيدلى هم نه شواى خلك به ډله ډله دده پوښتني ته را غلل، كنول اوسكديو به يى هروخت چى ده ته نژدى وليدل په هغوى كى به زياتره ددوى پر خواخوږى اعتراف كاوه، خو ځينو به چى له رامو سره همنظره وو داكار ددوى رياكارى گڼله.

سكديو درامو په باب اوريدلى وو چى پلار يى د موتى نه مخكى ددى خلكو لوى سردارؤ. دپلار له مرگه وروسته خلكو پريكړه كړى وه چى دى يى د پلار پرځاى لوى سردار وټاكي خو په كومه ورځ چى دغه پريكړه وشوه په راتلونكى شپه يى را مو ديوه شپانه دميرمنى پر آبرو دتيرى هڅه وكړه چى دهغى په چيغو اوكوكارو دكلى خلك راټول شول. سبا ته دسردارانو غونډى دى دلسو كلونو لپاره له سيمى نه وشړلو او موتى يى خپل لوى سردار غوره كړ.

راموچى دخپلى جلا وطنى لس كاله چيرته تير كړل هيڅوك پرى خبر نه وو، خولس كاله وروسته چى بيرته راستون شو، دى خلكو پخوانى خپگان هير كړى ؤ، موتى هم دده گناه وروبخښله او ديوه وړوكى كلى دسردار له مرگه وروسته يى دى دهغوى مشر اوسردار وټاكه. را مو به چى كله له سكديو سره كتل دديوى اوديو تاؤ كيسى به يى ورته كولى اودى پوهيده چى دجلاّ وطنى يوه برخه عمريى دلوږذاتو په كوم ښار كى تير كړى دى.

را موته دټولنى دستروسترو ديو تاگانو نو مونه يادوواودهغوى درناوى يى هم كاوه، په هغو خلكو كى راموپوازينى څوك ؤ چى

ویل:

سکدیوه! افسوس چی ته د آسمان له لوړو څخه دځمکې د تل پستیو ته را لویدلی یې ته ډیر بدمرغه یې. په شاوخوا کلیو کې را موزیات مشهور ؤ هغه به عجیبې او حیرانوونکې کیسې اورولې او ساده زړې شپانه به یې پرځان ورماتول، دغه خلک د هر حیرانوونکې شي لوری ته په ورتلو عادي وو، خو دسکدیو له راتلونه وروسته را مو دا احساس کړه چې له ده سره دخلکو مینه مخ پر کمیدوشوه. ماښام مهال به د ښځو او نارینه وو په مجلسونو کې چې اوس دده د کیسو پرځای دسکدیو او کنول په باب نوی افسانې اوریدل کیدې دده په زړه کې یې د کینې اوبدل اور ژبغړاند کاوه. موتی کـه څه هم ناروغی او تیر عمر ډیر ډنگر کړی ؤ خوله هغه سره دخلکو په مینه اودرناوی کې هیڅ کمی نه ؤ را غلی. ځکه خورا موچې په هره خبره کې دسردار لخوا دسکدیو ملاتړ لیده له هغه سره یې دمخامخ دښمنی جرئت نشو کولی، بیا هم دی ډاډه ؤ چې دسردار له مرگه وروسته به ده ته دلاری ددغه ډیری په لری کولو کی زیاتی ستونزی نه وی.

بوډا سردار ډیری اونی دمرگ اوژوند سره لاس او گریوان ؤ چی بالاخره یو ماښام مړشو.

**(۳)**

چی سهار شو دټولو کلیو خلک له خپلو سردارانو او مشرانو سره دموتی پرمرگ دویر اونوی مشر او سردار دغوره کولو لپاره دلویو ونولاندی په

ځو سردارانو په ګډه درامو اوځو نورو دسکدیو نو مونه وړاندی کړل.

درامو پلویانو ویل چی هغه زموږ دقوم سړی دی، پلار اونیکه یی مشران اوسرداران وو، دده حق کوم پردی ته نشو ورکولی ،دسکدیو پلویانو ویل چی کومی ښیګڼی په هغه کی دی په رامو کی نشته ، هغه دلوی راجه دپوغ سالار پاتی شوی دی، پرحکومت کولو پوهیږی ، که دی موږ مشر وټاکلو ډیر به آرام شو.

ورو ورو دغه بحث دسردارانو له مجلس څخه عامو خلکو ته ووت.

په سردارانو کی درامو غږ ترټولو لوړ ؤ او په عامو خلکو کی دبدهو بدهو، یوازی پردی پوهیده چی له سکدیو پرته څوک سردارکیدای نشی، دسردارانو غونډه دده په اند بی معنی وه. هلته دسردارانو په منځ کی چادسکدیو نوم واخیست دلته ده چیغی کړی:

زموږ سردارسکدیو دی، سکدیو !!

دسکدیو پلویان له ده سره ملګری شول اوله څلوروخواو دسکدیو په پلوی غږونه اوچت شول.

درامو پلویانو هم دژبو توری راوایستلی خو دهغوی شمیر لږ ؤ اوغږونه یی دبدهو دملګریو په غږونو کی خپ شول.

رامو جګ شو اودسردارانو تر پریکړی پوری یی دچوپتیا غوښتنه وکړه ، خو چایی پروا ونکړه رامو دواړه لاسونه اوچت کړل اوپه لوړ غږ یی وویل:

ورونو! موږ پوهیږو چی تاسو غواړی سکدیو خپل سردار وټاکی، خو زما

زمونږ مشر کیدای شي که نه ؟! ترڅو داپریکړه نه وي شوې تاسو صبر وکړئ، تاسو ډاډه اوسئ چې مونږ ټول دسکدیو درناوئ کوو څوکه سردارانو داپریکړه وکړې چې دبل قوم سړی زمونږ سردار نشي کیدای نو تاسو بیا داعتراض هیڅ حق نه لرئ.

خلک کیناستل اوسردارانو بیا خبرې پیل کړې، دعامو خلکو په څیر مشران هم زیاتره پردې نظرو و چې سکدیو خپل سردار وټاکي چې کله درامو پلویان له هر لوري مایوس شول په کنځلو اوبدو ردوویلو یې پیل وکړ، دسکدیو پلویانو پردوی پسې سوټې راواخیستل ، سکدیو چې تراوسه پورې یوې خواته غلی دریدلی ؤ چې دغه وضعه یې ولیدله خلک یې یوې اوبلې خوا ته ټیل وهل وړاندې ورغی اوپه چوتره ودرید په لوړغږ یې وویل:

ورونو! زه ویریږم چې تاسو دهغه چا لپاره جګړه کوئ چې هغه ستاسو دسرداری منلو هیڅ اراده نه لري.

زه تاسو ته دیوه بې یاراومرستندویه مسافر په توګه را غلم ، تاسو داوسیدو لپاره کور راکړ، دخوراک او څښاک شیان موراکړل، تاسو تل زه دیوه ورور په شان ګڼلم، خو مادانه دي هیر کړي چې زه دلته یو پردیسی را غلی یم ، زما دورور رامو او ډیرو نورو دوستانو داخیال دی چې زه پخواهم ستاسو خدمتګاروم اوس هم یم ، په ماکې کوم توپیر نه دی راغلی، دانه غواړم چې زما پرسر تاسو پخپلو کې سره وجنګیږئ.

، یو بوډا سردار جگ شو ويې ويل:

موږ به تاهیځکله پرنیږدو چې ولاړ شې، که ته زموږ له مشرتابه نه انکار کوې نوبيا پخپله خوښه بل څوک راته وټاکه موږ به يې ټول امرومنو.

زیاترو نورو مشرانو هم دهغه نظر تائید کړ، سکندیو یو پړبل پسې ټولو سردارانو ته وکتل اوبيايي سترګې پر رامو ونښتې، درامو دزړه ناکرداري زیاته شوه، سکندیو وموسکل اوويې ويل:

ورونو! که تاسو ته زما پریکړه دمنلو وی نو را مو خپل مشر وټاکی.

ټولو سردارانو دسکندیو پریکړې ته دتائید سرونه ټيټ کړل.

درامو پر سردسردارۍ پګړې ورو تړل شوه خو هغه په زړه کې داسې احساسوله چې ددغې برۍ ویاړ دسکندیو په برخه دی، دی به دخلکو پر بدنونو حکومت وکړي خو پرزړونو به يې دپخوا په څیر دسکندیو واکمني وی، دسکندیو له لوري دايثار اومیړانې ځاځکو دده په زړه کې دکرکې اوکینې اور مړ نکړای شو.

# درا مو داستان

رامو په يوه کال کې د ننه داثابته کړه چې دغو خلکو ترده ښه سردار نشو موندلی، دده دمشر تابه زمانه ددغو خلکو لپاره ديوه نوي دوران پيل ؤ، ده دکب نيولو او رمو ساتلو پرځای کرنې ته زياته پاملرنه وکړه ځکه خودده دهڅو په نتيجه کې دځنګله غاړې ته دسيند ترڅنګ پورې دځنګلي ونوپرځای شنه فصلونه را زرغون شول اوله هغو خلکو سره دوزو او ميږو پرځای د غواو دساتنې مينه ډيره شوه.

رامودوښو اوښاخو نو له ځپرونه کرکه درلوده ځکه يې خپل اولس دختيځو کورونو جوړولو ته وهڅاوه ځکه خو په لږه موده کې يو شمير خلک دجونګړو نه ووتل او دختيځو په پراخو کورونو کې يې ژوند پيل کړ، خو زياترو په دې معامله کې پخوانی ژوند ته دوام ورکړ.

سکديو داهرڅه ديوه سوله خوښوونکي ننداره چې په حيث ليدل او په څه کار کې يې مداخله نه کوله، دموتي له مرګه وروسته دهغو خلکو په منځ کې دده له سياسي معاملو سره دلچسپي پای ته رسيدلې وه، خلک به دپخوا په څير ورته را تلل او درامو دنويو نظريو په باب به يې پوښتنې ترې کولې، ده به يوازې دومره ورته وويل او ځان به يې تير کړ.

درامو دنویو نویو اصلاحاتو په‌لور یی پام راړاوه، رامو دمهذبی ټولنی دپر مختګونو افسانی دوی ته ډیری اور ولی اوپه دی خلکو کی یی نوی هیلی اوآرزوګانی را ویښی کړی خلکو ته خپل اوسنی ژوند درحم وړ احساسیده اود هغه په‌اشارویی تلل پیل کړل.

سکدیو ترډیره وخته پوری داګومان کاوه چی رامود خپلی جلاوطنی په موده کی دلوړ ذاتو دعیش اوآرامی ژوند لیدلی دی، له‌هغه‌څخه‌اغیز من شویدی اوددغو خلکو دژوند دبدلولو په‌فکر کی دی، خو یوه ورځ را مو ده ته خپلی ټولی ارادی وروښودی، اوسکدیو دخپل آرام ژوند انه په سمندر کی دکوم‌نوی توپان دراتلو نخښی ولیدی.

**(۲)**

ماسپښین مهال سکدیو اوبدهو د ډنډ پرغاړه دیوی‌ونی لاندی ناست وو، مادهو په ډنډکی لمبل، شاوخوا ته وزی اومیږی څریدلی، بدهو لری یو سپور ولید چی ددوی په‌لور ورنژدی کیدو ویی ویل!

وروره! هلته‌ګوره لکه چی را مورا روان دی.

سکدیو دبدهوداشاری لوری ته‌نظر واړاوه اولری یی را مو وپیژاندوی ویل:

ښا یی نن یی پر کومه‌نوی‌خبره سوچ کړی وی.

رامو چی نژدی ورغی له‌خره‌څخه پلی شو اوسکدیو ته‌نژدی کیناست ویی ویل:

زدله‌سپار راسی تالتوم.

- غواړم یوه مشوره درسره وکړم.

- دځه په باب؟

راموبدهوته وکتل اوویې ویل:

بدهو! زه له سکدیو سره یوه ځانګړی خبره کوم ته لږ دبلې ونې سیورې ته ولاړ شه.

را مـو او سکدیو ترلږځنډه چوپ ناست وو اویو بل ته یې کـتـل بالاخـره رامو وویل:

وروره! ته پوهیږې چې زه دخپلو خلکو داوسنی ژوند څخه خوښ نه یم اوله یوې مودې راهیسې ددې خلکو د ژوند دښه کولو په فکر کې یم، زه چې داګورم چې زموږ په زرګونو خلک په غرونو، ځنګلونو او دښتو کې خواره واره دي اوددې هیـواد په حـاصـل ورکـوونکـیو ځـمکو لوړ ذاتي واکمن دي نو ډیر خپه کیږم.

سکدیو ځواب ورکړ:

زه هم پردې ډیرخپه کیږم.

-زه پوهیږم چې ستـازموږ له قوم سره ډیره خواخوږي ده، خوتراوسه دې ددوی دژوند دښه والي کوم تدبیر نه دی سنجولی.

سکدیو وویل:

ددې چاره داده چې ستـاسو دقـوم ټول تیت اوپرک خلک را ټول اوله لوړ ذاتو سره جګړه وکړي اوخپل له لاسه تللي حقـوق بیرته ترلاسه کړي ،خوددغو تیت شویو دانو په یوه مزي کې راټولول زما اوپاستا په څیر

خو په لکونو نور داسې دي چې دهند دټولنې په سیورې کې د خپل ذلیل ژوندانه په تیرولو برسیره خوښ دي اودوی د خپلو له لاسه ورکړيو حقوقو لپاره د جګړې تصور هم ګناه ګڼي.

راموځواب ورکړ:

زه نه غواړم چې دلوړ ذاتو سره جګړه وکړو زما باور دي چې که موږ ټول را ټول شو هم پر هغو نشو بريالي کيداى ځکه چې هغوى د ديو تاګانو نمانځنه کوي او دغه زوروږ ديو تا ګان به پرخپلو پالونکو څوک برلاسې کيدو ته پرې نږدي، ته که پر هغو ديو تاګانو باور نه لرې بيله خبره دده خو نن تاته دژوند هغه پيښه بيا نوم چې ترننه پورې مې بل چاته نه وه اورولې، تادا اوريدلې دي چې دي خلکو زه جلاوطن کړى وم، زه څومياشتې د خپل قوم دشپنو په مختلفو کليو کې له تيرولو نه وروسته يوه ورځ له راوى نه پورې وتم. له ډيرو ورځو مزله وروسته يوه کلي ته ورسيدم.

دې کلي ته نژدې دلوړ ذاتو يو لوى ښار پروت ؤ. دکلي خلک زموږ دقوم وو خو هغوى دلوړذاتو غلامان وو او ټيټ ذاتي ورته ويل کيدل، دهغوى ژوند زموږ دسپيانو له ژوند نه ډير ذليلانه ؤ ددوى سپيان دلوړ ذاتو ښارونو ته تلاى شول خودوى دا اجازه نه درلوده له لرې مې چې ددوى دنګې دنګې ماڼې اولوړ لوړ درمسالونه ليدل په زړه کې مې دهغو خلکو له ژوند څخه دخبريدو هيله راپورته شوه! وپه همدى کلي کې مې واړول يو څه موده چې هلته واوسيدم دا راته معلومه شوه چې د دغه ښار له

خلکو یو کاروان راغی اوچې ددې ځمکې ښه حاصل یې ولیدرا غلل اودلته یې واړول اواباد شول په خو کلونو کې یې ټولې دکرنې وړ ځمکې له دې خلکو څخه ونیولې اودوی ته یې دځنګل یوه برخه پریښوده.

ددې خلکو زیاتره دلوړ ذاتو له ظلم څخه په تنګ را غلل او چیرته لرې ولاړل اواباد شول خو یو شمیریې دځپل پلار اونیکه دزېږ یدو پرځای نښتې پاتې شول.

دلوړ ذاتو کلي لوی شول اوبالاخره په ښار بدل شو او د هغو خلکو کلي ویجاړیدل چې بالاخره یو کلي ترې پاتې شو دغه کلي به هم ویجاړ شوی ؤ خولوړذاتو دبرسات په موسم کې دسیلاب دمخې اړولو لپاره کله کله دې خلکو ته اړتیا پیښیده ، ځکه خودښارراجه دې خلکو ته امر کړی ؤ چې څوک له کلي نه وته نښتې ، که څوک ځی هم دښار ویو دبیولو حق نه لری.

ددې امرله اوریدو وروسته دشپې مهال څو تنودتښتیدو هڅه و کړه خو دراجه پوځیان پرې خبر شول په هغوی پسې ورغلل اوویې نیول، دوه دری تنه ځوانان یې چې دنیولو په وخت کې یې لاس اچولی ؤ اوبیا یې هم دتیښتې هڅه کوله دتوری دیوی په درمسال کې ووژل دپاتې نوروګناه یې په دې شرط وبخښله چې په را تلونکې کې به داسې حرکت نه کوی. دلوړ ذاتو په نظر کې دغو خلکو دهغو ښارو و حیثیت درلود چې مور یې داړتیاوپه وخت کې ښکار کوو، خو ددوی دنسل له

درمسال کې قربانيدو.

مادېره هڅه وکړه چې دغه خلک دلوړ ذاتو پرخلاف راوپاروم خودا راته معلومه شوه چې دغه خلک له لوړذاتو څخه نه بلکې دهغوی له ديو تا گانو څخه ويريدل .ددوی له خولې مې دديوتاگانو دځواک ډيرې عجيبې اوحيرانوونکې کيسې اوريدلې چې زما په زړه يې دهغوی ويره خپره کړه.زما پردې باور شو چې دغه خلک څرنگه چې د ديوتا گانو عبادت کوی اودهغوی په وړاندې قرباني وړاندې کوی څکه يې مرسته کوی. که مونږ داسې کولی نو د يوتا به خامخا زمونږ هم مرسته کوله ، ماته داپه خيال کې راوگرځيدل چې ښا يې يو وخت به زمونږ قوم هم د ديو تاگانو عبادت کاوه چې اوس يې دهيرولو اوپريښودلو سزا گالي.

ډيرې ورځې ورووسته ماته دټولنې دهغوځواکمنو ديو تاگانو دليدو هيله په زړه کې راپيدا شوه او يوه شپه مې په خوب کې دهغوی دعجيبو اوحيرانوونکو څيرو له ليدو ورووسته چې ستر گې وغړولې نو دديو تاگانو قدمونو ته درسيدولپاره مې دلارې دټولو خطرونو اوخنډونو پروا ونه کړه اود ښارد درمسال په لور روان شوم.

**(۳)**

په هرگام کې مې داسې احساسوله چې زما سرگردانه اولس را پسې دی اولوی لوی ديو تاگان زما زاری اوريدو اوزما داولس دتيری گناه بخښنې ته تيار ولاړ دی.

دشپې په وروستی برخه کې سپوږمۍ په راختو وه په لاره کې څوځلې

ورسیدم.

درمسال ته‌نژدې په‌هوار میدان کې څو تنه چې ښایي د درمسال ساتونکي وو په‌خوب پراته‌وو او خوریدل، زه خپ‌خپ ورغلم د دروازې له‌درزنه می د ننه‌وکتل. دبلو ډیووپه‌تتـه‌رڼا کې می عجیبې اوحیرانوونکې ښیرې ولیدې زه‌وویریدم‌شاته شوم او غوښتل می چې وتښتیږم، خو کوم‌لوې څواک مخ پر وړاندې تېل وهلم‌چې بیا په‌ویره ویره د درمسال پراخې کوټې ته‌ننوتم.

ترلږڅنډه می وارخطا ددیو تاګانوحیرانوونکیو ښیروته کتل غوښتل می چې ددغو دیوتاګانو څخه دکوم یوه پرپښنوسر ورکیږدم، ناڅاپه می ددرمسال په‌کیڼ لوري دیوال‌سترګې ولګیدې اوحیران ودریدم. دتورو ډبرو په‌یوه چوتره د څو معمولي بتانو په‌منځ کې دمرمرډبرو یو ښکلی بت‌اینبي ؤچې په غاړه کې یې دمړاوو ګلونو یو امیل ؤ او په‌پښبور کې یې هم ډیر ګلونه‌انبارو‌و، زه وپوهیدم چې همدغه‌د قانون دخاوندانو خدای‌اوددوې دپرمختګ رازدی.

همدغه‌سترځواک دی‌چې‌خپلو نمانځونکیو ته‌یې ښکلې مانۍ اودکښت‌لپاره حاصلخیزې ځمکې ورکړې. داهمغه‌دیو تادې چې مونږ ترې لرې‌شوي یو او دنړۍ له‌ټولو نعمتونو څخه‌محروم یو.

ماغوښتل چې دهمدې دیو تاپه‌پښنو کې سرکیږدم‌اود خپل بې لارې شوي اولس‌لپاره درحم غوښتنه وکړم.

خو په‌زړه کې می یو نوی خیال

په خیر دی درمسال ته نشی را تلای خوزه ددیو تا دغه بت په آسانی سره وړای شم. زما قوم دی ته اړتیا لری دوی دقانون له بشاره لری ددی لپاره نوی درمسال جوړولی شی. دسیند پرغاړه دګلانو کمی نشته، موږ به دمړاوو ګلونو پرځای تل تازه ګلان پردیو تا ورشیندو اوشپه او ورځ به یی عبادت کوو.

دلوړذاتو ټولنی په درمسالونوکی ددیو تاګانو کمی نشته دوی دداسی بتانو په جوړولو پوهیږی نور به جوړ کړی.

سهار کیدونکی ؤ دډیرفکر کولو فرصت نه ؤ، وړاندی ورغلم ددیو تا په مخکی ودریدم اوپه ډیره عاجزی می وویل:

خدایه! زه غلاکوم خوته پوهیږی چی نیت می خراب نه دی تابه تل خوښ ساتم زما اولس تاته اړتیا لری.

دامی وویل او ریږدیدو نکی لاسونه می دبت پربدن را تیر کړل، هغه می وخوځاوه ومی لید چی وزن یی ډیر دروند نه دی، زړه می مزبوت کړ اوبت می راپورته کړ په اوږه می کیښود، رپیدونکی ډیوه په ګل کیدو ود په بیړه می ګامونه واخیستل خوچی بت می په اوږه کاوه سریی له چت څخه را ځړیدلیو هغوزنګونو سره ولګید چی ماپه وارخطا یی ورته پام نه ؤکړی فضا دزنګونو کړنګاړکه کړه زړه می وریږدیده او منډه می واخیسته، خو پښی می ددهلیز له څنډی سره ونښتی اوپرمخی را ولویدیم، له هغو وروسته پوه نه شوم چی نورڅه وشول خو چی سترګی می وغړولی ومی لیدل چی په یوه په میدان کی پروت یم جامی می په

په غوږو کې مې په زرګونو غږ ونو ازانګې کولې چې ویل یې:

ددرمسال بت، تیټ ذات پلید، لوی ګناهکار... تر ډېره مې سترګې پټې وې اوپروت وم له تندې مې مرې وچه شوې وه سترګې مې وغړولې اوغوښتل مې اوبه وغواړم خو چا په زوره وویل؟ تیټ ذاتې سپی تراوسه ژوندی دی اوما داوبو غوښتلو جرئت ونکړ.

ترما ښامه په هماغه ځای پروت وم تندې بې سیکه کړی وم.

ددوی په قهرجنو سترګو کې مې درحم هیله نه درلوده، ددوی څېرې مې چې لیدې داسې مې احساسوله چې یوه ډېره عبرتناکه سزایې راته غوره کړې ده.

لمر چې ولوید یو دلویو بریتو نو خاوندرا غی دغه خلک په ادب دهغه په درناوي ودریدل، هغه چې راغی دی خلکو ته یې څه وویل: اودوی ټولو دتورې دیوې تورې دیوې قربانی، نذر چیغې یې وهلې اوپه وړو وړو ټولګیو وویشل شول اوخپلو کورونو ته ولاړل. یوازې شپږ تنه په تورو اونیزو وسله وال سرتیري زما سره پاتې شول.

دشپې څوکسان مشالونه په لاس کې راغلل یو تن راړواندی شو په توره یې زما دپښو پړی غوڅ کړل او یوه تن داوبو لوښی راوړ او نژدې راغی زموپرسریې راواړاوه ما اوبو ته خوله خلاصه کړه څو غوړپه مې چې وڅښل.داسې مې احساس کړه یو ځل بیا را ژوندی شوم.داوبو لوښی ترپښو پورې لوند کړم اوښکته وبهیدلې. زما تنده لانه وه لرې شوې په مخه کې مې په یوه وړوکي ژور ځای کې لږ اوبه را ټولې شوې وې ...

ماته دهغو خلکو لەامر منلو پرته بله لاره نه وه، جگ شوم اوددوی په اشاره ورسره روان شوم دوو کسانو مشالونه په لاس کی اخیستی وو اوزما څخه وړاندی روان وو لږ وړاندی چی ولاړو ومی لیدل چی تر شا پر سرتیرو برسیره د نارینه ؤ ، ښځو او ماشومانو یوه لویه ډله راپسی ده پوهیدم چی چیرته می بیایی په تلوتلو کی می دڅان دژغورنی په زرگونو تدبیرونه وسنجول، خو له دغو خلکو څخه دخلاصون هیڅ لاره ترنظر رانغله، بیا هم زړه تسلی راکوله چی وژل کیږم نه، کله به می فکر کاوه چی ښایی زلزله راشی اودغه خلک می لەوارخطایی څخه پریږدی اووتښتی.

کله به می دعا کوله چی دشمال یوه تونده څپه راشی اوماورسره والوزوی اویو می سی ،کله به چی له څلورو خواو مایوس شوم دټولنی دیوتاگان به می مرستی ته را بلل.

چی درمسال ته نژدی شوو دغه کسان دچا په انتظار شول، دناقوس اوزنگونو غږونه می چی اوریدل زړه می ورسره درزیده مور ترډیرڅنډه درمسال ته نژدی ونه دریدو هماغه دلویو لویو بریتو خاوند چی ماښام مهال می لیدلی ؤ راغی ، سپاهیانو را ته وویل چی ورځه، مااحساس کړه چی دمرگ کومی ته ډیررانژدی شوی یم.

اوهیڅ څواک به می اوس ونه ژغورلی شی ناڅاپه می اراده وکړه چی دبی همتی په مرگ باید ونه وژل شم اوله مرگه وړاندی وروستی ځل باید دڅان ژغورنی هڅه وکړم ، سره له دی چی ټیبی وم خوداسی پوهیدم چی دهغو

درمسال ته می چی پنبه‌وردننه کړه دبی شمیره چراغونو په تیزه رڼا کی می دتوری دیوی بت‌ولید اوله خولی می بی، اختیاره یوه کریږه ووته دهغی ترتوری شپی زیاته تیاره خوله ځلیـ.ونکی اوویرونکی سترگی ، دهغی دوی لویشتنی اوږده ژبه می چی ولیـدل وویریدم اوسترگی می پټی کړی.

بدن می په خولولوند شو اوس می هم دهغی سترگی په مخ کی را گرځی. زه یی دهغی په مخ کی کښینولم ، دلویو لویو بریتونو خاوند په یوه عجیبه ژبه څه سندره غوندی ویله په‌ویلو ویلو کی هغه‌شاته‌وکتل یو پلن اویدقواره سړی له یوه لوی تبر سره را غی اوزما ترشاودرید. هغه یو نوی راگ پیل کړ اوپه‌ویلو ویلو کی یی بیا هغه‌سړی ته‌څه اشاره‌وکړه هغه‌تبر اوچت کړ.

په‌نړی کی ترمرگ ویرونکی شی نشته دمرگ دویری په مخ کی دتوری دیوی ویره رانه‌ولاړه زره می په چاودون شو یو اوږ چی په رگونو کی می ځغلیده دبریښنا په‌ځیر راپورته‌شوم اوپه‌خپله مخه کی می دتورو اونیزو له‌اوچتولو نه وړاندی ځوک تیل وهل ځوک می وغورځول اودچاپر اوږو راواوښتم او له‌درمسال څخه راووتم.

دیوه سپاهی نیزی می مټ معمولی وگراوه ،دبل توره می دسرنه‌لږ پاس تیره‌شوه ، زما کوپړی د دوه‌ټوټی کیدو نه‌بچ شوه، له‌درمسال څخه می په‌تیاره کی یوه‌شیبه هیڅ ونه‌لیدل، کوم خلک چی هلته‌ولاړ و وارخطا

سترگو یې پناه شم هغه په ماپسین منډې راوهلې او خپلو نورو ملګريو ته یې چیغې وهلې.

ماڅوځلې خپل لوری بدل کړ خوزرو پوهیدم چې له ده نه مې خلاصیدل آسانه نه دي په ذهن کې سمدستي یو تدبیر راغی یوې اوبلې خوا ته دکړیدو پرځای مې مخامخ منډه واخیسته او خپل رفتار مې لږ کم کړ، اوچې زما او دهغه ترمنځ پنځه شپږ ګامه فاصله پاتې شوه او هغه دحملې په نیت توره اوچته کړه زه سمدستي ودریدم په ځمکه دده په لاره کې کیناستم.

ده سمدستي خپل ځان را قابو نکړای شو پښې یې زما له بدن سره ولګیدې او ملاقونه یې وخوړل سر په ځیږي په ځمکه ولګید. زه بیا جګ شوم او په منډومې پیل وکړ او تردیره وخته مې شا ته ونه کتل، کوم کسان چې را پسې وو مايې همغسې غږونه اوريدل.

دباغونو او فصلونو نه چې تیر شوم په یوه وړوکي لوړه وختم او شاوخوا ته مې وکتل. خلک لا تراوسه مشالونه په لاس کې د درمسال په شاوخوا کې ګرځیدل له لوړې څخه ترراکوزیدو وروسته مې د منډې کولو توان نه درلود او په عادي تګ مې تږله شپه مزل وکړ.

دشپې په وروستي برخه کې چې سپوږمۍ رابښکاره شوه زه دسیند غاړې ته رسیدلی وم، هلته مې دخپل اولس یو شپون ولید شیدي یې را باندې وڅښلې، له ستوماني څخه بې سیکه شوی وم او غوښتل مې چې همالته ویده شم خو ډاډه نه وم او داسي مې احساسوله چې توره دیوې تراوسه

ماته داسودا رالویده چې توره دیوی راته نهنګ نه شي له سهنده چې را پوري وتم ترشپېږو ورځو پوري دلته هلته سرګردانه ګرځیدم او ومه ورځ هغه ځای ته را ورسیدم.

را موچې تردی ځای راورسید ودریداوسکدیو ته یې وکتل ، سکدیو په یوه ژور سوچ کې ډوب ؤ ، درامو له چوپتیا سره یې ورو سترګی راپورته کړی اوویې ویل: له دې خبرو سره بیا هم ته دتولني پر دیو تاګانو عقیده لري؟

راموځواب ورکړ:

تر اوسه مې خبره نه ده بشپړه کړې لومړی چې زه څه وایم هغه واوره.

اوس زه دهغو پیښو نه وروسته یوازې پر یوه خبره باورلرم او هغه داچې دلوړ ذاتو قانون خاوندانو دځواک راز دمرمرینو ډبرو په بڼکلیو دیو تاګانو کې نه دی بلکې دتوری دیوی په ویروونکی بت کې دی ، امکان لري چې بڼه دیو تاګان به هم ځواک لري خو زموږ پرخلاف چې څه کیږي دا دتوری دیوی په سبب دی توره دیوی دوی ته دتیټ ذاتو د ماتولو سبق ورکوی ، هغه یې زموږ پرخلاف تیری کولو او په کرکه چلن ته هڅوی موږ ترهغو پوري دهغوی سره برابری نشو کولای ترڅو دتوری دیوی په څیر ځواک راسره نه وی چې موږ ته دا راوښیی چې لوړذاتی ستاسو دښمنان دی دهغوی ښارونه لوټ کړی ، دهغوی ځمکی تری ونیسی هغوی په پړیو وتړی او زما په مخکی یې قربان کړی.

زه دادعوه نه کوم چې که یوه ډبره وتراشو او یوه ویروونکی څیره تری

که موږ هم دخپلو بڼانو په مخکې خپل دښمنان ووژنو نولکه څرنگه چې موږ ددوی له دیو تاگانو څخه ویرېږو هیڅ داسې سبب نشته چې دوی هم ونه ویرېږي.

تردې ځایه چې را ورسید رامو په جوش را غی او خپل موټی یې اوچت کړ په لوړ غږ یې وویل:

سکدیو ه! سکدیوه! په غورواوره موږ یوازې له ډېرې څخه تراشلې بت ته اړتیا لرو که په هغه کې څه ځواک وي او که نه، بیا به ته وگورې لکه موږ چې دلوړذاتو څخه ویرېږو دغسې به هغوی له موږ څخه وویرېږي څرنگه چې دوی زموږ کلي لوټوي موږ به یې بڼاوونه لوټ کړو.

څرنگه چې دوی موږ تیټ ذاتي اوسپک گڼي موږ به دوی سپک او ذلیل وگڼو څرنگه چې دوی موږ له حاصل ورکوونکیو ځمکو څخه وایستلو او هغه یې له موږ نه ونیولې دغسې به موږ ددوی ډک باغونه اوسیدلي فصلونه تري واخلو اودچو ډاگو نو او ځنگلونو په لور به یې وشړو. سکدیو! تاوویل چې دغه تیټ او پرک داني په یوډلړ کې پیل اسانه نه دي، خوزه دادعوه کوم چې دخپل دیو تا سره مینه او دلوړذاتو سره دښمني به دغه تیټ اوپرک داني به په څو ورځو کې په یوه مزبوت مزي کې را تولې کړي، په نړۍ کې هیڅ داسې انسان نشته چې په کوم کار کې خپله ښه وگوري نو بیا مخ ترې واړوي په څپرونو کې اوسیدونکیو ته یوازې دمانیو دخوب ورلیدلو اړتیا ده.

اوریدلی ده اوله تانه داهیله لرم چې مرسته راسره وکړی څنګه سکدیو ه ستاڅه نظر دی؟

سکدیو تر ډیره فکر کولو وروسته هم دی پوښتنی ته ځواب ورنکړای شو.

ده ته دلومړی ځل لپاره معلومه شوه چې درامو اصلیت تر اوسه له ده نه پټ ؤ رامو چې سکدیو چوپ ولید ویې ویل:

زه پوهیدم چې له اولس سره مینه به دې له ما سره مرستې ته اجازه درنکړي ستا وینه به خامخا په ځوښ راشي خو زه له تا نه دایوه غوښتنه کوم چې په مخه کې می مه دریږه زه ستا دوست یم خو له خپلې مخې څخه دازغیو لری کول د انسان فطرت دی .

سکدیو په غمجنه لهجه وویل: را مو! زما له هغو خلکو سره مینه نشته ، که ستا اولس له لوړ ذاتو څخه خپل غصب شوی حقوق بیرته واخلي نو ښا یې زه تر تا هم ډیر خوښ شم ،خو زه دا نه غواړم چې د ډیری هغه بوت چې د قانون خاوندانو لوړ ذاتو زړونه یې د کاڼو کړل ستا د قوم ساده او مهربانه خلک به هم په وینې څښونکو ځناورو بدل کړي ، زه د یوه ستر او عادل ذات پر وجود عقیده لرم او زما باور دی چې د هغه خوښه وی یو داسې ځواکمن انسان به راواستوی چې د دیو تا ګانو له مرستې پرته به لوړ ذاتی او ټیټ ذاتی په یوه کتار کې ودروی. د لوړ ذاتو له زړونو څخه به د پیړیو خیری لری کا ، هغه به داوړ دو مودو سره شلیدلی زړونه بیرته پیوند کړی، زه د یوه داسې دیو تا په لټه کې ...

پاتی برخه نه غواړم ستا په خیر ضایع کړم زه به دهغه ستراو عادل
څواک انتظار نه کوم چی له کلونو راسی چیرته ویده شوی دی، لوړذاتی
دکوم ستر او عادل ذات له رضا پرته پر موږ واکمن دی او ته به وګوری چی
هغه ستر څواک زموږ په مخکی هم خنډونه جوړنکړی.
زه یوازی له تا سو نه دا وعده غواړم چی مخالفت به می نه کوی.
سکدیو ځواب ورکړ.
زه به دی مخالفت نه کوم خو ملګرتیادی هم نه کوم.
را موجګ شو ویی ویل:
داما ته پخوا معلومه وه ، ښه نوزه اوس درنه ځم ته به په څو ورځو کی
وګوری چی زموږ دنوی دیو تا غږ به زموږ اولس له کوم کوم ځایه یوه
ځای ته را غونډ کړی.
سکدیو چوپ پا تی شو را مو پرخپل خره سپور شو اوولاړ، دهغه له
رخصتیدو وروسته بد هو په منډه راغی اوله سکدیو نه یی وپوښتل:
هغه چی سوک پورته غوړځاوه تا ته یی څه ویل؟
وروره زه ریښتیا وایم تبرمی تیارراسره ؤ او ولاړوم، که څه خبره لاندی
باندی شوی وای نو نن را به نه خلاصیدو. آخر څه جک یی وهل؟
- بدهو هیڅ هم نه. څه خاصه خبره نه وه.

# نوی دیوتا

دساون میاشتی هغو خلکو ته یو نوی پیغام راوړ، را موخومیاشتی وړاندی دشاوخوا ټولو کلیو خلکو ته دیوه نوی دیو تا دراتلوزیری ورکړی ؤ دهغه دوینا ؤ په واسطه دچا په زړه کی مینه راپیدا شوی وه را مو دهغه دیو تالپاره دډنډ پرغاړه د پیپل تریوی ونی لاندی یوه اوچته چوتره جوړه کړی وه دراتلونکی دیوتا لپاره ده دګلانو اړتیا احساس کړی وه ځکه یی خلکو ته ویلی وو چی دډنډ نیلوفر ګلان به څوک نه شکوی.

په دغو خلکو کی له سکدیو پرته بل داسی څوک نه وو چی هر ماښام او سهار به د دیو تا دانتظار لپاره هغه چوتری ته نه ورتلل، چا به سهاروختی داخبر راوړ چی ماپخپلو سترګو دیو تا ولید چی په چوتره کی ؤ اوچی هغه زه ولیدم نوورک شو چا به ماښام مهال داخبرخپور کړ چی دیوتا نن د سپیده چاودنه وړاندی په ډنډ کی لامبل، خو چی زه یی ولیدم په اوبو کی یی غوټه ووهله او بیا راونه ووت.

اوریدو سره عادي کیدل.

سکدیو هغه کوله چې له دې خبرو نه ځان بیل وساتي ، خلکو به دزیاتي تسلي لپاره هغه کوله چې دنوي دیوتا په باب دده نظر معلوم کړي خوده به یوه اوبله خواخبره اړوله ، بدهو درامو له هرې خبرې سره په کرکه عادت شوی ؤ خو د نوي دیو تا په باب هره ورځ دیوې نوې خبرې اوریدو ورو ورو دغه خبري ده ته هم په زړه پورې کړې چې له چا نه به یې دا اوریدل چې نوي دیو تا به ددوی جونګړې په مانیو بدلې کړي اوددوی په ښارو ځمکو به دمیوو ، ګلانو اوپنبې باران وکړي نودی به ددې پر ځای چې خوښ شي پردې به خپه شو چې ددیو تاسره به د را مو شهرت زیات شي اوبیا به خلک ترسکدیو دهغه زیات عزت کوي ،ده دا احساسوله چې له سکدیو سره دخلکو مینه ورو ورو مخ په کمیدو ده ، کو مو خلکو چې له را مو نه کرکه کوله اوس پرې ورمات شوې دي او چې نو ی دیو تاراشي نودغه خلک به سکدیو بلکل هیر کړي.

تردې زیات دې پردې خپه ؤ چې دکلي ښځې به چې هروخت له کنول سره را غونډې وې اودهغې پرښو به یې سر ورایښود و اوس یې درامو دکور په لوري پام اوښتی و خوددې ټولو خبرو سره سره ده په ډیره ناکرارۍ دنوي دیو تا انتظار کاوه.

**(۲)**

یو سهار داسمان پرتتر دتورو وریځو کاروانونه دختیځ نه لویدیځ لوري ته روان وو. دساون دنمجنی هوا په زړه پورې ځپې راالوتې وې، سکدیو

پر باران لمدی ختې راکیندلی او وړوکی ځای یی جوړ اوه، کنول شیدی ولوشلی اوپه یوه ختینه کتموه کی یی راپور ته کړی د سکدیو سره نژدی ودریده، سکدیو دیوه ژور چورت څخه سرراپورته کړ او له خولی یی بی اختیاره ووتل:

توپان! یو بل توپان!!

کنول اندیښمنه شوه ویی ویل!

څه ډول توپان! ته له سهار راسی په څه چورتونو کی ډوب یی! واخله داشیدی ،بدهو کبان راوړی دی زه به یی اوس پاخه کړم.

سکدیو دکنول له لاسه دشیدو پیاله واخیسته ویی ویل:

کنول! ښا یی دازما دژوند وروستی توپان وی.

- ته کله کله داسی خبری کوی چی زما سرنه پری خلاصیږی.

سکدیو شیدی وڅښلی اوپیاله یی کنول ته ور کړه.

بدهو ساه نیولی انگړ ته ور ننوت اوچیغی یی پیل کړی!

وروره! هغه راغی ، هغه ما پخپلو سترگو ولید.

سکدیو وپوښتل!

څوک راغلل، ته ولی دومره وارخطا یی؟

- دیو تا! دراموږ یو تا!! د ډنډ پر څنډه پر چوتره ناست دی.

ما هغه ولید اورا غلم، اوف څومره اوږده ژبه یی ده.

زه تری ویریدم. خلکو یی په مخ کی گلونه انبار کړل.

ماهم دي گلانو

ورشه، ستاوزی به‌نن زه بوزم.

- وروره! زه تیوکی نه کوم، ماهغه پخپلو سترگو ولید.

-ماکله‌ویلی چی ته تیوکی کوی، خوستا له‌دیو تا سره زماهیڅ مینه نشته.

- وروره! که‌ته‌زما نه خپه یی نو بیا به‌هیڅکله هم‌هلته‌ورنشم، دیو تا چی‌هر څه وی ماته‌تر تا زیات ارځښت نشی درلودای. که‌ته‌دانه خوښوی چی‌هلته‌ورشی زه به‌هم هیڅکله‌ورنشم، خو زه یوازی دومره پوښتنه‌درنه کوم چی‌هغه اصلاً څه‌شی د ی؟

نه‌خبری کولی‌شی، نه خوځیدای شی نه‌سترگی‌رپوی ما ته‌خوداسی ښکاری‌چی‌ساه هم‌نه‌اخلی.

- بدهو! رامو دهغی په‌اړه تاته څه ندی ویلی؟

- وروره! رامو خو دهغی په‌باب ډیری‌عجیبی خبری کوی، کله وایی چی‌هغه‌به‌مور. ته‌لویی لویی مانی جوړی کړی، کله‌وایی چی هغه‌به‌دلویو پا چا هانو او راجه‌گانو سره‌جگړی وکړی اودهغوی‌باغونه، فصلونه‌اوځړځایونه به‌تر ی واخلی مور. ته‌به‌یی وسپاری، خوزه په‌دی حیران یم چی‌هغه‌به‌چوپ اوبی حرکته‌ناست‌وی دا کارونه به څه‌ډول وکړی؟

سکدیو په‌بی پروایی وویل:

داپوښتنه هم‌باید له‌رامونه‌وشی.

بدهو له‌سکدیو سره‌نژدی به چیرکټ کیناست ویی‌ویل:

پټوی، زه ګورم چې له کومې ورځې د دیو تا په باب خبرې پیل شوې دي ته ډیر غمګین وی، ددې دیو تا په باب خلکو غوښتل له تانه ډیری پوښتنې وکړي خو تاسې یې په یوه اویله خبره واړوی او ځان ترې تیروی، زما له نورو سره څه کار نشته، خو ستا آرامي زما آرامي ده اوستا غم زما دی وروره!

ماته یوازې دومره ووایه چې آخر داڅه شی دی او ته په څه خبره اندیښمن یې، تاله مانه هیڅکله هم دځپل زړه خبره نه ده پټه کړې، اوس له مانه څه غلطي شوې ده؟

دبدهو د پوښتنو په ځواب کې سکدیو ترڅه ځنډه حیران ؤ اوهغه ته یې کتل، بالاخره یې وویل:

مادهغه دیو تا په باب ډیر څه ویلای شوای خو زه ویریږم چې ته به په دې اړه خبرې په زړه کې ونه ساتلای شې.

بدهو ځواب ورکړ:

وروره! په زړه کې هغه خلک خبره ساتي چې له چانه ویره لري زه له چا ویره نه لرم.

- مګر ماله را مو سره وعده کړې ده.

- څنګه وعده:

- همدغه خبره چې زه به د دیو تا په باب دده مخالفت نه کوم.

- زه کله وایم چې ته دهغه مخالفت وکړې زه له تانه یوازې داپوښتنه کوم چې دادیو تا څه شی دی؟ آخر هغه څه خبره ده چې ته غواړې له مابې

بدهو ! ته‌وعده وکړه چې دغه‌خبرې به‌دبل چا غوږ ته‌نه رسیږي!

- زه وعده کوم.

- ښه‌نوواوره- دادیو تاله آسمانه نه‌دی را کوزشوی داپخوا هم دبره وه او اوس هم . بدهو په‌حیرانۍ وپوښتل:

دبره ؟

- هو کې دبره ! ته په‌غرونو کې دی ته ورته په‌لکونو دبرې وینې.

په‌هغو اودی کې یوازې یو توپیر دادی چې داتراشل شوې اودانسان په ځیرپدله‌شوې ده.

که‌بدهو درامو په‌لاس جوړ شوې د هغه‌بوت پرځای چې پر چوتره بې حرکته چوپ درېدلی ؤ داسې لیدلی وای چې گرځې را گرځې اوخبرې کوې هم دسکدیو پر خبرو به یې شک نه‌ؤ کړی .بیا یې هم دخپل لپاره‌اودېر شک دلرې کولو لپاره وپوښتل:

خوورووره ! دېرو کسانو پخوا دغه دیو تا دلمبلو ،اتڼ اوگرځیدو په حالت کې لیدلی دی آیا داتول..... ؟ سکدیو دده‌خبره ور لنډه کړه ویې ویل:

را مو یو هوښیار اوځواکمن سړی دی، دنورو له خولې چې څه وغواړي را ایستلی یې شي ،که‌دی و وایې چې مادشپې لخوا یو پسه ولید چې دآسمـان په‌لور والوت نو په زرگونو نور داسې ساد گان به‌وویني چې دا اعتراف وکړي چې موږ هم پسه‌آسمان ته دالوت په‌حال کې لیدلی دی،

اوس ته‌ل فکر وکړه که‌زه دا ووایم چې دشپې مهال مې دیو تا ولید

خلک دشپې له خوا لهلري که کومهونهوګوري دابه ووايي چې ديو تا پر فيل سپور دی اوپه ځنګل کې چې کوم شپون ووينې چې شپيلی غږوی دوی به ګومان کوی چې ديو تادی اوشپيلی غږوی، تا په ټول عمر کې ديو په خپلو سترګو نه دی ليدلی، خوپه مورږ کې داسې هيڅوک نشته چې له ديو څخهونهويريږي. ددې ويری سبب دادی چې هره ورځ دديو انو کيسې اوري په توره شپه کې مورږ تهوني اوبوتې هم ديوان او پيريان شي او تري ويريږو، ددغه ديو تا پهباب را موله يوی مودی ډول ډول خبری او آوازی خپرولی، خلکو په خپلو سترګو ديو تا نهدی ليدلی چې نځيږي اوکينی اوجګيږي بلکې درامو په سترګو يې ليدلی دی اوداهم امکان لري چې پر هغه لوړه چوتره دبوت لهاينبودوڅخه مخکې پخپله را موهلته نځيدلی وی.

دسکديو هری جملې دبدهو په سترګو کې يوډول ځلا زياتوله داسې يې ګڼله چې سکديو ددرستې نړی دحکمت اوعلم خزانې دده په مغزونو کې ور تيل وهلی، په وار وار يې داپهزړه کې وروګرځيدل چې په منده ولاړ شي او په هغه لوړه چوتره ور پورته شي اوددیو تا ترڅنګ په کړس کړس وخاندی خلک ده ته پهحيراني وګوري خودی خندا ته دوام ورکړي. خلک يې وويروی او ويې ګواښي اوله چوتري څخه يې دراښکته کولو هڅه وکړي خودی پهلوړ غږ ووايي چې داډبره ده، ډبره! دا رامو تراشلې دهاوتاسو ته پري دوکه درکوی. دداسې خيالونو تر اغيزی لاندی دبدهو زړه ټپونهوهل ويې ويل:

سکديو ځواب ورکړ:

را مو داتهول ستاسی دخيرلپاره کوی، د هغه نيت خراب نه دی ، ماله هغه سره ژمنه کړی ده چی مخالفت به يی نه کوی، ځکه خو که زمادغه خبری دبل چا تر غوږه ورسيدی ښه کار به نه وی:

دبدهو پرخيره بيا ما يوسی راخپره شوه، دده وضعه هغه ماشوم ته ورته وه چی مور يی يوه عجيبه دلوبو نانځکه ورکړی خو ورته ووايی چی دا به بهر ته نه وړی اوچا ته به يی نه ور ښکاروی.

هغه په هيله منه لهجهه وويل:

وروره ! زه له را مو نه دځه خير تمه نه لرم، دادهغه دذليلو لوښه وخت دی. سکديو ځواب ورکړ:

زه پردی خبرو تر تا ښه پوهيږم ته اوس چوپ اوسه.

- ډيره ښه ده وروره ! زه به چا ته نه وايم ، يوځل هلته ورځم وگورم چی خلک ... ه کوی؟

- زه دی هلته له ورتلو نه ايساروم، خوهلته بيا څه سادگی ونه کړی.

- ډاډه اوسه، دايی وويل اوبيا بدهو جگ شو دچوتری پلوری ولاړ ، دبدهو له تلو نه ډير څند نه ؤ تير شوی چی دسکديو په زړه کی څه ور وگرځيدل اوپخپله هم دچوتری پلور ورپسی ورغی.

**(۳)**

دشاوخوا کليوخلک دچوتری پر شاوخوا را تهوليدل، دنوی ديو تا مخی ته دگلانو اوآمونو انبارونه پراته وو، رامو دچوتری نه لاندی پر يوه ډبره

را مو د دیو تا له ستاینو وروسته دخپل قوم دشانداری را تلونکی داسی تصویر وښود چې رازیې ددغه سپیڅلی بوت دخوښې په ترلاسه کولو کې نغښتې ؤ، دنمانځنې او قربانی دارځښت له بیا نولو وروسته ده خپل اولس ته دا ډاډ ورکاوه چې نور به دوی ته څوک ددلته ، هلته سرگردانه شپنو نوم نه اخلی ، بلکې ډیر زر به دوی هغه له ګڼې ګوڼې ډک ښارونه اوښکلی کوروته ونیسې چې تر هغو لاندې ددوی دپلرونو او نیکونو جونګړې ښخې شوې دی هغه ورځ لرې نه ده چې ددوی پا چا هان اوملکې پر اسونو اوفیلانو سپاره شي اوله دښمنانو سره جګړې ته راووزې. چې دهمدغه دیو تا په مرسته به دوی پر هغوبرې ومومې.

دغو خلکو ته دخپلو پا چا هانو او ملکو تصور ددغه دیو تا په مرسته د ترلاسه کیدونکیو نورو تولو نعمتونو نه دوی ته ډیر زړه ورنکې او له زغم نه اوچت ؤ. دهر چا زړه له خوښې نه په ټوپونو ؤ، دټولو په سترګو کې دامیدونو ډیوی بلې وی.

اودهر یوه ورمیږد دیو تا دمهر بانیو اوکرم تربار لاندې ټیټیده، غرض داچې نوی دیو تا درامو په ژبه دی خلکوته دنوی ژوند ، نوی رڼا او نو یو خوښیو پیغام ورکاوه.

سکدیو چې پر غونډۍ ورښکاره شو، سره له دی چې دنوی دیو تا له را تګ سره دی دخلکو په نظر نور پخوانی شوی ؤ خو دیوی شیبې لپاره یې دټولو پام خپل لور ته ورواړاوه، دوی غوښتل دنوی دیو تا په اړه دده په

ووایه چې ټول احمقان اوخره یاست.

دسکدیو تندی تریو شو او ورو یې ورته وویل: چوپ شه. له دې سره دهغه شونډې وګنډل شوې.

را موسکدیو اوږدهو ته وکتل او په فکر کې شو ، له ځنډ وروسته یې وویل:

ورونو ! تاسو ووایئ چې د دیو تا په خوښ ساتلو کې موګټه ده او که تاوان؟

له ټولو لوریو غږونه اوچت شول:

ګټه ، ګټه.

رامو وویل:

موږ د دغه دیو تا دخوښې په ترلاسه کولوسره دځمکې اوآسمان ټول نعمتونه حاصلولی شو. په یاد ولرئ که دغه دیو تا نا راضه شو نو موږ ټول به په مصیبت کې را ګیر شو دغه دیو تا ناراضه کوونکی به زموږ ترټولو بد دښمن وي که چا د دې له عبادت او نمانځنې نه انکار وکړ موږ به یې له خپلې خاورې وباسو ، څوک چې زموږ د سپیڅلي دیو تا په شان کې بې ادبي وکړي. موږ به ډیره سخته سزا ورکړو.

خلکو د رامو خبره ورسره تائید کړه وې ویل:

بې شکه ، همداسې به وکړو.

دراموله وینا وروسته یې دیوی وزی سرد دیو تا په پښو کې غوڅ کړ له هغې وروسته وریځې ، وغرمبیدې اودباران څاڅکو ورو ورو د دیو تا په

رامو هرسهار خلکو ته لمرله راختو مخکې د دیوتا په مخکې دحاضریدو او عبادت امر وکړاو بیا یې غونډه رنګه کړه ، سکدیو غوښتل چې دخلکو ورپام نشي خودده ځینو مینه والو را ایسار کړ او ددغه دیوتا په باب یې دده شخه دڅه اوریدو هیله وکړه.

سکدیو په غمجن غږ وویل:

زه خوښ یم چې یو زورور مرستندوی مو ومونده خو سکدیو غوښتل نور هم څه ووایي خو دخلکو په سترګو کې د خوښۍ ځلاله نور څه ویلو را ایسارکړ، دداونه غوښتل چې هغوی له دغه خیالي جنت څخه را وباسي.

یوه تن وپوښتل:

خو څه ؟!

سکدیو یوې اوبلې خوا ته وکتل پوښتنه یې وکړه:

ودریږه! بدهو چیرته ولاړ ؟

یوه سړي ځواب ورکړ:

هغه دا اوس پر چوتره ولاړ ؤ.

سکدیو چې دا واوریدل خلک یې یوې اوبلې خوا ته کړل او چوترې په لوریې مخه کړه ، چې ورنژدې شو وې لیدل چې ځوځوانان بدهو تیل وهي او دهغه له خولې اوپزې څخه وینې روانې دي، بدهو په لوړ غږ دوی ته کنځلې کوي، سکدیو په منډه ورغی دبدهو اونورو ځوانانو ترمنځ شو بیا یې یوزلمي تیل واهه اوویې ویل:

سکدیو تری وپوښتل :

څه خبره ده ؟

دده په ځواب کې رامو څو گامه وړاندې ورغې ، تر لږ څنډه دوا ړو یو بل ته وکتل ، داد رامو دبرې ورغ وه ، که یې غوښتلی پر سکدیو به یې هم یو کاری گوزار کړی ؤ. خو هغه یو هوښیار دښمن ؤ ، پوهیده چې سکدیو د خپل عمر یوه برخه په پوځ کې تیره کړې ده پر هغه کوږ گوزار هوښیاری نه ده ، پردې سربیره هغه پردې هم پوهیږی چې دخلکو مینه ورسره لږ شویده خو ختمه شوی نه ده ، دنوی دیو تا له درناوی سره سره ډیرداسی کسان شته چې له سکدیو سره بدسلوک ونه زغملای شی.

سکدیو وپوښتل:

بدهو څه گناه کړی ده ؟

رامو ځواب ورکړ:

له ده نه پخپله وپوښته!

سکدیو بدهو ته وکتل او ویې ویل:

بدهو تاڅه وکړل ؟ ما په وار وار درته ویلی وو چې څه بې عقلی ونه کړې.

بدهو ځواب ورکړ:

ماهیڅ نه دی کړی ما یوازې دالیدل چې وگورم دیو تا له ختو څخه جوړ شوی دی که له ډبرې څخه .

دبدهو له دی خبری سره سکدیو رامو ته په معنی دار نظر وکتل او هغه

شو هغه وویل:

وروره! دې وبخښنه ديو تا يې په عمر کې نه دی ليدلی.

را مو داد منه ساه واخيسته ځواب يې ورکړ:

زه پوهيږم دې ناپوه دې خو ته يې پوهولی شې:

-ته داده اوسه، راځه بدهو کورته ځو!

دباران له توندیدو سره دبوت شاوخوا ته راټول خلک ورو ورو لې شول، خلکو را موته وویل چې ولاړ شي، خو هغه ځواب ورکړ:

تاسو ولاړ شی زه له ديو تا سره څه خبرې کوم.

(٤)

بدهو سکديو کورته ورساوه اوبيا خپل کورته راګرځيده چې هلته نژدې دکلي څو تنه تيريدل اوديو تا په باب يې خبرې کولې.

يوه له بل نه پوښتنه وکړه:

مګراوس را موهلته څه کوي؟

بل ځواب ورکړ:

ولې تاوانه وريدل چا وویل چې هغه په يوازې توب کې غواړي له ديو-تا سره څه خبرې وکړي.

نورو په يوه غږ وویل:

له ديو تاسره خبرې !!

- واوره داخو څه لويه خبره نه ده.

دغه خلک په خبرو بوخت وو او تير شول، بدهو ترډيره پهباران کی ولاړ ؤ، بالاخره هغه پخپل زړه کی وويل:
دادروغ دی، دادروغ دی، اوبيا په منډه خپل کورتهولاړ لههغه ځايه يی تبر راواخيست اوبيا دهغی چوتری پهلورولاړ.
بدهو دپيپل دلويی ونیلهلوری چوتری ته ورو جگ شو اودونی دتنی لهشانهيی چوتری تهوکتل.
رامو لهباران څخه بی پروا آمونه خوړل اوپوستکی اوزړی يیددیو تا مخی تهانبارول، هغه چی پر مړه خيټه امخوړل بوت تهیی مخ وروا اوه اوويی ويل:
- غوره ديو تا ! نور می په خيټه کی ځای نشته، تاډيروخوړل دغهزړی اوپوستونه ستا دښی اشتها دثبوت لپاره بس دیزه بهيی خورم اوشهرت بهستا زياتيږی خو ماته يوازی دآم دخوړلو لپاره نهيی جوړ کړی، دوينودڅښلو لپاره می جوړ کړی يی، دخپلو دښمنانو دوينو، زما د اولس ددښمنانو د وينو اود پا چا هانو اولويو واکمنو دوينو لپاره دبدهو غوندی ناپوهو اوسکديو غوندی هوښيارانو. زما ښه ديو تا! زه بهدی په مخکی دوينو لښتی وبهوم.
ستا دخوښی لپاره نهبلکی دخپلی خوښی لپاره، زه پوهيږم چیستا لپاره خوښیاوغم هيڅ معنی نهلری، تهډبره يی خو انسان لهتانهدګتی اوچتولو په چل پوهيږی. اوس مابنام کيدونکی دیزه درنه ځم.
را مو دا وويل لهچوتری څخهراکوز شو، خوڅوګامه چی ولاړ بيرته يی

نه په هغو کی دومره جرئت نشته، که دی مات کړی هم پروا دی نه لرم، نور به جوړ کړم، ترڅو چی په غرونو کی دبری شته ترهغی به پردی لوړه چوتره تا ته ورته کوم بوت دریدلی وی.

را موداوویل اوبیرته یی مخ واړاوه، ګرندی ګامونه یی واخیستل اوله چوتری څخه راکوز شو، دماښام خړه دشپی په تیارو بدلیدله باران هماغسی توند اوریده، بدهو خپ خپ دونی دتنی له شانه راووت پر چوتره کیناست اودپا تی آمونو په خوړلو یی پیل وکړ، یو آم لږ تروش ؤ هغه یی دبوت پر مخ وروویشت اوویی ویل:

را مو بدماش تول خواږه آمونه خوړلی دی.

هغه له دیو تاسره درامو خبری اویدلی وی، دهغو الفاظ یی تکرارول اودآم دخوږی شیری سره یی دزهر وګوټ هم تیر اوه: دبدهو په څیر دناپوهانو اودسکدیو په څیر هوښیارانو وینی!

هغه تر ډیره پوری د آمونو خوندوانه خیستلای شو د تورو په برښنا کی یی ددیو تاهیبتنا که څیره ولیده او راجګ شو.

دوهم ځلی چی دبرښنا رڼا شوه ده تبر را اوچت کړ او وړاندی ورغی، سره له دی چی فطرتاً زړورؤ زړه یی ودرزید.

چی توری بیا وبریښیدی ورسره جوخت دبدهو تبرد بوت پر ورمیږو-نښت اوپر چوتره دیوه درانه شی دغورځیدو غږ اوچت شو بدهو غوښتل وتښتی خو څه خیال یی په ذهن کی ور وګرځید اوتم شو، دتورو په رڼا کی یی ولیدل چی ددیو تا سر ...

ته‌وروغورځاوه له‌دی سره بیا توری وبرښیدی اودوریځو ویروونکی غړمباپورته‌شوه، باران نور هم توند شو، دوریځو نوره ګړزا دومره زوروره وه چی دی له‌ویری په ځمکه کیناست، دتورو په‌بریښنا کی یی پر سترګو تیاره راغله اوداسی یی احساس کړه لکه ځمکه چی ریږدی.

دبدهو په ذهن کی درامو دغه‌خبری چی که‌دیو تا خپه شونو مصیبت به‌راشی دوهمونو په‌بڼه ورته په‌مخکی نښیدلی، دشیشکو اودیوانو کیسی چی‌ده‌پری باور کړی ؤ دیوه زړور شپانه دژوند یو کمزوری اړخ ؤ.

د ه دیوه خطرناک دښمن مقابلی ته‌خپل ټول‌توان او زور په کاراچولی شوای ځکه یی یو وخت په‌تیاره کی خپله یوه‌وزه پیری ګڼلی وه، وژلی یی‌وه خودی له‌هغه شیانوڅخه ډیرویریده چی مخامخ نه‌را تلل بلکی په زړه کی پټیدل‌او پردماغ یی حمله کوله. د ډبری بوت‌یی دورځی لخوا ښه پلټلی اولیدلی ؤ اومابنام یی چی درامو خبری واوریدی‌نور هم ډاډه شوی ؤ خوکه‌ده را مؤ نه‌وای لیدلی چی ددغه ویروونکی بوت په‌مخکی یی آمونه خوړل، دی به‌یی مخی ته نه‌ؤ ناست‌او په جرئت به‌یی آمونه نه‌وو خوړلی. داویل به‌غلط وی چی که را مو په خپلو خبرو کی ددی بوت دماتیدو اندیښنه نه‌وای ښودلی نو بدهو به پر هغو دحملی جرئت نه‌ؤ کړی، د سکدیو په‌باب درامو دنیت څخه دخبریدو نه‌وروسته که دبدهو په‌مخکی له‌دغی ډبری نه غرجوړ شوی‌وای هم ده به‌یی له‌ماتولو ډډه‌نه‌وای کړی، دسکدیو دژغورلو لپاره‌ده هر خطر ته‌اوږه ورکولای

اصلی خطر لری شوی ؤ خو وهمونه پاتی وو، وهمونه چی په رنا کی مخی ته نه را تلل. او په تیاره کی پردماغ حمله راوړی دبدهو دسترگو په مخ کی، مارتیر شوی ؤ خو لیکه یی پاتی وه، هغه له مار سره جنگیدلی شوای خودومره یی پر ځان باور نه ؤ چی له هسی ښی نه مار ورته جوړ نشی.

بدهو له ویری دکور په لور منډه واخیسته، دوهمونو شیشکی ورپسی وی، چی له لومړی چوتری نه راکوزشو پښه یی وښوئیده، پرمخی ولوید او څو گامه نور هم وښوئید.

ملا یی معمولی وگریده، دتورو په برښنا کی یی یوه اوبله خوا وکتل. شاوخوا هیڅ نه وو، که وای نو خامخا به یی مقابلی ته را پورته شوی وو، بریښنا بیا وځلیده بدهو چیغی کړی وی ویل: بدمعاشه! په تیارو کی راپسی یی په رڼا کی مخی ته نه راځی!
هغه جگ شو بیا یی دمنډی وهلو اراده وکړه خو ورپه یاد شو ل چی شیشکه هغوی نه پریږدی چی تری وویرېږی اومنډه واخلی له دی سوچ سره ورو ورو روان شو بیا به یی هم چی دوه دری گامه واخستل یو ځل به یی شاته وکتل، چی کلی ته ورسید بدهو ولیدل چی دکلی پراخی کوڅی پرویالو او خوړونو بدلی شوی دی. دی دخپل کور پر ځای نیغ دسکدیو دکور په لور ورغی.

# سیلاب

دسکدیو دڅپری په یوه کونج کی ثراغ بل ؤ هلته ورسره په یوه کټ شا نتا او مادهو پراته وو، په دوهم کونج کی له دوو چپرکتهونو څخه پر یوه سکدیو ناست ؤ ، دهغه په څیره کی دژوروسوچونو او ذهنی کشمکش نخښې وی.

په دوهم کټ کنول پریشانه ناسته وه او ده ته یی کتل.

کنول وپوښتل:

نن ته څه سوچونه کوی! دادیو تایی لاڅه بلاوی؟

سکدیو کنول ته وکتل او ځواب یی ورکړ:

اوس ماد دیوتا په باب فکر نه کاوه ، کنول تا ته دی خپل وطن نه یادیږی ؟

دسکدیو دی خبرو دکنول له سترگو نه دماضی پرده پورته کړه او څو شیبی په هغو غرونو ، درو او ډنډونو کی ورکه شوه.

سکدیو بیا وویل:

کنول! ما ته نن ستا وطن را یادیږی ، زه داسی فکر کوم چی په دلته اوسیدو می دخپل عمر ډیره برخه هسی ضایع کړه.

وای.

هغه ډیر ښه خلک وو، دوی یوه پوځی لارښود ته اړتیا درلوده، مابه په ځو میاشتو کی لەدوی نه سپاهیان جوړکړی وو دوی به می سره یو کړی وو او دراجه دپوځونو په مخکی به می داوسپنی ددیوال په څیر درولی وو.

کنول ته‌بەبیا دخپل هیواد یوه ملکه وای اوزه به ستا دپوځ سرلښکر وم. دټولنی اوکلتور لوی لوی پاچا هان به دی مقابلی ته را تلل اوما به هغوی ته ماته ورکوله.

کنول په‌سادگی ځواب ورکړ:

کنول به دملکی په‌نامه دومره خوښه نه‌وای لکه اوس چی ستا دخدمتگاری نوم ورپوری دی. که ته هلته تللی وای‌هم مابه په خوښی نه‌وی پریښی چی جگړی ته‌ولاړ شی موږ به لری چیرته‌غرونو ته تللی وو او یوه څپره به‌مو آباده کړی وای.

کەاوس هم‌ستا اراده وی نو په‌هغو غرونو کی‌به‌داسی ځایونه وی چی د پاچا پوځونه نه‌وی ور رسیدلی.

سکدیو وویل:

کنول! ښایی وضعه‌داسی راشی ،چی موږ لەدی ځایه تللو ته‌مجبور شو مگر اوس هلته زما لەځه شی سره مینه کیدای‌شی ستااولس به اوس دلوړو ذاتو دقانون لەغلامی سره روږدی شوی وی، دوی به‌اوس هغه ځوک دیو تا گان گنی چی‌ددوی آزادی یی تری اخیستی‌وه.

ددوی وضعه

کنول وويل : مااوريدلي دي چي را مو له لوړ ذاتو سره دجګړې خيال لري ؟

سکديو ځواب ورکړ:

هغـه ناپوه دي ددي کليـو دښمنو نارينه اوښځـو ټول شمـير ترلسـو زرو زيات نه دي ددي خلکو په زورد پا چا هي خوبونه ويني.

- نن چي ته بهرته تللی وې دهغه ميرمن دلتـه را غلی وه ماته يې ويل چي زه ملکه کيږم.

شانتا دځپرې په بل کونج کې په کټ کې را جګه شوه ويې ويل: دشيشکی لور!

کنول او سکديو وخندل.

سکديو تری وپوښتل :

لوري همدا اوس را ويښه شوې؟

- پلار جانه ويده وم په خوب کې مې ديو تا وليد و ويريدم.

- ويده شه لوري هغه څه دو يري شي نه دي.

- بدهو کاکا ويل چي دهغه ژبه ډيره اوږده وي او ماشومان خوري.

- بدهو دروغ وايي ته ويده شه.

شانتا بيرته پر يوته خو څه په خيال کې ورتير شول بيرته راپورته شوه اودمادهو سرته کيناستله ، ورويې هغه ته وويل:

وروره ! سهار به دديو تاليدو ته ورځو.

مـادهورا ويښ شو سترګې يې ومښلې وې ويل: درومه شيشکی!

پلار جانه دامې خوب ته نه پريږدي..

شانتا! دې ولې په تنګ کوې، که يې يوه ځپېره ووهلې بيا به ترنيمې شپې پورې ژاړي.

شانتا بيرته په خپل کټ پريوته او ترلږ ځنډ پورې يې چت ته کتل بيا يې وويل:

موري! باران له کومه راځي؟

کنول چوپه‌وه خومادهو هماغسې چې پروت ؤ ځواب ورکړ:

له وريځو نه‌راځي نور له کومه راځي.

- وريځې له کومه راځي؟

- له غرونو نه.

- غرونه له کومه راځي؟

مادهو چوپ شو ، شانتا له سکديو نه پوښتنه وکړه:

پلار جانه! غرونه له کومه‌ځايه‌راځي؟

کنول په‌غوسه شوه ويې ويل:

ستاله سرنه، اوس ويده شه که نه‌وهل خوري، شانتا سترګې پټې کړې خولږ ځنډ وروسته يې بيا وويل:

مور جانې!

کنول په تندۍ ځواب ورکړ:

څه‌دي؟

- هيڅ هم نه

- چې هيڅ هم نه‌نو ولې غږ راته‌کوې؟

شی؟

بهر په ختيو او او بو کی دچا د پښو تر پهار او چت شو.

شانتا را پور ته شوه او ويی ويل:

بدهو کاکا، بدهو کاکا را غی. بدهو چی دروازی ته را نژدی شو سکديو ته يی غږ وکړ.

وروره!

شانتا په منډه ورغله دروازه يی خلاصه کړه، بدهو دننه ورغی، سکديو ورته وويل:

بدهو په دی باران کی دی هم طاقت ونه شو؟

يخنی به دی ووهی له کومه ځايه را غلی؟

- له کوره.

- نه جامی دی تولی لمدی دی، داسی ښکاری چی له څنډه په باران کی گرځيدلی.

- وروره! ډير توند باران دی ته لږ وروځه پخپله به يی وگوری چی جامی لمدوی که نه؟

- مگر ته خو ريږدی هم.

کنول وويل:

کرتی دی لری کړه دغه ځا در واغونده زه به دادر ته ونيبستيځم

- نه دابه اوس وچه شی، دايی وويل بدهو بيا دسکديو دکټ له يوی

به‌راشي، که‌دسيند اوبه‌هم‌را نشي مړو دوزواوميږو لپاره مجبور يو کومي غونډي ته‌وخيژو ماهمدا اوس چي دوزوخپري وليدي دننه‌ډيري اوبه‌ورغلي دي، ډنډ هم ډک شوي دي‌اواوبه نوري‌زموږ دکليو په‌لور راماتي دي.

دډنډ دنامه په‌اوريدو سکديو ټکان وخوړ ويي ويل

ته‌اوس دډنډ له‌لوري‌را غلي يي؟

- وروره! هلته مي تلوته څه اړتيا وه ته بهر ته ووزه پخپله وگوره، دکلي کوڅي په ويالواوخړو‌نو بدلي شوي دي.

زما په گومان خو به‌درامو، نتيهو اولکهو کلي اوبه ورسره يوسي، درامو کلي تر ټولو ټيټ پروت دي، که‌دهغوي کلي اوبه‌يوسي نودي به‌وايي چي ديو تا دڅا دگناه‌سزا راکړه، دابه ونه‌وايي چي ما دخپلو دروغو سزا وليده.

سکديو حيران‌شو ويي ويل:

څه‌ډول گناه؟

مدهوپريشانه‌شو سکديو ته‌يي وکتل، هغه‌يي چي جدي اوغوسه وليد پرخپل جرم داعتراف جرئت يي ونکړاي شو، که‌ده دسکديو پر شونډو يوه پيکه موسکا ليدلي واي‌هم‌نودا اعتراف ورته گران نه‌ؤ چي ووايي:

ماهغه‌مصيبت ختم کړ اوراغلم، خودسکديو تيز نظر دده حوصله

کاکا هغه آم خوري؟

بدهو ځواب ورکړ:

هغه يې نه خوري خورامو به يې وخوري اوزړي اوپوستکی به يې دهغه مخې ته وغورځوي.

کتول وخندل ، سکدیو هم وموسکل اوویې ویل:

بدهو ! تهاوس ډیر چالاک شوی یې ،زه ویریږم چې ستا په سبب به څه مصیبت کی را گیر نه شو.

سکدیو دغه خبره په خندا وکړه خو بدهو ونه زغملای شوه.

زړه يې ولوید ،په ډکو سترگو یې سکدیو تهوکتل او ویې ویل:

زما په سبب به تاسو څه مصیبت کی را گیر شی؟

وروره! ته ولی داسې نهوایې چې ورک شه چیرته پهاوبو کی ډوب شه.

- اوهو! ته خو خپه شوی ماخو ستا ستاینهوکړه! ښهاوس لږ شپیلی راته وغږوه!

دشپیلی غږولو غوښتنی لهبدهو څخه هرڅه هیر کړل ویی ویل:

زما شپیلی خو په کور کی پا تی ده.

- شانتا دما دهو شپیلی ورکړه!

مادهو بهدویده کیدو پهوخت کی تل خپله شپیلی ترسرلاندی ایښودله.

شانتا ورجگه شوه چې شپیلی یی را اخیستـه هغـه یی پهورمیږه

شانتا ته ډیره شوخه شوی یې!

شانتا شپیلی بدهو ته ورکړه او را غله پرخپل ځای کیناستله، مادهو هم پریوت خود شپیلی غږیې چې پر غوږو لگید راجگ شو او ویې ویل:

بدهو کاکا، بدهو کاکا

شپه ترنیمایی واوښته، مادهو، شانتا او کنول دشپیلی خوږو نغمو ته خوب یوړل او ویده شول، دسکدیو پر سترگو هم خوب زور راوړ خونه یې غوښتل چې دبدهو زړه مات کړي، رپیدونکی ډیوه هم گل شوه او دبدهو دشپیلی وروستی تالونه دباران په شړکنده ترانه کی ورک شول، هغه وویل :

وروره" ډیوه مړه شوه زه نور ځم».

سکدیو وویل:

همدلته ویده شه. زه به له مادهوسره یوځای ویده شم.

– نه وروره زه به دوزو احوال هم راسره واخلم، باران ونه درید ترسهاره به دسیند او به خامخا راوخیژی.

بدهو داوویل او جگ شو خودروازی ته نژدی ودرید دسکدیو خیره چې تراوسه ده دخه ویلو جرئت نشو ورته کولی اوس تری پناه وه، دبدهو زړه ودرزید ډیر جرئت شخه یې کار واخیست ویې ویل: وروره!

– څه خبره ده بدهو!

دبدهو دزړه درزا گړندی شوه،الفاظ یې شونډو ته را غلل او و درید ل:

ماشومانو اونارینه‌وچیغی اوفریادونه واوریدل، هغه‌را جگ شو کنول یی راویښه کړه اوویی ویل:

کنول! لکه چی اوبه‌را غلی ، ما دهو اوشا نتا راجگ کړه ښا یی تیښتی ته اړ شو.

کنول چی راجگه‌شوه‌او پښی یی له‌بستری نه‌بهر کیښودی وویریده ویی ویل:

اوبه خو زموږ دکور دننه هم‌را غلی‌دی وړی لمدی شوی‌دی

دادوړیو په‌باب داندیښنی وخت‌نه‌دی زموږ کور ډیر په جگه‌دی ، که دلته‌اوبه‌را غلی وی‌نو مطلب یی دادی چی‌شاوخوا ځپری‌به‌سیلاب ورسره وړی وی.

سکدیو بهر په‌انګړ کی دځارویو دپښوغږواورید په‌بیړه را جگ شو دروازه یی وازه کړه، بدهو دری خره په‌منډه‌ورسره‌راوستی وو ، هغه‌په زوره وویل:

وروره! بیړه کوه‌سیند راپورته شوی دی، خلک دغونډیو په لور تښتی ، ته‌په‌بیړه سامان پرخرو بارکړه زه‌به‌وزی یوه لوړځای ته‌ورسوم او بیرته‌به‌راشم بدهو داوویل اودسکدیو دځواب په‌انتظار نه‌شواوپه منډه بیرته‌بهرته ووت.

(۲)

سهاروختی‌سکدیو ، بدهو اود دوی‌بال بچ له‌کلی نه‌نژدی یو میل او

داسمان پر تتبر د «پورب او پچهم (۱)» پرافق دځپروشیو تورووریځو په منځ کې دسپینو وریځو یوه نسبتاً نری نقاب لاندې په ډول ډول رنګونو وریځې د لویدیځ څخه ختیځ لوری ته خوځیدلې وې، داسې ښکاریده چې دسمندرونو واکمن چې خپل پوغ یې دهمالیې پرعظمت او سپیځلتیا دخپلو خزانو اوشتمنیو دشیندلو لپاره رااستولي ؤ دخپلې شتمنې یوه برخه یې ساتلې وه اودپنجاب پراخو میدانونو ته یې مخه کړې ده.

دراوي سیند په میلونو میلونو اوږود غزیدلی ؤ، اوبه هماغسې را پورته کیدلې په کلیو کې دبانس او درګو څپرې نه تر سترګو کیدې.

ځای ځای دختینو کورونو دیوالونه داوبو نه را وتلي ښکاریدل.

چې هغه هم وروورو نړیدل اود اوبو په غیږ ه کې ورکیدل.

شاوخوا دښځو له ژړا اوفریاد څخه ښکاریدله چې دشا وخوا کلیو څخه خلک پوره اوسلامت نه وو را وتلي ، دغه وړوکي غونډۍ اوس دیوه لوی ډنډ وړوکوټاپو ګانو ته ورته دي، دسیلاب زیاتیدو دهغو ترمنځ دتلو راتلو لارې هم بندې کړې وې.

سکدیو څو ځله دې ته چمتو شو چې په اوبو کې په لامبو پورې وزي اوشاوخوا خلکو ته ورشي اوتسلي ورکړي، خوکنول او بدهو به را ایسارکړ، بدهو به په وار وارورته ویل:

ورورِه! دومره لرې په لامبو تیریدل آسانه نه دي ، او داتپول ناپوهان زموږ دښمنان دي موږ باید له هغوی سره هیڅ اړیکې ونه لرو چې اوبه

ددوی دښمنان کیدای شي ،خودکنول زاریواو دسیلاب مخ پرزیاتیدو اوبو دی دخپلو ارادوله عملي کولو نه را ایسارکړی ؤ.

دسکدیو دا اراده هم نه وه چې له نور وخلکو څخه دی بیل په یوه لوړه وخیژي اوځای دی ونیسي ، خو دشپې مهال چې کله بدهو څاروی ورسره راوستل اوله کلي را ووتنو په لاره کې یې څو لوړې پرېښودې اودځان لپاره یې داسې یو ځای غوره کړ چې دبل چادورتلو گومان نه کیده ، دشپې مهال زیاترو شپنو دنوی دیو تا نسبتاً لویې اواوچتې غونډۍ ته مخه وکړه ، ځینو هڅه وکړه چې بدهو هم ورسره بوزي خوده صفا انکار وکړاو ورته ویې ویل چې نه زه له تاسو سره ځم اونه به تاسو زموږ سره ځی.

**(۳)**

شانتا اومادهو له سکدیو بدهو اوکنول څخه لږ لرې یوه څنگ ته ناست وو اودختو کورونه یې جوړ ول، مادهودا سمان په لور وکتل اوویې ویل:
شانتا! وگوره وریځې تښتي، دوی به اوس خپلو خپلو کورونو ته ولاړ ی شي اولږ ځند وروسته به لمر راوخیژي.
شانتادسر له خوځولو سره ځواب ورکړ.

نه روره! دابه اوس میږي ، پسونه وزې اوغوایان اومیښې شي اولویو لوېو ډنډونو ته به مخه کړي هلته به اویه وڅښي بیرته به راشي

-په لوړ و لوړو ونو به وخیژو.

-زموږ پسونه اووزی به څه کوی؟

شانتا په سوچونو کې شوه، خولې څند وروسته یې ځواب ورکړ:

موږ به په ونو نه خیژو غرونو ته به ولاړ شو، بدهو کاکا ویل غرله ونو نه ډیرجگ وی مادهوتا غرلیدلی دی؟

- نه!

- بدهو کاکا ویل چی ماغرلیدلی دی، هلته په ځمکه کې سوری وی چی تل یخې، خوږی اوږنۍ اوبه تری بهیږی، دهغوځوکی وریځو ته ډیری نژدی وی، که موږ هلته ولاړ و له وریځو سره به لوبی کوو، داډیری گړندی زغلی، هلته به خلک پردی سپارلی کوی.

مادهو آسمان ته وکتل اوویې ویل:

زه به هم هلته ولاړ شم او په وریځو به سپارلی کوم.

-زه هم.

- نه ته نه، نجونی پروریځو سپرلی نه کوی.

دایی وویل بیا یې بدهو ته وکتل اوویې ویل:

بدهو کاکا! زه غره ته ځم پروریځو به سپریږم، ته هم راسره ځې که نه؟

- هوکی بچیه! موږ دلته نه پاتې کیږو.

مادهو سکدیو اوکنول ته وکتل اوویې ویل:

مورجانی تا غرلیدلی دی؟

کنول دځواب ورکولو پرځای سکدیو ته وکتل اوسترگی یی راښکی شوی.

مادهوبیا وویل:

مورجانی تاغرنه‌دی لیدلی؟

- زوی جانه! زه غرونو ته نژدی زیږیدلی یم.

- هلته له ځمکی څخه اوبه راخوټیږی؟

- هوکی!

- نو زه به‌خامخا هلته ځم، کنول بیا سکدیو ته وکتل.

سکدیو وویل:

کنول مور به‌هلته ولاړ شو.

مادهو دهغه‌ترپښو لاسونه‌ورتاو کړل ویی ویل:

پلار جانه مور به‌کله هلته ځو؟

- چی کله‌اوبه‌ښکته‌شی.

کنول وویل:

مگر که‌هلته‌ستا دښمن ؤ نوبیا؟

- اوس مور څوک پیژندلی شی، ستا قوم به‌داگومان هم‌ونکړی چی ته‌ددوی دسردار لوریی، اوس که‌دراجه پوځیان‌هم‌هلته وی نوداگومان به‌هم‌ونکړی چی یووخت زه ددوی دپوځ لوی‌سالار وم، کنول مور به خامخا هلته ځو.

ده په هغه لوړه غونډۍ دخلکو دګڼې ګوڼې یو څرک لیدای شوای ، له دومره لرې څخه ده دهغوی غږونه نشو اوریدای ، بیا یې هم دا احساسوله چې هغوی ټول دده لوری ته راګوري اودده په باب خبرې کوي. دده دغه وهم غلط هم نه ؤ ، دنوی دیو تا نما نځونکیو ته دهغه د سرور کیدو سبب معلوم شوی ؤ.

دبدهو زیاتو کلیوالو شپنو دده تبرپیژندلی ؤ چې دشپې مهال له وارخطایی څخه ده په چوتره پریښی ؤ. دوی دخپلو بربادیو ټوله پړه دبدهو پرسرو رغورځوله اوهیڅوک داسی نه وو چې ددی بوت دماتوونکی غوښو شکولوته چمتو نه وی خو را مو دخپلو تودو اواحساساتی وینا و په واسطه داثابته کړی وه چې ستا سو اصلی دښمن بدهو نه بلکې سکدیو دی بدهو یو بې عقله انسان دی هغه پخپله اراده داکار نشی کولای.

بدهو بې داسی کار ته خامخا سکدیو هڅولی وی سکدیو دلوړذاتو څخه دی زموږ نیکی هغه زموږ ورور نشی کولی.

هغه نه غواړی چې موږ داسی دیو تا ولرو چې مرسته راسره وکړی ترڅو موږ پر مختګ وکړو ، خپل له لاسه ورکړی حقوق بیرته ترلاسه کړو اود قانون اوټولنی له خاوندانو سره برابرشو ، هغه ددښمن جاسوس دی ، د لوړذاتو ټولنی به له دې ویره درلوده چې موږ په کوم وخت دکوم زورور دیو تا په مرسته ددوی پرخلاف دریږو. ځکه یې دیر کلونه دمخه خپل جاسوس زموږ منځ ته را واستاوه.

پر موږ دامصیبت ځکه راغلی دی چې له دیو تا سره بدسلوک شوی دی، کومې ښځې ماشومان او سړی چې ډوب شوی دی، د هغوی دوینو پور پرسکدیو دی، تاسو ټول ډیر ناپوهان یاست، زما باور دی چې له ده ښځه په بدل وانخلی خو دیوتا خپل بدل اخلی او خامخا به یې اخلی.

دیوتا مړی نه بنه بدلوی، زما باور دی چې زموږ دیو تا به یوه ورځ بیرته په بدله ښه راشی، سکدیو دهغه له غضب ښځه ځان نشی ژغورلی، هغه گناه کړی ده سزایی باید وگالی.

**(٤)**

ماښام مهال آسمان شین شوی ؤ، لمر داوردسکروټی په څیر بدل شوی ؤ، دشفق سرخی داوبو تر تل پوری داوردیوی لړزیدونکی ستنی په څیر ښکاریده، بیا ډوبیدونکی دلمر سترگی پراوبو تندی کینبود او د اورڅلی د اوبو پر مخ خپور اودوینو پرسمندر بدل شو.

بالاخره دکاییناتو دمحفل ډیوه په پردو کی پټه شوه اودځمکی پر مخ دخپگان توری تیاری وغوړیدی.

خوپراسمان دیوه لمر له مشال ښځه دمحرومیدو په بدل کی دستوریو په زرگونو ډیوی بلی شوی.

دشپی دیوی برخی له تیریدو وروسته دختیځ دیوی غونډی له شاڅخه دتتی رڼا وړانگی راپورته شوی او پراسمان دنیمی دایری په بڼه خپری شوی، او لږ ځند وروسته دغره په څوکه دسپو ږمی سپین تاج وځلید.

بدهو دورځی لخوا دغونډی په شاوخوا کی په اوبو کی ډډوبو اغزنوونو وچی څانگی، راټولی کړی وی او ښه کافی خس یی برابرکړی وو، خو

دورڅې په اوږدو کې وزې دغونډۍ په څوکه په وښو کې څرېدلې خو مړې نه شوې، بیا هم دهغولړ څه شېدې ددوی لپاره بس وې شانتا اومادو یوازې دشیدو پر ځښلو تسلی نه کوله شانتا دمادهو په غوږ کې ورو څه وویل اوهغه داوبو ځښلو په پلمه یوی خواته ولاړ لږ ځنډ وروسته بېرته راغی اوله شانتا سره نژدې کیناست، شانتا چې دهغه موټی بند ولیدل دموسکا په مطلب یې وپوهیده او ورجګه شوه دواړه لاسونه یې مادهو ته وروغځول مادهو بدهو ته وکتل ویې ویل:

کاکا! بیا بې شانتا په لاسوکې د دوریجو ډک موټی ور پرانیستل.

لږ ځنډ وروسته بدهو دخبرو نه ناڅا په چوپ شو او ویې ویل:

تاسو څه کوی؟

دواړو خولې بندې کړې اوبدهو ته یې وکتل.

شانتا ورټیټه شوه په غوږ کې یې ورته وویل:

کاکا خوله دې وازه کړه!

بدهو خوله خلاصه کړه اوشانتا په بیړه څو دانې وریجې په خوله کې ور واچولې.

بدهو وویل:

هې لیونې اوبیا چوپ شو، بیا درې واړو اومې وریجې ژوولې.

هریوه چې خپله خپله برخه خلاصه کړه اوټولو یو بل ته وکتل.

مادهو وویل:

کاکا جانه! نورې راوړم. بیا ورجګ شو اودکټوې څنګ ته کیناست څو لپې وریجې یې په لمن کې راواچولې اوبیرته راغی دبدهو ترڅنګ

# درامو کسات

دشپې په دریمه برخه کې دکنول درد ناکې چیغې بدهو له خوبه راویښ کړ، هغه سترګې مښلې اوله ځایه راجګ شو، په ویره یې یوې اوبلې خوا ته وکتل، څو ګامه لرې کنول د سکدیو پر سینه سرایښې ؤ او پرمخې پرته وه، ده دغه کریغه هسې خپل وهم و باله اوغوښتل یې چې بیرته پریوزي چې دسکدیو دزګیروي غږیې واورید.

بدهو په وارخطایي وویل:

وروره!

سکدیو دځواب پرځای ورو خپل لاس راپورته کړ یوه شیبه یې لاس په هوا کې ؤ اوبیا دغوښو دیوې بې روحه ټوټې په څیر بیرته لاندې ولوید،

بدهو وارخطا شو چیغې یې کړې:

وروره! وروره!! اودسکدیو په لوري یې منډه ورواخسته، چې نژدې ورغې یوه ویروونکې ننداره یې ولیده چې وینې یې په رګونو کې یخې ودریدې.

دسکدیو له سر څخه وینو داري وهلې. دکنول یومټ چې دسکدیو

نه، نه‌داسی نشی کیدای ،زه هسی خوب وینم، داسی نشی کیدای!!
خودسهار دتازه هوا څپو یی په‌خوشیبو کی دبدن ټول حواس راویښ کړل، په‌دردنا که‌لهجه یی وویل:
وروره! بیا د سکدیو ترڅنګ کیناست، چی دسکدیود لاس له‌خوځولو اوده ته په‌غږونو سترې اومایوس شو نو بیا یی دکنول متې په خپلو مزبوتولاسونو وخوځولی اوغږونه یی پری وکړل :
خوری ! خوری !!
شانتا او مادهو هم وارخطا را غلل اوپه چیغو یی ددوی ترڅنګ ژړل.
کنول له خوځله ژوری ساه اخستو وروسته سترګې وغړولی بدهو په ډیره ناکراری تری وپوښتل:
خوری! داځه وشول ووایه زما په وروړ څه وشول؟
کنول ترڅه څنډه بدهو ته حیران حیران کتل بیا یی په رګونو یوه غیر معمولی لړزه را غله اودبرښنا په‌څیر ګړندی راپورته‌شوه داوبو غاړی ته ور کوزه شوه بدهو هم ورپسی ؤ دی وویل:
هغه‌درومی ! خوزه یی نه پرېږدم‌زه دسکدیو بدل اخلم، هغه‌بیا په منډه را غله او سرته‌راوختله بدهو په‌څیراوبو ته‌وکتل هلته یی له څنډی لږ لری خوځیدونکی شی ولیدل ،زړه یی ګواهی ورکړه چی رامو دی.
لږ څنډ وروسته کنول بیرته‌را غله اوپه لاس کی یی دسکدیو توره وه چی له‌نن نه‌خو کاله وړاندی ده ته‌رام داس ورکړی وه، کنول چی داوبو

په تش لاس یې په‌اوبوکې ورتوپ کړل.
هغه بې پایه ځواک چې دکسات جذبې دکنول په زړه کې را پیدا کړی ؤ ناڅا په رخصت شو، چې بیرته پاس وختله د ما دهوا وشانتا کریږویې زړه ولړزاوه.
پر خپلو پښو یې له‌زغم نه‌زیات بوج احساس کړ، دی دخپل میړه دکسات لپاره له‌مرګ اوژونده بې پروا دتوپان څپو ته‌ځان ورغورځولی شوای‌خودخپل ژوند ډیوه یې چې ترستر ګو لاندی په چوپیدو لیدله چوپ پاتې کیدل ورته یولوی از مویښت ؤ. دا دخپل ژوند له یوه ډیرستر غموونکي حقیقت سره دمخ کیدو ته‌وړاندی ځانته په‌دروغو دتسلي لپاره څو ځلی په‌تلوکې ودریده ، سر ترپایه دبې کسې تصویر شوه آسمان ته‌یې مخ وړاوه اوپخپل کمزوري غږیې وویل:
ای‌ستر اوعادل ذاته! زما ژوند ده ته‌وروبخښه، په‌دی بې رحمه‌نړۍ کې زما بچیان ترما زیات ده ته اړتیا لري.
له‌دی الفاظو سره دکنول له‌ستر ګوداوښکو چینې راوخوټیدی. ځلیدونکې سپوږمې اوستوري یې له‌ستر ګو ورک شول. ورو ورو دسکدیو په لوری ورغله، ما دهوا وشانتا په‌ژړاورغلل اوددی ترپښو یې لاسونه‌را وخرخول ، موږولی یې یوځل بیا په مړو رګونو کې دژوند ساه پوکړه.
په‌مینه‌یې اولادونه یوی خوا ته کړل سکدیو ته نژدی کیناستله‌او دهغه سر یې په‌غیږ کې ونیو.

دهغه له‌سرڅخه وینې ولې بهیږي؟!

-بچیه! ته‌په‌منډه په کټوی کې اوبه‌راوړه!

مادهو شانتا ته‌وکتل او ویې ویل:

شانتا ته هم راسره راځه!

مادهواوشانتا اوبه‌راوړې، کنول ډیرپه‌زحمت د سکدیو په‌غاښونو کې ګوتې ورکړې اوخوله یې پرې‌وازه‌کړه، مادهو یې داوبو کټو پرخوله ورکیښوده، د څو غوړپه اوبو له‌تیرولو نه‌وروسته سکدیو سترګې وغړولې اویو پربل پسې یې مادهو، شانتا اوکنول ته‌وکتل ویې پوښتل: بدهو چیرته دی؟

کنول احساس کړه چې دستراو عدل خوښوونکي څواک په‌مخکې یې دعابې اغیزې نه‌ده په‌تسلي یې ورته وویل:

ستا سرمعمولي زخمي دی، بدهو به‌اوس راشي، همدا اوس ستا په دښمن پسې ورغی، سکدیو بیله‌دې چې څه ووایي سترګې یې پټې کړې.

کنول مادرته‌وویل: بچیه! لږدې دپلار سرته‌تکیه‌ورکړه، زه به‌پټې پرې وتړم، مادهو په‌دواړو لاسو دسکدیو سرتکیه کړ او کنول دهغه دپګړې یوه برخه راغوڅه کړه اوپرسریې پټې وروتړله، بیا یې سرپه غیږکې کیښود او کیناستله، سکدیو بیا سترګې وغړولې اوویې ویل:

کنول! ښایي بدهو ناوخته شي، هغه‌ته‌ووایه چې زه مې خپل اولادونه

تاته هغه غرونه ښکاری!... هغه غرونه!

بیا دسکدیو په سترګو کی اوښکی را غلی.

کنول وویل:

ته داسی خبری مه کوه، ته به روغ شی، له موږ سره به یو ځای ولاړ شی.

سکدیو څه ځواب ورنکړ مادهواوشانتا ته یی وکتل اودواړه لاسونه یی وغځول دهغوی سرونه یی پر خپل ټټر پوری کلک کړل بیا یی سترګی پټی کړی په کمزوری اوبی سیکه غږیی وویل:

ای ستراوعادل ذاته! ته ددوی ساتندوی شی.

ستا څخه پرته په دنیا کی ددوی هیڅوک هم نشته.... هیڅوک یی نشته. دسکدیو شونډی هماغسی رپیدلی، خو دکمزوری په سبب یی غږنه اوریدل کیده.

دسهار دنخښو له رابریدونه وړاندی سکدیو څوځلی سترګی وغړولی او څو بی معنی خبری یی ترخولی ووتی.

وروسته بیا په وار وار بی هوښی پری را تلله، او کنول به دما دهو په مرسته هرځل اوبه ورڅښلی اود را په خودکولو هڅه یی کوله.

**(۲)**

بدهو په شپنو کی غوره لامبوزن بلل کیده، هغه څو کاله پخوا له یوه شپانه څخه دبرسات په موسم کی پرسیند دپوری وتلو په شرط کی دوی وزی ګټلی وی، رامو باوری ؤ چی هغه به دسکدیو مرګ په چوپتیا ونه زغملای شی.

پراته وو ـــــــ

چې ددواړو ترمنځ پسونه او وزې پندې وي.

رامو ته دا اسانه نښکاره نه شوه چې پر یوه حمله وکړي او بیا سمدستي بل ته ځان ورسوي، ده پریکړه وکړه چې د یوه په تېپې کېدو که بل راوینښ نه شو نو دواړه به وژني ، که نه په یوه به مرګوني ګوزار کوي او د تیښتې لاره به نیسي، هغه داهم احساس کړه چې له سکدیو څخه وروسته به بدهو دومره خطرناک نه وي څومره چې دبدهو نه وروسته سکدیو کیدای شي . بدهو ناپوه دي ، خو سکدیو دمقابلې وړدی دبدهو له کسات نه د ځان ژغورلو امکان شته خو دسکدیو دکسات له تصور نه دده زړه په لړزه شو.

دسکدیو پرسر دتبر ګوزار کنول راوینښه کړه او دهغې ویروونکې کریږې درامو حواس اوفکر له کاره وایستل .

ده دوارخطایي په حالت کې تبر بیا راپورته کړ خو په هغه خلکو کې دښځې وژل یو داسې کارؤ چې درامو غوندې انسان ضمیر هم ونه زغملای شوای، کنول دخپل تپې میړه پر سینه سرورکیښود اوبې سده شوه اورامو تبروغورځاوه اوبو ته یې ورټوپ کړل.

هغه ترلږځنده په خپل ټول توان لامبو ووهله، له غونډې نه نژدې پنځوس ګزه لرې یې چې شاته را وکتل څوک یې ورپسې ترسترګو نه شول، ډاډه شو او آرام یې لامبو وهله، کله چې بدهو په اوبو کې ورټوپ ګړل نو رامو ښه لرې تللی ؤ.

شو، دده باورۇ چې که په ټول توان لامبو ووهي نورامو به ډير ژر را لاندې کړي، خو هغه پردې هم ويريده چې که رامو دې وليده نو سيده ديوې غونډې پرڅاى به چيرته شاوخوا په کومه بله وړوکې غونډۍ کې پټ شي.

چې هلته را غلى پناه راوړونکى به يې ملاتړ وکړي ځکه خوده له خپلې خولې پرته نور ټول بدن په اوبو کې پټ ساته اورا مو ته يې ددې شک ځاى نه پريښود چې څوک ورپسې دى.

له وړوکيو وړوکيو غونډيو نه چې تير شول بدهو وپوهيده چې رامو نور له لويې غونډۍ پرته بل لور ته مخه نشي کولى نو غږ يې پرې وکړ:

بدماشه ودريږه! بيا يې په خپل ټول توان اوبه څيرى کړې اودرامو په لور ورغ

را ...ير چالاکه ؤ، خو چې نه لرې کيدونکى بلايې مخې ته وليده ديوې ګيدړې دمکر اوهوښيارۍ پرځاى يې ديوه څيروونکى ځناور دپريکړې له ځواک څخه کار اخيستل غوره وبلل، ددېو تا غونډې چې دده وروستى دپناه ځاى ؤ تراوسه ډير لرې ؤ، که هغه لوړه را نژدې واى نودبدهو غونډې ژر ورسره په وړاندې به يې د خپلې سربازې دازمويني پرځاى تيښته ډيره هوښيارې بلله، خواوس له مقابلې پرته بله لاره نه وه، را موغوښتل دخپل لوړ قد نه ګټه اوچته کړي اوپه نسبتاً لږ ژورو اوبو کې يې دپښو ټينګولو اراده وکړه خو دبدهوګرنديتوب چې هغه ته

ته يې وکتل ، بدهو چې ورلنډ شو ودريد ساه نيولې يې وويل:

را مو ته‌نور نشې تلای.

را مو زروپوهيده چې دبدهو ساه سوځيدلې ده اوغواړي چې دمه جوړه اوبيا حمله وکړي ځکه ده داموقع ورنکړه اوپه‌دواړو لاسونو يې اوبه څيرې کړې وړاندې ورغی اوهڅه يې وکړه چې بدهو ترستونې ونيسي اوساه يې وربنده کړي.

خوبدهو ناڅاپه غوټه ووهله ،را مو اندېښمن شو لاپې داوبو څپو ته کتل چې ترشايې دبدهو سرله‌اوبو راووت ، له‌دې‌سره جوخت يې را مو دسرترويښتانو ونيو اوبيا دواړه په اوبو کې ډوب شول.

(۳)

شانتا بدهو وليد چې پر لوړه ورختلو ويې ويل:

مور جانې ! کاکا را غی.

سکديو دبدهو دنامه په‌اوريدو سترګې وغړولې. بدهو په‌منډه نژدې ورغی اونږدې ورته کيناستلو ويې ويل:

وروره ! وروره !!

سکديو بيله‌دې چې څه ووايي پر هغه يې سترګې ښخې کړې.

بدهو ته چې ترنن پورې سکديو درعب ،جلال او خپلواکې يوه مجسمه ښکاريده دهغه دغمجنو کتو تاب يې را نه‌وړ ، په‌سترګو کې يې اوښکې راوخوټيدې اوپه‌ژړه غونې غږيې ووېل:

وروره ! چورت مه‌وهه ډير زر به‌روغ رمټ شې.

دسکديو پرشونډو يوه دردناکه موسکا را وغوړيده او له بدهو ځخه يې نظر آسمان لوري ته کړ، ستوري ورو ورو دسهار په رڼا کې ورکيدل، دسپوږمۍ رڼا هم ورو ورو پيکه کيدله، دسکديو په بې روحه رګونو کې ناځا په لړزه پيدا شوه اولاسونه اوپښې يې وخوځيدل په سترګو کې يې ويرونکي رڼا وځليده، په ناکراري يې ساه واخيسته، مادهو،شانتا، کنول اوبدهو ته يې وکتل بيا يې دری ځلې کنول ته غږ وکړ اوغږ يې خپ شو، له سترګو داوښکو څيني را خوټيدې او له يوې اوږدې ساه سره دسکديو دژوند ډيوه دتل لپاره مړه شوه، کنول دشانتا مادهو اوبدهو دموجوديت له احساسولو پرته دليونيو په څير د هغه سترګې شونډې او تندی ښکلول.

# دوهمه برخه

دهغه په مخ کی د آزادی او خوښی هغه دنیا وه، چی په اوبو کی یی څپی راپورته کیدی، ګلان غوړیدل ونو د شمال په څپو کی تالونه خوړل... هلته چی ژوند له خپلو ټولو رنګینیو او ښکلاوو سره موجود ؤ.

... هغه دبی وسی په حالت کی آسمان ته وکتل او ویی ویل:

خدایه! تا هغه ټیټ ذاتی ولی پیدا کړ؟

او چی هغه دی ټیټ ذاتی پیدا کړی ؤ نو زه دی ولی په لوړ ذاتو کی پیدا کړم؟



# خپل وطن

ځو ورځې له یوې او بلې خوا سرګردانۍ وروسته کنول د بیاس سیند ولید، پنځه ورځې د سیند پر غاړه له مزله وروسته یې پر بله غاړه د خپل پلرنی وطن هغه سمسوری غونډۍ لیدلې چې تر اوږدې مودې پورې یې د تهذیب او ناپوهۍ تر منځ د بیلتون کرښې حیثیت درلود. چې د هغو په سبب ډیر کلونه د آزادو قبایلو څپرې د برهمنې ټولنې د کسات له اور څخه خوندي پاتې وې.

له راوی څخه تر بیاس پورې کنول په لاره کې ډیر کلي او ښارونه لیدلي وو. هغه ښارونه چې پر لوړو ماڼیو یې د ټولنې د بچیانو د عظمت بیرغونه رپیدل، او هغه کلي چې د ټیټ ذاتو په کمترۍ او ذلت یې اعتراف کاوه.

په ښارونو کې داوسیدونکیو انسانانو په باب کنول ډیر څه اوریدلي وو، بدهو څه له کنول او سکدیو سره په یو ځای اوسیدو او څه د رامو د کیسو له اوریدو څخه پردې پوره عقیده پیدا کړې وه چې د انسانیت ډیرې بد مرغې په دغو لوړو ماڼیو کې پالل کیږي. ځکه خو به یې چې کوم ښار ولید نو له

وه، یو ماښام دوی یوه کلي ته ورسیدل. بدهو له خرونه بارونه لرې کړل او ماشومان یې کنول ته پریښودل، پخپله داور راوړو لپاره کلي ته ولاړ. په کلي کې دده درګو دڅېرو پر ځای ښکلي کورونه ولیدل.

ناڅاپه یې دیوه کور له منځه چې دروازه یې خلاصه وه دناقوس او زنګونو غږونه واوریدل.

بدهو داندیښنې په حالت کې دننه ور وکتل. دډیوې په رڼا کې یې دیوی توری دبری بوت ولید، بدهو بیرته پر شا راوتښتید چې کنول ته را لنډ شو، ساه نیولی یې وویل:

زه هم حیران وم چې دلته داسې کورونه له کومه شول.

څه خوری چې دلته تم کیدل ډیر خطرناک دي، که چا ولیدو نو مصیبت به جوړ شي.

هغه په بیړه سامان بیرته پر خرو بار کړ او له کلي نه یو میل لرې یې دمه وکړه. تر دې وروسته به بدهو کوم کلي ته له ننوتلو نه وړاندې لومړی دا لیدل چې هلته لا د درګو څېرې دي او که نه دختو کورونه.

تېښ ذاتو بدهو او کنول مساپر ګڼل او په ډیر اخلاص به ورسره مخ کیدل. داور پر ځای به یې دوی ته دپخو خوړو په ورکولو ټینګار کاوه. دوی به یې دې ته مجبورول چې کورونو ته یې ورشي او شپې ورسره تیرې کړي.

بدهو ددوی دا ټول عادتونه خوښول، خو دشپې لخوا به یې چې له هغوی نه ددیوی او دیوتا په باب حیرانوونکې کیسې اوریدلې نو ویره ویریده او ترې جګ به شو.

ده دا پریکړه کړې وه چې بیا به د کوم تیټ ذاتي کره هم شپه نه کوي.

کله کله به هغه په تلو تلو کې اندیښمن ودرید او کنول ته به یې وویل:
زه ویریږم چې هغو خلکو ته هم د دیو تا گانو ناروغي نه وي رارسیدلې.

دبدهو لخوا کله کله د دغسې اندیښنې ښکارولو به کنول هم پریشانه کړه او په خپل زړه کې به پردې پوښتنو مجبوره شوه چې زه چیرته ځم؟ هلته به زما لپاره څه شي وي؟

خو لږ وروسته به بې پروایي پرې غلبه وکړه او بدهو به داسې احساسوله چې کنول د نیم بیدارۍ نه وروسته په لټ واوښته او په درانه خوب ویده شوه.

که به بدهو په وار وار کومه خبره تکراروله نو دی به حیرانې سترگې ور واړولې چې بیا به یې لږ او ډیره پاتې ځلا داوښکو تر پردو لاندې پټه شوه.

پر کنول داسې حالت غلبه کړې وه چې پر یوه انسان د بې وسۍ او مایوسۍ د بې ساري څپې له راتلو وروسته راځي. چې له یوه ژوندي انسان څخه بالاخره د ډبرې بوت جوړ کړي.

دی ته پرله پسې خپگان یو سکون او آرامي وربخښلې وه. ددې په زړه کې چې دغم په وروستې تل کې یې غوټې وهلې نور د ژوند په باب د فکر هیڅ پاتې نه وو.

بدهو به په وار وار هڅه کوله چې دا پر خره سپره شي.

خو هغې به پر پلې مزله تېنگار کاوه. د خپل هدف او منزل په لور به یې کله گامونه چټک او کله سست شول خو دا توان یې نه درلود چې ودریږي.

دسیند گومان کوي او هغه لوري ته منډې وروهي. لوټ شوي سوداګر په هر تیاره غار کې دخپلو جواهرو خیال کوي.

کنول ته ماضي خوب ښکاریده او اوس یې تعبیرونه ورته پیدا کول. کله کله به یې دا په خیال کې وروګرځیدل چې سکدیو مړ شوی نه دی. دی لکه چې دا هر څه په خوب کې لیدلي وي. خو چې ما دهو، شانتا او بدهو به یې ورسره یو ځای ولیدل په وارخطایي به یې له بدهو نه پوښتنه وکړه:

وروره! هغه رښتیا مړ شوی دی؟

بدهو به یوه شیبه مخ راوګرځاوه او دمایوسي او خپګان تیاري مجسمې ته به یې وکتل او درپیدونکیو شونډو نه راوتونکې غږ به یې را قابو کاوه، ویل به یې:

کنول خورې! اوس موږ له صبر پرته نور څه کولای شو؟

دکنول په څیر بدهو ته هم دسکدیو مرګ د ژوند مفهوم بدل کړی ؤ. لمر هر سهار په خپل پخواني شان او شوکت راختو. ستوري هر ماښام راښکاره کیدل. سپوږمۍ هره شیبه خپله بڼه بدلوله، ونې همغسې ولاړې وې. په فضا کې دپخوا په څیر مارغان په الوتلو وو. دبیاس څپو له راوې سره هیڅ توپیر نه درلود.

خو بدهو داسې ګڼله چې په دې کایناتو کې یوه داسې خلا پیدا شوې ده چې بیا به ډکه نشي.

دژوندون دنغمې هغه تار چې په هر خوځښت او ترنګ کې یې دبدهو

بدهو ته خپله ساه بنده ښکاریدله. د ډیر درانه غم له زوره یی غوښتل چی ښی کریغی و کړی او دخپل زړه بوج سپک کړی.

خو هغه توپان به چی له زړه نه د درد ناکو چیغو په بڼه راپورته شو تر شونډو پوری به یی چی رارسیده په سویو اسویلیو او آهونو به بدل شو.

کله کله دکنول او ماشومانو خیال دی پر شونډو چوپولو مجبور کړ او د اور هغو لمبی چی له زړه به یی راپورته شوی وی په اوبو به بدلی شوی او د ستر گو له لاری به بهیدلی. دآسمان له ستوریو پرته چی په وار وار یی دبدهو ډکی ستر گی لیدلی وی د خاورو دهغو ذرو نه پرته چی په وار وار یی داوښکو غمی ور څخولی وو بل چاته دا معلومه نه وه چی دده په وړوکی دنیاگی کی څه ډول توپانونه را الوتلی دی.

دکنول غوږونه دده له اسویلیو سره او ستر گی یی دده د اوښکو له لیدو سره نا آشنا وی. دهغی په گومان بدهو یو نارینه ؤ ، یو داسی میړه چی دژوند دهر توپان مقابله یی کولی شوای.

یوازی یوه شپه کله چی دوی د سیند پر غاړه ویده وو او کنول دپخوا په څیر پرته وه او داسمان ستوریو ته یی کتل دی له بدهو نه چی هلته نژدی په ریگونو کی پرمخی پروت ؤ ، واوریدل:

وروره! ته چیرته یی؟ او بیا یی تر ډیره دهغه سلگی اوریدلی.

کنول دلومړی ځل لپاره دا احساس کړه چی دا داسویلیو او اوښکو په نړی کی یوازی نه ده ورته یی ویل:

–ویده کیدل اوس زما په وس کی نه دی.

بدهو لږ را سنبال شو ، ویی ویل:

کب ... کیو ویل چی ستاسو له کلی نه اوس ښار جوړ شوی دی او هلته دپاچا دسرتیریو واکمنی ده. موږ ته به دښار دننه اجازه رانکړای شي.

– وروره! موږ به له ښاره بهر چیر ته څپره جوړه کړو.

– مگر که هلته ځو او بیا له ښاره بهر څپری جوړوونو بیا ولی دلته له دی کب نیوونکیو سره پاتی نشو ؟

دغه خلک که د دیوتا گانو په باب دومره خبری ونکړی نو بد خلک نه دی.

– وروره! دا ستا د ورور وروستی هیله وه.

– مگر ده ته دا معلومه نه وه چی د دیوتا گانو نمانځونکیو هلته پښی تینگی کړی دی. خوری زما سره دځان نه بلکی ستا دماشومانو غم دی.

– وروره! داسی خبری مه کوه. آخر هلته خو زما دقوم نور خلک هم اوسیږی.

– خوری ستا خوښه. خو زه به دا نه خوښوم چی څوک دی ما دهو او شانتا ته ددیوتاگانو په باب خبری وکړی.

ځکه خو زه ستا دقوم له خلکو سره اوسیدل هم نه خوښوم.

زموږ جونگړه به له دوی ټولو نه بیله وی.

–وروره! زه پخپله له چا سره یو ځای اوسیدل نه غواړم.

بدلیدی.

تپوله شپه په شاوخوا کی په الوت ستوما نه اوراورکی په وښو کی غلی کیدل. په شاوخوا ونو کی دمرغانو نغمی پیل شوی.

دختیځو لوړو غرونو له شانه، دسری رڼا پلوشی داسمان په لور راپورته کیدلی او دشپی تور څادر دلویدیځ لوری ته ورټولیدو، لمر چی داور د سکروټی په څیر سور او تر خپل حجم لوی ښکاریدو ورو ورو دغره پر څوکه راپورته شو. چی دسرو وړانګو له امله یی دبیاس درنو اوبو څپی له وینو سره ګډی ښکارولی.

بیا دلمر ستر پرګه دویلی شوی اوسپنی په څیر سپینوالی زورور شو. حجم یی وړوکی غوندی شو او دونو اوږده سیوری سره راټول شول.

په شاوخوا بوټو او څانګو کی دغنی پر جالونو او پاڼو دپرخی رڼه څاڅکی درنګارنګ قیمتی غمیو په څیر ښکاریدل.

کنول دپخوا په څیر تر ټولو ړومبی راویښ شوه او د وزو شیدی یی لوشلی. مادهو هم راجګ شوی ؤ او ناست ؤ. شانتا لا پرته وه او سترګی یی مښلی.

بدهو دشپی تر ډیره دویښ پاتی کیدو له امله اوس په درانه خوب ویده ؤ.

کنول شیدی ولوشلی راجګه شوه او مادهو ته یی وکتل، ویی ویل:

زویه جګ شه ولامبه، کاکا دی هم پاڅوه.

دکاکا په نامه شانتا رابیداره غوندی شوه جګه شوه او مادهو چی

یی وکړه.

کنول وویل:

-وروره! طبیعت خو دی جوړ دی؟

هغه ځواب ورکړ:

بدن می خوږیږی.

کنول وویل:

کب نیونکی تر اوسه پوری نه دی راغلی.

بدهو دسیند پر غاړه دریو وړوکیو کښتیو ته اشاره وکړه، ویی ویل:

هغوی هغه دی راځی.

مادهو جنوب لوری ته اشاره وکړه ویی ویل:

مورجانی! هلته وګوره هغه دی راغلل.

کنول، بدهو او شانتا ته وکتل، کوم پنځه سوه ګامه لری له یوه وړوکی کلی نه څو تنه کب نیوونکی دسیند په لور را روان وو.

بدهو وویل:

زه به په بیړه ولامبم، مادهو راځه!

بدهو او مادهو په منډه سیند ته ځانونه وغورځول. تر څو ځله غوټې وهلو او لږ لامبو وروسته دواړه له سینده راووتل، په دی څنډ کی کب نیوونکی کنول ته رانژدی شوی وو.

یو تن یی چی نورو مشرؤ دکنول مخی ته دبانس یوه وړوکی تو کری

پوري غاړي ته ورسوو.

کنول ورته وويل:

تاسو ډير ځانونه په زحمت کړل، بيايي د تو کري له سر نه پلني پاني پورته کړي، ويې ليدل چي لاندي څو ډوډۍ او يوه کټو ده چي له تازه کوچو ډکه ده.

د ډوډي له خوړلو وروسته دوی له خپلو میږو او وزو سره په کښتیو کي سپاره شول. دسیند اوبه که څه هم ګړندي وي خو په څپو کي يي د برسات د لومړيو ورځو مستي نه وه.

دسيند په منځ کي توندي يوي څپي کښتي څو ګامه لاندي ورسره يوړي خو مانوګانو زر بيرته را قابو کړي او دري واړه کښتي پوري غاړي ته ورسيدي.

کنول دمانوګانو مننه وکړه او هڅه يي وکړه چي يوه وزه ورکړي خو هغوی ديوي کونډي ښځه دمال اخستلو نه انکار وکړ.

دمانوګانو له ډلي څخه دوو تنو غوښتل تر وروستي منزل پوري له کنول دوی سره ملګرتيا وکړي، خو بدهو له هر ناپيژندوی سره داړيکو سره مخالفت کاوه. هغه وويل: تاسو اوس هم زموږ سره ډير زحمت وګاله اوس زموږ منزل ډير لري نه دی تر ماښامه به هلته ورسيږو.

يوه مانو تري وپوښتل:

تاسو به چيرته ولاړ شي؟

یوه بوډا مانو په حیرانۍ وویل:

هغه خو ډیره موده شوه چې ویجاړ شوی دی، اوس هلته دلوړذاتو ښار جوړ شویدی. ښایي دهغه ښار شاو خوا ته د ټیټ ذاتو کوم وړوکی کلی نوم په جوین پورروی.

ما اوریدلي دي چې دښار سردار ډیر ښه سړی دی او زموږ پر خلکو چې دښار په شاو خوا کې اوسیږي هیڅ ظلم نه کوي.

هغوی ته یوازې دښار د رمسالونو او څاگانو ته دتلو اجازه نه ورکوي. نور هر ډول آزادی لري.

په پیل کې پر هغو خلکو ډیر ظلمونه کیدل، دپاچا د پوځ مشر گنگارام او دهغه ورور جي رام ډیر ظالمان وو.

دگنگا رام دنامه اوریدو سره د کنول په تصور کې په وینو رنگینې کوڅې راوگرځیدې چې له مړیو ډکې وې. او هر لوري ته څپرې داوړ په لمبو کې راښکیل وې.

دې د سوځیدونکیو څپرو په منځ کې خپل پلار لیده چې په خاورو او وینو کې یې تر پکې وهلې. د کونډو او یتیمانو کریږې یې اوریدې.

دبرهمنې ټولنې دزامنو پرخلاف دسردار دلوړ په زړه کې د کسات چوپ خوږ لن بیا په لمبو شو. خو دهغو لمبو په مخ کې یې دسکدیو څیره ولیده چې داوړ لمبې او په ترپکو ټپې انسانان یې ورو ورو له نظره لرې شول.

دټپیانو او کونډو کریږې او فریادونه یې له غوږو ورک شول. دې یوازې

بدهو تر ډیره پوری له مانوګانو سره روغبړ کاوه. د بیرته ستنیدو په وخت کی هغوی له کنول سره دسمی خدای پامانی هیله وکړه ،خو بدهو په اشاره راایسار کړل.

مانوګان په خپلو خپلو کښتیو کی سپاره شول او ولاړل.

بدهو تر لږ ځنډه چوپ ولاړ ؤ او سیند ته یی کتل. شانتا او مادهو هم پر داسی مهال زده کړی وو چی باید چوپ وی. دوی حیران وو بدهو ته یی کتل.

بالاخره ورو ورو ورغلل او کنول ته ورنژدی شول، بدهو ورو په غمجنه لهجه وویل:

خوری، کنول خوری!

کنول سر راپورته کړ او بدهو ته یی وکتل. د سردار دلور په زړه کی دکسات لمبی دغم په اوښکو بدلی شوی وی.

بدهو وویل:

واوره کنول! مور هلته نه ځو.

کنول په عذر ته ورته نظر بدهو ته وکتل او ویی ویل:

-وروره! ! یوازی یو ځل می هلته بوزه. زه وعده کوم چی هلته به پر پاتی کیدو ټینګار ونه کړم. زه به له لری یوازی خپل ویجاړ کور یو ځل وګورم او بیرته به راځو.

وروره! دا امکان نه لری چی زموږ دقوم دنورو خلکو په څیر دښار شاو خوا ته چیرته موږ ته هم دیوی جونګړی آبادولو ځای پیدا شی ؟

ماشومانو راتلونکی څه ډول وی؟

– نه وروره اوس به موږ څوک وپیژني؟ په هغو خلکو کې یو سړی زموږ دکلي ؤ. هغی زما په باب هیڅ شک هم ونه کړ. اوس که ستا وروړ هم راشي ما به په دی وضعه کې ونه پیژني.

بدهو وویل:

ښه خوری! چې څنګه دی خوښه ده هغسې به کوو. جوبن پور به اوس څومره لری وی؟

له دی ځایه به نژدی دری میله لری وی.

بدهو وویل:

نو غرمه همدلته تیروو.

مادهو وویل:

راځه کاکا په سیند کې ولامبو.

بدهو وویل:

نه په دی ځنډه کې او به تیزی دی، خو مادهو د تولي خبری له اوریدو نه مخکې په یوه ټوپ ځان سیند ته وراچاوه.

بدهو وویل:

ناپوهه له ځنډې نه وراندی مه ځه! دایی وویل او پخپله یی هم سیند ته ځان وغورځاوه.

مادهو وخندل او غوټه یی ووهله.

**(٤)**

دلمر لویدو نه لږ وړاندی دغه کاروان په یوه غونډۍ ...

بدهوا و مادهو په دوی تولو پسی رمه لاری ته برابروله.د دزړه د درزا سره کنول کله ورو اوکله کړندی گامونه اخیستل ، ددی دژوند پراسمان له تورو تیارو پرته نور څه نه وو ، مایوسی یی دیوه نه انکار کیدونکی حقیقت په بڼه ستر گوته ولاړه وه، دهیلو ، آرزوگانو اواحساساتو نړی یی ویجاړه شوی وه ، دامید ټول باغونه یی دمایوسی دویرونکیو دښتو په وسعتونو کی ورک کړی وو. بیا هم یوه وهم ، یوه جنون چی دیوه انسان په زړه کی پر ماته دعقل اوشعور داعتراف نه وروسته را پیدا کیږی دا له هر څل لویدو سره جگیدو اوپر مخ تلو ته هڅوله اوتکیه یی ورکوله، دوهمونو په ښکلیو پردوکی حقیقت دخپلی بدرنگی ښیری دپټیو لوهڅه کوله. دی دخپل چاپیریال په تیاروکی دعقل اوشعور دمشال تکیه پریښوده دنامعلومو امیدونو دیوی یی بلولی، دیوه دوکه خوړلی ماشوم په څیر به یی تولونړی دروغجنه وگڼله ،کله کله به تیری تولی پیښی هسی یو یووهم ورته ښکاریده ،اودی به خپل زړه پردی منلو مجبوراوه چی ددی دپلار اونیکه کلی ویجاړ شوی نه دی بلکی همغسی آباد دی ،سکدیو هم ژوندی دی اوله کلی نه بهر دږند پرغاړه ددی دورتلو انتظار کوی.

اوچی داوینی په منډه بهراشی او په غیږ کی به یی ټینگه کړی اوتری وبه پوښتی:

کنول ته چیرته وی؟ دابه ورته وایی:

سکدیوه تازه دیره وژړولم.

ددی دزړه له درزا سره به گامونه هم سم گړندی شول. خودنامعلومو

پاتي حواسو به دحقیقت لەشومې شیري شخه دوهمونو بڼکلي پردەلري کړه اولەدې سره جوخت بەیې پښې بیرته سستي اودزړه درزا کمه شوه.

خو په زړه کې بەیې بیا یو نوی غبرګون راپور تەشو، اود وهم اوشعور ګډواحساساتو به یوه نوي دنیا جوړه کړه، دې به خپل زړه تەویل چې سکدیو مړشویدې خوایا دا امکان نەلري چې هغەبیا ژوندي شوی وي، سکدیو پەکومەبله لاره جوبن پورته رارسیدلي وي او ددې لەپلار سره یوځای دسیند پرغاړه ولاړ وي، ددوی دورتلو انتظار کوي! ددې دقوم وژل شوی هم بیرته راژوندی شوی وي او له خپل کلي شخه یې دبرهمني کلتور حمله راوړونکي بیرتەشړلي وي او د لوړ ذاتو ماڼي بیرته دټیټ ذاتو په څپرو اوجونګړو بدلي شوي وي؟!

دلمردوړانګو جال دلویدیځ لوري تە ورټولید و، پرافق دخړوورېځو یوه ټوټه ورو ورو پەسره رنګ‌بدلیده ، ختیځ لوري تەدکانګړي دلوړو غرونو څوکې داسې ځلیدې لکه دسپینو زرو تاجونەیې چې پرسروي چې د شفق لەسرخې سره هغه هم دیاقوتو دغرونو په څیر ښکاریدل.

کنول دغونډۍ پرسر ولاړەوه اودخپل کور بدله شوي نقشه یې لیدله، شاوخوا لوړي اوټیټې غونډۍ او پکې ولاړي‌ونې پەهمغه پخواني حالت‌وې، سیند هم دپخوا پەشان بهیده، لاندې دلوی ډنډ په ولاړو اوړنو اوبو کې دونو سیوري همغه دپخوا پەشان‌ښکاریدل خوهغه وړوکی کلی چې کنول تەیې تصور تردې هرڅه زړه وړونکې ؤ اوس په یوه ښکلي ښار بدل شوی ؤ.

چې ددې دپلار اونیکه د جونګړې ایرې، یې ترتاداوونو لاندې ښخې وې ، دښار شاوخوا ته وړو وړو ځپرو پردې ګواهي ورکوله چې دبرهمني تولنې لهباغیانو څخه ځینې امن‌خوښې غلامان شوي دي.

دمایوسی اوبی وسی دسمندر په تل کې لهغوټې خوړلو نه وروسته دکنول له خپل زړه څخه لومړي پوښتنه داوه چې :

زه دلته دڅه لپاره را غلم؟ دې بدهو، مادهو اوشانتا ته وکتل اوسترګې یې راټکې شوې، بیا یې خپل مخ په‌شلیدلې ټیکري کې پټ کړ او په زوره زوره یې وژړل، شانتا وویریده د مور غیږې ته‌یې ځان واچاوه‌اوپه سلګیو شوه ، مادهو په‌دغسې شیبو کې دبدهو دکړو وړو په‌تقلید عادت شوی ؤ خوداځل هغه هم ترډیره ځنډه له‌زغم نه کاروانه خسټلای شو او اوښکې یې وبهولې.

کنول چې خپل بچیان په‌ژړاولیدل دمورولۍ احساس یې پرهرڅه غلبه وکړه، اوښکې یې پاکې کړې اویو پر بل پسې یې مادهوا وشانتا په‌غیږ کې ونیول بیا یې بدهو ته‌وکتل وې ویل:

وروره درځی!

بدهوو ویل:

اوس چیرته‌ولاړ شو خوری؟

راځه وروره! ددې ښار نه‌بهر به چیرته مړو هم واړووو.

اوس شپه را غله ، که‌تانه‌غوښتل چې دلته پاتې شو سهار به‌بیا بل لوری ته‌روان شو.

دغونډی نه‌له‌ښکته کیدو وروسته دتیټ ذاتو دیوه وړوکی کلی سپیانو ددی وړوکی کاروان ډیر تود هرکلی وکړ، څو تنه‌نارینه اوښځی چی د سپیانو غپیدل یی‌واوریدل له‌کورونو څخه راووتل اوله‌بدهو اوکنول نه‌یی ډول ډول پوښتنی کولی:

له‌کوم‌لوری راغلی؟ څوک یاست؟ چیرته ځی؟

دشپی دلته‌ولی نه پاتی کیږی؟

کنول چوپه وه‌بدهو هم‌چاته‌څه‌ځواب ورنکړ، اوسپیان یی‌په یوه اوبله وشړل له‌کلی نه‌ووتل او تیر شول دکنول په‌غوښتنه یی دډنډ پرغاړه دځو گنو ونو ترڅنگ خرډ ودرول اوبارونه یی تری واړول.

نیمه‌شپه وه، بدهو، مادهوا وشانتا په‌پرخه لانده‌چمن شلیدلی اوزړی بستری غوړولی وی اوپه درانه خوب ویده‌وو، کنول څوځلی پر یوبل اړخ واوښته اوهڅه‌یی وکړه چی‌ویده شی داسمان ستوریو ته‌یی کتل. دختیځ دیوی لوړی څوکی‌له شانه‌سپوږمی راښکاره‌شوه اودستوریو ځلاپیکه‌شوه، کنول ته‌ناڅاپه څه وریاد شول او جگه شوه دلوی ډنډ په لوری ورغله.

په‌ډنډ کی ځای ځای دنیلو فرگلان غوړیدلی وو اواورکی په‌فضا کی په نڅا وو، کنول په خپل ماشومتوب کی‌په زرگونو ځله دغه ننداری لیدلی وی خواوس یی دهغه زړه‌را ښکون هیڅ درک نه‌ؤ، په ماشومتوب کی به‌دی دغه‌ټول شیان دخپل ژوند یوه‌برخه گڼل، دی به پر اوراورکیو پسی منډی وهلو اودنیلو فرگلانو راشکولو او پاڼی پاڼی

خوښيدله‌به ، بيا سکديو را غی ، هغه دسکديو ځمکی اواسمان ته‌يو نوی رنگ ورکړ ، او دی ته‌دنړی په‌هر ښايسته شی کی دسکديو دکومی ښيگنی ځرک ښکاريده دی ته په غرونو کی دسکديو دعظمت ،په‌سپوږمی کی دهغه زړه راښکون ، په‌لمر کی دهغه جلال اودبدبه ،په ستوريو کی دهغه موسکا اودنيلوفر په گلانو کی دهغه سپيځلتيا اوپاکی ترستر گو کيده ،خودسکديو له‌مرگه وروسته دطبيعت ښکلی ځيره ددی په‌نظر مسخ شوی‌وه‌او دژوند خوږه نغمه‌ترخه‌شوی وه.

کنول د ډنډ پرغاړه غاړه روانه وه، د يوی لوړی په‌لمن کی يی دآمو نو ځو ونی وليدی دا ودريده اوبيا په منډه‌ورغله د يوی‌ونی نه‌يی غيږ راوگرځوله دادهغو آمونو نيالگی وو چی سکديو کرلی وو.

کنول په‌درد ناکه‌لهجه‌وويل:

سکديوه! زموږ دمينی نيالگی اوس په‌لويو ونوبدل شوی‌دی ته چيرته يی ؟ چوپو کايناتو دکنول ددی پوښتنی ځواب‌ورنکړ اودا دچورتونو په نړی کی ډوبه شوه، سکديو يی په‌مخ کی ولاړ ؤاو دی پر چپرکټ پرتو آمونو ډيری ته‌اشاره وکړه اوويل يی:

دخوراکی شيانو په خوړلو څه گناه ده؟ ته ښا يی تربل سبا پوری له سينده پوری نه‌وتلای‌شی.... ښا يی څو ورځی نور دلته‌پاتی شی، دومره ورځی له‌څه خوړلو اوڅښلو پرته....

اوبيا چی کله‌دی پرخپل لاس دکينو ليو نيالگيو نه‌واښه اوبوټی خيشاوه کول هغه‌له غونډی نه راکوز شو دی ته ودريد، کنول په خپل درزيدونکی زړه لاسونه کيښودل ويل يی: دا آمونه په هغه ورځ

ناڅا په دآم لهونی نهدبوم ویروونکی غږ اوچت شو اودکنول دخیالونو ښکلی دنیا گی ورسره ور انه ورانهشوه، ددی بچیان ورياد شول او په گړندیو گامونو بیرتهراوگرځیده.

سهار وختی چی کله بدهو راجگ شو اودلنبلو اراده یی کوله دکنول غږیی واورید هغهدخپلو بچیانو ترڅنگ په درانه خوب ویده وه اوویل یی:

زه به همدلته پاتی شم دازما وطن دی ، دامی دبچیانو وطن دی ،زه به همدلته اوسم، همدلته اوسم .

بدهوترلږځنډه لاس پرتندی اینبی ؤ اوچورتونو یووړ ،بالاخره وغځید اوجگ شو ما دهویی وخوځاوه، هغهرا وینښ شو سترگی یی ومښلی.

بدهو ورتهوویل:

راڅه چی ولامبو!

دلامبلوپلنی دمادهوتولهسستی لری کړه اوله خوښی نه پهتو پونوشواو په منډو منډو دبدهو په مخکی روان شو.

پههمدی ورځ د گاونډیانو غلامانو پهمرسته بدهو یوه ځپره جوړوله ،دهغو تیټ ذاتو نوکرانو له خولی ورتهمعلومهشوه چی دښنا راوسیدونکی نیم میل دخپل مذهب دساتنی حریم کافی گڼی دڼدپه بلهغاړه دښنا رلوی درمسالؤ ، خودښنا په څیر دغه درمسال هم له دی ځایه په ښه فاصله کی پروت ؤ. بدهو ته دهغو نوکرانو له خولی داهم معلومه شوه چی ددی ښار سردار دپا چا دنورو سردارانو سره ډیر توپیر

ورځې په‌اونیواواونی په‌میاشتو بدلیدل، دوخت پتې که څه هم دکنول دنه‌لري کیدونکو تپونو دوانشوای کولی، بیا یې هم د درد زیاتوالی ورو ورو لږ شو. دمړه شوی میړه مینه یې دهغه دژوندیو تخنبو په‌لوری راگرځوله، دکوندتون مایوسی یې دمور ولی په هیلو بدلی شوی دېدهو ورځې په میړو او وزوپسی دسیوری په اوږدیدو اوراتولیدو تیریدی هغه‌به‌مابنام ستومانه‌را غی اودوډی به‌یې وخوړه ویده به‌شو.

اوکه‌به‌مادهو اوشانتا تینگار وکړ نو دشیشکو او دیوانوکومه کیسه به‌یې ورته‌وکړه، د شاوخوا کلیو له‌شپنو نه‌ده دلوړذاتو دتولنی اوکلتور ددیوتا گانو به باب ډیرڅه اوریدلی وو، خوده ته‌ددیو تا مهفوم دډبرو اویا ختېو دیوه ویروونکی بوت‌نه پرته‌بل څه نه‌ؤ ،دغرنی قوم دشپنو له‌یوه‌چا نه چی ده‌د دیوتا نوم‌اوریده داسی یی گنله چی کوم رامو دوی تیرا یستلی دی په‌لس میاشتو کی کومه‌دیادونی وړپیښه ونه‌شوه دبرسات‌لومړی میاشت‌مادهوا وشانتا لپاره له خوبنیو ډکه‌وه ، دوی به‌کری ورځې په‌ډنډکی لنبل او مابنام‌به‌په کومه‌لوړه وختل اودسیند نندارہ به‌یې کوله.

# ماشوم عبادت کوونکی

کرې شپه له‌اوربښت ورروستـه سهار دوریځو ورې ورې تورتې دیوه لوټ شوې کاروان په څیـر تیت اوپرک دلویدیځ په‌لور روانې وې. له لرې ددرمسال دزنګونو کړنګهار اوریدل کیده، دډبرونه جوړ شوې یوه کور په پراخ انګړ کې دآم تریوه ونه لاندې څو غوایان ولاړ وو، په‌برنډه کې یوه کم‌عمره نجلۍ چې نوې له‌خوبه راویښـه‌شوې وه غـځیدله، له بسترې راجګه‌شوه اوسترګې یې سره مښلې ویل یې:

مورجانې! مورجانې !!

- لورکې! شیدې لوشم.

نجلۍ انګړ ته‌را غله اوویې پوښتل:

مورجانې ! پلارجان مې ولاړ ؟

مور یې ځواب ورکړ.

لورې هغه‌به وختې درمسال ته‌رسیدلی وی.

نجلۍ په‌غوسه شوه ویې ویل:

راوخيژي موهنى دي ناشته وکړي بيا يې راواستوه، اوس ته لاس اومخ ومينځه شيدې وڅښه موهنى داوبوکوزه مخې ته کيښوده اوکيناستله چې دمخ مينځلو اراده يې کوله رندهيريې وليدچې په منډه د ننه ورغى اوپه سوځيدلى ساه يې وويل: راځه موهنى چې دډنډپه لورې ولاړ شو له هغه ځايه به نيلو فرګلان راوړو رام، سروپ، اندر او لچهې هم تللي دي.

دموهنى مور وويل: ګوره رندهيره! که ځې نو موهنى درمسال ته بوزه که نه نو داهمدلته په کور پريږده.

موهنى مخ ته داوبو لپې ورواچولې ويې ويل:

مورې! مور به د ډنډنه بيا درمسال ته ورشو.

ستا لپاره به نيلو فر ګلان هم راوړم.

مور يې په غوسه شوه ورته ويې ويل:

ګلان دې خاورې شه په اوبو کې ډوبه نشې.

– نه مورې! ګلان به رندهيرراوشکوي، زه به اوبو ته ورننژدې هم نشم.

– ښه نورندهيره زويه پردې پام کوه واخله لورې دغه شيدې وڅښه!

موهنى داوسپنې يوجام را واخيست او ور غله له مورسره ودريده مور يې جام ورډک کړ داخپ خپ رندهير ته ورغله ورويې ورته وويل:

واخله بيره کوه!

رندهيرسرورته وخوځاوه ويې ويل:

ورکړ موهنی بیا په منډه مورته ورغله او ورته یې ویل:

مورجانې! نن دوه جامه څښم ، مور یې رندهیر ته مخ وروا ړاوه ، هغه وخندل او دې په موسکا بل جام ورته ډک کړ ، موهنی شیدې وڅښلې او جام یې پر برنډه کېښود له رندهیر سره ولاړه مور یې له شانه ورپسې غږ کړ:

لورې ډیر ځنډ و نکړې.

- نه زر به راشو.

موهنی له دې ویرې چې مور یې بېرته ورونه غواړي د رندهیر نه مخکې مخکې یې منډې وهلې. درندهیر عمر لږ او ډیر لس کاله ؤ او موهنی دوه کاله تری کشره وه، دموهنی دمور نوم ساوتری ؤ رندهیر ددې ښار دسردار زوی ؤ او مور یې مړه شوې وه.

دډنډ پرغاړه ددوی ملګري دیوی نا آشنا نجلی سره ولاړ وو او یوه نا آشنا هلک ته یې کتل چې د ډنډ په ژورو اوبو کې یې غوټې وهلې.

لامبوزن هلک دوی ته په داسې نظر وکتل چې فرین پري وو ایې بیا یې وویل:

شا نتا! وګوره زه دلاندې له تل نه خاوره راباسم.

شانتا دهغو ماشومانو دپاکو اوسوتره جامو ترڅنګ لاندې را غلې وه اندیښمنه شوه دځنډې په لورې ورغله اوویې ویل:

راځه مادهو چې کورته ځو ، مور به انتظار کوي.

ویی ویل:

هغه بیچاره لکه چی ډوب شو را ویی باسه!

رندهیر به بیړه کورتی وایستله اوپه اوبو کی یی ورټوپ کړل هغه لاژورو اوبو ته نه ؤ رسیدلی چی مادهو ځنډی ته راورسید اوسریی له اوبو را ویوست،شانتا ته یی یو صدف راوغورځاوه ویی ویل:

واخله:

موهنی شانتا ته ور نژدی شو، ویی ویل:

واه واه صدف!

شانتا صدف هغی ته ونیول وی ویل:

واخله ته یی اخلی!

موهنی صدف دهغی له لاسه واخستل ویی پوښتل:

هغه ستا ورور دی؟

- هوکی!

لچهی مادهو ته وویل:

مور ته هم صدف راوباسه!

- ښه ده تاسو ته به یی هم راوباسم.

مادهو څو ځلی غوټی ووهلی اوهریوه ته یی یو یو صدف ورکړ، رندهیر هم څو ځلی د صدف دراایستلو هڅه وکړه خولاس ته یی څه ورنغلل مادهو و پوښتل: تاته یی هم را ویاسم؟

رندهیر ځواب ورکړ:

ګلان یې راوشکول، موهنی په اوبو کې دورګډېدېدو پرځای له څنډې نه دیوه ګل راشکولو هڅه وکړه اولاس یې ورو غځاوه خوپښې یې و ښوییدې اوغړم په اوبو کې وروغورځیده.

نورو ماشومانو په کړس کړس وخندل رندهیر ددې مرستې ته وروراندې شو، خو ددې له وررسیدو مخکې هغه راپورته شوه لې یې شونډې بوڅې کړې او بیا یې له نورو سره کړسنده خندا بدرګه کړه.

مادهو له ژورو اوبو څخه دنیلو فرخو دانې لوی لوی ګلونه راوشکول او چې له ډنډ نه راووت زړه نازړه یې موهنی ته ونیول.

موهنی بیله دې چې څه ووایي دده له لاسه یې ګلان واخستل، مادهو تری وپوښتل:

نور راوشکوم؟

موهنی ځواب ورکړ: نه دادیردي.

مادهو نورلوړه احساسوله، خو زړه یې نه غوښتل چې دغه ماشومان پریږدي اوکورته ستون شي هغه بیا په ډنډ کې ورټوپ کړل او رندهیرورغی ویې ویل:

زه غوټه وهم ته به مې راونیسې؟

– هوکې!

مادهو غوټه ووهله رندهیر دهغه دنیولو هڅه وکړه خو هغه ډیرلرې تری ولاړ، له هغه وروسته بیا رندهیر غوټه ووهله خو مادهو هغه راونیولو، مادهو اورندهیر تر ډیره څنډه په هم‌دې لوبې بوختې ... ...

خپلو خپلو کورونو ته‌ستانه‌شوی وو موهنی چی درندهیرله‌بی پروایی شخه ډیره ځوریده له‌شانتا سره یی دآشنا کیدو هڅه کوله.

هغه شانتا ته‌نژدی په‌چمن کی کیناستله او ویی پوښتل:

ستا هم لامبو زده ده؟

- هو کی اوستا څنګه؟

-زه له ژورو اوبو څخه‌ویریږم.

شانتا تری وپوښتل:

ته‌له‌ښاره را غلی یی؟

- هوکی ، ته دکومه ځایه؟

- مورږ هغلته‌دغه‌پرغاړه اوسیږو.

- ښار دی لیدلی دی؟

- نه. پدهوکاکا وایی چی دښار دیو تا انسانان خوری.

- لیونی هغه‌ستا ساتنه‌کوی.

- نوتادیو تالیدلی دی؟

- زه یی هره‌ورځ وینم ، ته غواړی ویی وینی؟

- چیرته؟

- په‌درمسال کی.

- په‌درمسال کی؟ زه‌هلته‌نه‌ځم

- ولی؟

- زه‌ویریږم

- نه‌ولی؟
- که‌دی هغه‌ونیسی اوودی خوری څه‌به‌کوی؟
- داتاته چاویلی چی دیو تا خلک خوری؟
- بډهو کاکا.
- هغه‌څوک دی؟
- زما کاکادی.
- هغه به‌کوم ځنگلی وی؟
- ځنگلی څه شی وی؟
- ځنگلی هغه‌وی چی ښاریی نه‌وی لیدلی.
-نو بیا مور تول ځنگلیان یو، په‌مور کی هیڅوا هم ښار نه‌دی لیدلی، دښار خلک دځنگل خلک وژنی؟
-نه‌ولی؟
شانتا غوښتل چی دښار په‌باب نوری پوښتنی هم وکړی خو مادهو او رندهیر له‌ډنډه‌را ووتل او ددوی پام هغوی ته‌ور واوښت.
مادهو له‌رندهیر نه‌وپوښتل:
سبا ته‌دلته‌راځی؟
رندهیر ځواب ورکړ:
هوکی راځم.
- ته‌شپیلی غږولی شی؟

یې له جیبه راوایستله شونډې یې پرې کیښودې او په موسکا یې رندهیر او موهنی ته وکتل.

موهنی وویل:

رندهیره راځه چې کورته ځو.

مادهو نه غوښتل چې دخپل کمال دښودلو موقع له لاسه ورکړي ، وروکې ګوتې یې پر شپیلۍ راوګرځیدې او په فضا کې زړه راښکونکې نغمه وکړنګیدله.

درندهیر او موهنی غوږونه دموسیقۍ له خوند څخه ناخبره نه وو. خو دشپیلۍ نغمه دوی ته ډیره په زړه پورې معلومه شوه. ښایي ددې لپاره چې دشپیلۍ غږونکی ددوی همزولی ؤ. دوی یو دبل داحساساتو او اغیزو داندازې معلومولو لپاره په وار وار یو بل ته کتل، درندهیر سترګو دحال په ژبه ویل چې ګوره تا کورته دتلو ضد کاوه ، او دموهنی کتو ځواب ورکاوه چې کاشکې تا هم داسې شپیلۍ غږولی شوای.

مادهو دغه نغمه پای ته ورسوله او پر فضا سمدستي چوپتیا او خپګان غلبه وکړه. رندهیر او موهنی په ډیره مینه هغه ته کتل.

شانتا دوني له څانګې څخه د مادهو کورتی راوړه ده.ته یې ورکړه او ویې ویل:

واخله! اوس دې کورتې واغونده چې کورته ځو.

رندهیر وویل:

مور.سبا ته بیا راځو ، تاسو راځې؟

رندهیر جامي واغوستې او له موهنې سره ملګرې شو ځو ګامه ولاړ خو بیرته راوګرځید او له مادهو نه یې پوښتنه وکړه:

تاسو چیرته ځې؟

-موږ دډنډ پر هغه بله غاړه او سیږو.

- زه به سبا ته شپیلي راوړم ته یې را زده کوې؟

- در زده به یې کړم.

- ستا نوم څه دی؟

-مادهو! او ستا څه؟

هغه ځواب ورکړ:

- رندهیر.

مادهو بیا له موهنې نه وپوښتل:

ستا نوم؟

- زما نوم موهنې دی.

-تا ته د ډینګ بچیان دروښیم؟

-هو کې چیرته دي؟

-ته خو هغه وژنې نه؟

- نه یې وژنم.

-ښه ده راځه زه یې دروښیم.

دشانتا دصبر کاسه ډکه شوې وه هغې وویل:

ما د ډینګ بچیان لیدلي دي وړې شوې یم، زه کورته ځم.

رندهیر وویل:

راځه موهنی هغې ته به بیا راشو!

-نه، زه به یې همدا اوس ووینم. تاچې لمبل زما خبره دې ته اورېده ، زه غواړم دډینګ بچیان وګورم او ته غواړې چې وتښتې.

- ښه نو راځه!

رندهیر او موهنی په مادهو پسې ور روان شول.

څو ګامه چې ولاړل مادهو په یوه ونه کې وخوت او له ځالې نه یې دوه وړوکي بچیان راکوز کړل او د موهنی او رندهیر په مخکې یې کېښودل.

موهنی وپوښتل:

دامښوکي ولې خلاصوی؟

مادهو ځواب ورکړ:

وږي سوي دي.

موهنی وویل:

نه ته دروغ وایې دا بګوان نوم یادوی.

- بګوان! دا څه شی دی؟

موهنی حیرانه شوه ځواب یې ورکړ:

او هو ته بګوان نه پېژنې؟

هغه ته پیدا کړی یې.

مادهو تري وپوښتل:

ته بګوان (خدای) جوړه کړی یې؟

-ته هم هغه جوړ کړی یی.

-هغه ګلان چا؟

- دا هم خدای پیدا کړی دی ، پلار جان می وایی چی ټول شیان خدای پیدا کړی دی.

مادهو اندیښمن شو پوښتنه یی وکړه:

هغه چیرته دی؟

- تاتر اوسه خدای نه دی لیدلی؟

مادهو سر وخوځاوه او ځواب یی ورکړ:

نه!

- هغه په درمسال کی دی، موږ یی هره ورځ وینو.

ته غواړی چی ویی وینی؟

- مګر بدهو کاکا خو ویل چی په درمسال کی دښار خلک ماشومان خوری.

- هغه تاهسی ډاروی، راځه رندهیره ده ته درمسال ورو ښیو.

- مګر ناوخته به شی.

- نه موږ به زر راوګرځو.

**(۲)**

مادهو زړه نازړه دویری او اندیښنی تر احساساتو لاندی له موهنی او رندهیر سره روان شو. بدهو ده او شانتا ته ددرمسال په باب په زرګونو ویروونکی کیسی اورولی وی. خو موهنی چی ده ته وویل هغه ته هسی

کله چې دې ډیر ورو کې ؤ په ونو کې له ختلو نه یې ویراوه او ویل یې، چې هلته شیشکې دی او لاندې به دې راوغورځوي. کله چې لږ رالوی شو دېنه لورې ته به یې له تلو نه راایساراوه او ورته ویل به یې چې هلته نهنګان وي خو اوس هغه په ژورو اوبو کې لامبو وهلی شي او نهنګ دده دخوړلو لپاره نه ورځي که په درمسال کې کوم دویرولو شي وای نو رندهیر او موهني یې ولی نه ډارول.

مادهو په خپل زړه کې دا ویل چې بدهو کاکا زه په ونو کې له ختلو نه ځکه را ایسار ولم چې تري را ونه لویږم. له اوبو نه یې ددې لپاره ویرولم چې پکې ډوب نشم، اوله درمسال نه مې بنایي ددې لپاره ویروي چې زه لاره هیره نه کړم او دښار نه چې هغه زه ډارولم امکان لري دښار په باب هم هغه ماته دروغ ویلي وي. که دښار خلکو رښتیا هم ماشومان خوړلی نو رندهیر او موهني او نور ماشومان به یې ولې پریښودل. کاکا دروغ وایي زه به نن هغه ته ووایم چې له درمسال نه راغلم او تا دښار په باب هم ماته دروغ ویلي وو.

دمادهو زړه له خوښیو نه په تړپونو ؤ، خو بیا یې په زړه کې یو خیال وروګرځید چې بګوان «خدای» به څنګه وي؟ په درمسال کې به چې ناست وي دا هر څه به څه ډول جوړوي؟ دده په مغزونو کې دخدای هیڅ خیالي تصویر جوړ نه شو، په هر صورت هغه پردې ډاډه شوی ؤ چې بګوان «خدای» به کوم ویروونکی شی نه وي.

ددرمسال نه بهر شنکرا وګوپال د درمسال دوه خدمتګاران او

درمسال ته ننوت، د درمسال په پراخه خونه کې یې چې ډول ډول بوتان ولیدل هیبت پرې راغی.

هغه بیرته وګرځید او ویې ویل:

زه ویریږم.

موهنی تسلی ورکړه ویې ویل:

له څه شي ویریږې؟ دا ټول ښه دیوتاګان دي.

هغه په حیرانۍ وویل:

دیوتاګان! تاسو خو زه ددې لپاره راوستم چې خدای راوښیې هغه چې موږ یې جوړ کړی یو.

موهنی ځواب ورکړ:

هلته ګوره! هغه تر ټولو اوچت خدای دی، راځه له نژدې یې وګوره ولې ویریږې؟

مادهو په ویره ویره وړاندې ورغی د رندهیر او موهنی په خندا کې دده ویره هم ورو ورو لرې کیده. پر هغه بوت چې د ټولې نړۍ له شیانو نه پرته یې د نیلوفر ګلان او موهنی غوندې ښکلې زړه وړونکې ښځې پیدا کړې وې دده مینه راغله.

دی نور هم وړاندې ورغی او څو ځلې یې ریږدیدلې لاسونه پر بوت کېښودل او بیا یې د هغه پر بدن را تیر کړل. موهنی ته یې وکتل او ویې ویل:

دا خو ځیدلای او ګړیدلای ولې نشي؟ دا خو ډیر کلک دی شاید له دې

داسې مه وایه خدای به درنه خپه شي ، دده په مخکې خلک سرود غږوي
راځه مور یې هم وایو.

- سرود څه شي دی ؟

- ستا سرود هم نه دی زده ، ښه ته غوږ ونیسه مور یې وایو.

دموهني او رندهیر خواږه غږونه په درمسال کې وکړنګیدل ، مادهو څو
ځلي ددوی الفاظ په زړه کې ورسره تکرار کړل او بیا دسرود په ویلو کې
ورسره شریک شو.

دمذهبي سرود نه چې وزګار شول مادهو وپوښتل:

زه دخدای په مخکې شپیلي وغږوم ؟

رندهیر ځواب ورکړ :وغږوه!

مادهو یوه په زړه پوري نغمه او چته کړه ، له درمسال نه بهر دشپیلي پر
غږ شنکر او ګوپال څک شول.

ګوپال وویل:

ای شنکره! څومره خوږ غږ دی ؟

شنکر ډانګ راواخست راجګ شو ویې ویل:

وای تباه شوو ، دا خو هماغه تیټ ذاتي هلک دی چې دډنډ په غاړه
شپیلي غږوي.

شنکر ددرمسال په لوري منډه واخسته او ګوپال ورپسې شو مادهو چې
دوی ولیدل چې په منډه درمسال ته ور ننوتل وارخطا شو شپیلي یې له لاسه
وغورځیده او دی د رندهیر تر شا پټ شو.

سرولګيد او بيا هغه ځاى پر ځمکه راوغورځيد.

له سر څخه يي دوينو داري اوچتي شوى ، شنکر دوهم ځلي ډنډه اوچته کړه خو ګوپال ور وړاندي شو. دهغه لاس يي ونيو او ويي ويل:

شنکره! دا دخداى درمسال دى، دتورى ديوى درمسال نه دى.

رندهير که څه هم کشر ؤ خو په ګونو کي يي ديوه زړور لوړ ذاتي وينه چليده او بيا دښار تر ټولو دلوى سردار دزوى په مخکي د يوه معمولي نمانځونکي داسي کړه وړه نوى خبره وه.

هغه په غوسه وويل:

تا هغه ولي وواهه، تا ته يي څه تاوان رسولي ؤ؟

ددرمسال خدمتګار دغوسي په حال کي دخپل سردار دزوى په پيژندلو کي لږ ځند وکړ، هغه وويل:

دا تا دلته راوستي ؤ؟

-هو کي! موږ راوستي ؤ، زه يو ځل کور ته ورسيږم بيا ګوره چي پلار جان مي څه درسره کوي.

- احمقه ستا له پلار سره به هم ګورم. ته دا نه پيژني چي يو ټيټ ذاتي دى او درمسال ته يي راوستل لويه ګناه ده. هغه داوويل او بيا يي مادهو تر پښو ونيو او له درمسال نه يي په کشولو بهر ته ويوست. دوينو کرښه دخداى له بوت نه پيل وه او دتورو ډبرو پر غولي يي لويه نښه پريښوده له درمسال څخه بهر په وښو او چمن کي ورکه شوه.

رندهير له غوسي څخه لړزيده او موهني ژړغوني په هغه پسي روانه شوه.

راوګرځید. رندهیر ته یې وکتل او په ګوابښ یې ډانګ وروښود چیغې یې کړې:

تا دې راوستې ؤ ؟

په دې ځنډ کې ګوپال رندهیر ته وررسیده.

هغه د رندهیر پر اوږه لاس کېښود او ورته وېې ویل:

نور له دې ځایه تښته!

د ګوپال پردې خبره د رندهیر غیرت ځوښ وخوړ په بیړه یې لاس ښکته کړ او یوه ډبره یې را پورته کړه او شنکر یې پرې وویشته ، ډبره پرښښه برابره شوه شنکر دو درې لاسونه پر تندي ونیول او پر ځمکه کیناست.

په دغسې معاملو کې ګوپال تر شنکر زیات د آزادفکر خاوند نه ؤ خو د شنکر سره کوم پخواني خپګان یې لاس او پښې ورتړلې وو. شنکر دډیرې غوسې په سبب رندهیر ونه پیژاند، که هغه د ګوپال په ځیر په سړه سینه فکر کړی وای نو ښایي ډبرې د لګیدو نه وروسته یې هم دبې ځایه او توبو تو پرځای به یې زړه ته تسلي ورکوله او ویل به یې چې دغه ډبره ویشتونکی لاس دکوم عادي ماشوم نه دی.

شنکر دخپل تندي څخه وینې پاکولې راجګ شو او ډانګ یې بیا راپورته کړ، دتپي زمري په ځیر د رندهیر په لور ورغی خو ګوپال یې لاره ونیوه ورته یې ویل:

ته لیوني شوی یې دا پیژني چې څوک دی ؟!

په لور خم شو خجالت غوندی شو ویې ویل:

ښه زه مذهبي مشر ته ورځم. دا که دسردار زوی دی او که دپاچا دا حق نه لري چې ذاتي راولي او زموږ درمسال پرې پليد کړي.

ګوپال وويل:

ستا دمنډو رامنډو تر ټولو وروستې پايله به داوي چې بيا به له سينده موږ اوبه راوړو او درمسال به پرې مينځو ، شنکره په ياد لره چې دده پلار آبله ورځ مذهبي مشر ته دري غوايي او يو آس ورکړی ؤ ، هغه به ټوله پړه پر موږ راواچوي او له رام داس سره دټکر پرځای به هغه ته دا ډيره آسانه وي چې زموږ پرځای درمسال ته دوه نوي خدمتګاران ونيسي.

شنکر بې له دې چې څه ځواب ورکړي رندهير او موهني ته يې کتل او يوې خواته ولاړ ، ګوپال له شا څخه ورپسې غږ وکړ:

چيرته ځې؟

-په سيند کې ځان پاکوم ته له درمسال نه ويني پاکې کړه.

ګوپال ځواب ورکړ:

خپله بلا زما پر سر مه راغورځوه ، ته درمسال صفا کړه زه به ستا لپاره ځان ولمبوم.

دګوپال طنز دشنکر ګامونه نور هم ګړندي کړل.

موهنی په منډه مادهو ته ځان ورورساوه ، ګوپال رندهير ته وويل:

ولاړ شه زويه! ته دا نه پيژني چې څومره ګناهکار دی.

سبا ته به ما ته فيرني راوړي که نه؟

رندهير بيله دي چې څه ځواب ورکړي دموهني پر لور ورغی او ګوپال درمسال ته ولاړ.

مادهو چې راپه خود شو سترګې یې وغړولی او جګ شو کیناست.

رندهير وويل:

موهنې! دده وينې لا نه دي دريدلي، ته کر راوړه چې زخم يې وروتړو.

موهنې په بيړه خپل تيکري راواخيست رندهير ته يې ورکړ. رندهير دمادهو زخم پرې وتاړه، موهنې سلګې وهلي او اوښکې يې پاکولې دمادهو مخې ته کيناستله.

ورته يې ويل:

درد به درته کوي؟

مادهو په ويريدلي لهجه ځواب ورکړ:

نه!

رندهير وپوښتل:

ستا کور کوم لوري ته دی؟ راځه چې کورته دي ورسوو.

موهنې تسلي ورکوله وېې ويل:

ته غم مه کوه رندهير ستا بدل واخيست، په لويه ډبره يې پر سر وويشتلو.

مادهو وويريده يوې او بلې خوا ته يې وکتل او ويې ويل:

درځی! له دې ځايه وتښتو!

دری واړه ماشومان له هغه ځایه روان شول.

مادهو لومړی له دوی سره د گامونو اخستلو هڅه وکړه خو چې څو گامه یې واخیستل تگ یې کرار شو هغه وویل:

زما سر درد کوی لږ کرار ځی.

رندهیر او موهنی یې پل راونیو.

**(۳)**

دډنډ غاړې ته چې ورسیدل مادهو خپله مور او شانتا ولیدل. کنول په حیران نظر یوی او بلی خوا ته کتل چې مادهویې ولید خو بېه شوه او گرندی دهغه په لور ورغله دخوښی او ښکی یې په سترگو کې ډنډ شوی

ویل یې:

زما بچیه ، زما غمیه! مادهو چیرته وی!

اوه... دا څه دی، ستا سر په وینو سور دی. وینی تری راغلی... ته چا ووهلی...

بیا یې رندهیر او موهنی ته اشاره وکړه:

دوی وهلی یی!

- نه مورجانی دوی ما ته هیڅ نه دی ویلی.

-نو ته چا وهلی یې؟

دمادهو پرځوپتیا مرهنی ځواب ورکړ:

شنکر وواهه.

کنول دمادهو له سره د یتی راخلاص

ما هم بدل تري واخيست.

کنول تري وپوښتل:

ته څوک يې بچيه؟

-زه رندهير يم، مور دې درمسال ته بيولې ؤ چې بګوان «خداى» ور وښيو، هلته شنکر دې وواهه او ما هم دهغه سر پرې مات کړ.

کنول وارخطا شوه ويې ويل: درمسال ته...

دخداى وربښودلو لپاره؟!

-هوکې ده ويل چې ما خداى نه دى ليدلى.

-دماضې ډير تصويرونه دکنول سترګو ته ونڅيدل.

او بيا په يوه ژور چورت ډوبه شوه.

موهنى تري وپوښتل:

ته دده مور يې؟

-هو کې لورى دا ټيکرى ستادى؟

-هوکې!

-داپه وينو ککړ شوى دى زه به يې اوس درته ومينځم.

-نه دا يې همدغسې پر سرورپريږدى.

-نه لورى که دې مور پوښتنه وکړى څه ځواب به ورکوى؟

ما ډير ټيکرى ورک کړى دى، هغه له ما نه پوښتنه نه کوى، تاسو دده زخم ښه وتړى.

-ستا نوم څه دى لورى؟

رندهیر وویل.

راځه موهنی موږ هم نور ولاړ شو.

موهنی په تلو تلو کې ودریده ویې پوښتل:

شنکر ویل دا تیټ ذاتی دی ، ته هم تیټ ذاتی یی ؟

کنول په دردمن غږ وویل:

زه تیټ ذاتی یم خو زما زوی...

موهنی د کنول په مطلب ونه پوهیده خو سره له دې چې ماشومه وه مګر دا یې احساس کړه چې دې ښه پوښتنه ونه کړه ، ودریده بله پوښتنه یې وکړه:

تیټ ذاتی څه شی وی ؟

- تا ته نه دی معلوم ؟

-نه.

کنول ځواب ورکړ:

تیټ ذاتی انسانان وی، مینه کوونکی انسان خو په دې دنیا کې هغوی انسانان نه ګڼل کیږی. راځه مادهو ! بچیه تاسو هم ولاړ شی!

موهنی او رندهیر دښار په لور روان شول.

مادهو ، کنول او شانتا تر لیرځنډه همالته ولاړ وو او دوی ته یې کتل.

موهنی څو ځلې شاته مخ وروااړاوه او ورته ویې کتل او په سترګو کې یې مادهو ته یو نه هیریدونکی پیغام ورکړ.

کنول ته د موهنی په لور د مادهو دغسې کتل ښه ښکاره نه شول

او په زړه کې يې وويل:

زما نازوليه! ته تر هغوی په هيڅ کې کم نه يې، ستا رنګ تر دوی ډير سپين او سترګې دې تر دوی ډيرې ښکلې دي خو ته دخپلې مور له ګيډې څخه ديوه ټيټ ذاتي له برخې سره زيږيدلې يې، بيا يې مادهو ترمټ ونيو ويې ويل:

راځه بچيه څه ته ګورې ستا نړۍ له هغوی نه بيله ده.

څېرې ته چې نژدې شوه دکنول څه په خيال کې ور وګرځيدل ودريده او دمادهو پر سر يې لاس کيښود ويې ويل:

بدهو ته څه مه وايه، که هغه خبر شي چې ته چا وهلې يې خو دې بدل وانخلي آرام نه کښيني او مور ټول به په مصيبت کې راګير شو.

مادهو تسلي ورکړه ويې ويل:

نه مورجانې نه ورته وايم، ورته وبه وايم چې له ونې نه راولويدم.

-دا وعده هم راسره وکړه چې بيا به هغه لورې ته نه ځې او له هغو ماشومانو سره به دليدو هڅه نه کوې.

-ولې مورې زه خو هغوی وهلې نه يم.

- زويه! که دهغوی پلار او مور ته معلومه شوه چې ددوی ماشومان ستاسو سره لوبې کوي نو مور به له دې ځايه وشړي، ته دډنډ بل لورې ته مه ورځه.

-ډير ښه دې مورې زه به هغه لورې ته نه ورځم.

ارجن تري وپوښتل:

موهني نه ده راغلې؟

ساوتري ځواب ورکړ:

خدای پوهیږي چیرته تللې، زه درندهیر دوی کورته دپوښتنې لپاره ورغلې وم. هغه هم تر اوسه پورې نه ده راغلې.

نو بیا به ښایي له هغه سره چیرته په لوبو بوخته وي. دومره ولې اندېښمنه یې چې وړې شي پخپله به راشي.

-ته دلته څه کوې ولاړ شه ورپسې ووزه. هغوی ددې لوري ته تللي وو زه ډیره ویرېږم...!

ارجن دساوتري دځورولو په نیت وویل:

موهني ستا په خیر ناپوهه نه ده درمسال ته به تللې وي.

- ښه ده پرې ږده چې راشي زه به یې نن حساب واخلم.

-هغې ته څه مه وایه. په دغه عمر کې مونږ هم تولو ورغ بهر تیرولو.

-ستا مینې هغه بې لارې کړې ده.

-ښه نورمې ماغزه مه خوره! دادې پسې ورځم.

ارجن جګ شو بوټونه یې په پښو کول چې بهر دروازه خلاصه شوه موهني او رندهیر دواړه کورته ورننوتل.

ارجن بیرته پر چپرکټ کیناستلو ویې ویل:

دادې هغوی راغلل تا هسې شور ګډ کړی ؤ. بیا یې لور ته مخ واړاوه

ویل ستونی یی را ډک شو او سترګی یی اوښلنی شوی.

–هلته څه وشول؟ ته ژاړی وخو وایه چی هلته څه پیښ شول؟

ساوتری وویل:

لوری ولی نه وایی دډند سره څه وشول چا خو به وهلی نه وی؟

موهنی دخپل زړه راقابو کولو هڅه وکړه ویی ویل:

په ډند کی یوه هلک لنبل هغه دا ګل ماته راوشکاوه.

مور ته یی دډینګ بچیان هم راوښودل، مور هغه دبګوان دزیارت لپاره درمسال ته بوتلو شنکر پر ډانګ وواهه او سر یی مات کړ، موهنی دا وویل او په سلګیو شوه.

ارجن تری وپوښتل:

شنکر هغه ولی وواهه؟

دموهنی پر چوپتیا رندهیر ځواب ورکړ:

هغه ویل چی دا ټیټ ذاتی دی.

ارجن وارخطا غوندی وویل:

ټیټ ذاتی! هی هی؛ تا سو ټیټ ذاتی درمسال ته بیولی ؤ او موهنی تا دا ګل دیوه ټیټ ذاتی له لاسه اخیستی دی؟

– هو کی او دغه سیپی هم ماله هغه نه اخیستی!

– لری یی وغورځوه موهنی! دا ناولی دی، ساوتری ته موهنی ولنبوه او پاکی جامی ورواغونده.

موهنی ددغو ګلانو دناولتوب په راز ونه پوهیده ویی ویل:

نشی کیدای.

- پلار جانه دهغه لاسونه هم پاک وو. مور چی ورغلو هغه لنبل.

ارجن په درانه غږ وویل: تیټ ذاتی په لنبلو نجیب کیدای نشی.

ختمه چی کلکه کړی غمی نشی کیدای، وغورځوه گلان!

موهنی دارجن تر منطق دهغه له درانه غږ نه ډیره تر اغیزی لاندی راغله او گلان یی وغورځول. په انگړ کی ولاړ خوسکی ورغی هغه گلان یی بوی کړل او بیا بیرته تری په شا شو.

ارجن وویل:

و دی لیدل زموږ غوایان هم دتیټ ذاتو له لاسه څه شی نه خوری.

رندهیر چی تراوسه پوری چوپ ولاړ ؤ ویی ویل:

نیلوفر گلان خو غوایان نه خوری. که یی تاسو پخپلو لاسو راوشکوی او ورته وایی چوی هم خوله به ورنه وړی.

که ډیر وږی وی شایی ویی خوری.

ارجن دخپل خجالت دپټولو هڅه وکړه ویی ویل:

ته چوپ شه!

ارجن چوپ شو، موهنی دهغه دزړه دساتلو په غرض دی بحث ته دوام ورکول ضروری گڼل ویی ویل:

پلار جانه! دهغوی لاسونه کټ مټ زموږ په شان دی، که دغه گلان زموږ په لاسونه ناولی کیږی ددوی په لاسو به څنگه ناولی شی؟

-لوری! هغوی له سره تر پښو ناولی دی، او له دوی سره په لگیدو هر

- ډیره لویه گناه.

- ولې؟

- ځکه چې خدای ددوی په لیدو خپه کیږي. د خدای درمسال ناولي کوي.

-خدای له دوی نه ولې کرکه کوي، آیا دوی یې پیدا کړي نه دي؟

- نه ډیره ناپوهه یې موهني، خدای دوی پیدا کړي دي خو ټیټ ذاتي.

- دوی ولې ټیټ ذاتي دي؟

- ځکه چې خدای له پلیدۍ او ناپاکې خاورې څخه جوړ کړي دي.

- خدای دوی له ناپاکې خاورې نه ولې جوړ کړي دي؟

- موهني که دې نور چتیات وویل ژبه به دې دربندې تاوکړم. دخدای په اراده کې موږ لاس نشو وهلی. هغه چې څوک غواړي په لوړ ذاتو او څوک په ټیټ ذاتو کې پیدا کوي، د نړۍ ټول شیان یو ډول نه دي، سپوږمۍ تر لمر وړوکې او ستوري تر سپوږمۍ وړوکي دي.

په بڼ کې یوه ونه لویه او بله وړوکې وي، ازغي لرونکي بوټي او میوه لرونکې ونې په یوه بڼ کې را زرغونیږي. خو یوه غوځوي او اوروته پرې بلوي او دبلې د تاندې ساتلو لپاره اوبه ورکوي.

موهنی ظاهراً ډاډه اوچوپه شوه، خو په زړه کې یې داسې بې انصافه خدای ته بد ویل چې دشنکر غوندې بد اخلاقه سړي یې لوړ ذاتي او ماد هو غوندې ښکلي هلک یې دناولې خاورې نه جوړ کړي دي.

ددې خبرو اترو په پای کې ددې سره دخدای په باب تصور یو زوروز

په عـامـه وضع کی دمـوهنی په عـمر کشـری نجلی ښـایی پردی مسئله زیات فکر نه وای کړی خو دا غیر معمولی هوښیاره وه.

او کومی پیښی ته هسی په سرسری نظر کتلو عادی نه وه. ددی پر ماغزو چی دخدای د ښه تصور په رڼا روښانه وو په ناپامی کی ورو ورو تیارو زور راووړ.

# د خدای استازی

څلور کاله ذهني او بدني ودې دغه ماشومان دلوړ ذاتو او ټیټ ذاتو پر ازلي توپیر اعتراف ته اړ کړل.

د رندهیر او موهني چاپیر یال دا ور وښودل چې دوی د پخواني ژیږون دکومې نیکۍ په سبب دلوړ ذاتو په کورونو کې زیږیدلي دي.

مادهو ته دڅان په باب دا معلومه شوې وه چې یو بد مرغه ټیټ ذاتی دی خو ده ته ددې پوښتنې ځواب ور کوونکی نه ؤ چې دی ټیټ ذاتی ولې دی؟

دخپلو څپرو نه بهر ددوی الوت یوازې دهغو خلکو تر کورونو پورې محدود وو چې ددوی په څیر یې دهندې کلتور او ټولنې دسپیڅلي او ښکلي ښار له دیوالونو بهر په خپلو وروستو جونګړو کې دژوند ښې او بدې ورځې تیرولې. او پردې یې دفکر کولو اړتیا نه احساسوله چې دوی ټیټ ذاتي ولې دي.

دوی دلوړ ذاتو پردې عقیده هم نه وو خبر چې دوی دړومبي ژیږون دکومې نه بخښوونکې ګناه دسزا ګاللو لپاره ټیټ ذاتي شوي دي.

په عادي وضع کې مادهو ته ددې امکان نه ؤ چې په دغسې مسایلو فکر

دوی به سهار او مابنام په یوه غونډۍ وختل کله به یې ښار او کله د تیټ ذاتو کلي ته کتل یو لوري ته خوښي په نخیدو وی او بل لوري ته دبې کسی اوښکې بهاندې ښکاریدلې .

دوی به دځپرو دبې وسی او زره ماتوونکي ژوندانه له ننداروڼه سترګې واړولې او دښار دلوړو مانیو شان او شوکت او په هغوی کې داوسیدونکیو عظمت به رعب پرې واچاوه. کله به چې دلمر لویدو نه وروسته ښار ته نژدې ددرمسال زنګونه وکړنګیدل او په فضا کې به دناقوس آزانګې خپرې شوې نو ددوی خیالونه به دهغه شانداری مانۍ پر شاوخوا راڅرخیدل چې ددنیا هر غوره او بد شی پیدا کوونکي پکې وجود درلود .

ددرمسال دخدای خیالي تصویر به یې سترګو ته ودرید .

او ده به خپله بې وسی او غریبي هیره کړه دکایناتو ددغه سترځواک په وړاندې به یې سر ښکته شو چې دهغه په دم دسیندونو داوبو خوځښت ، دغرونو ښکلا او رنګیني او دګلانو تازګي ولاړه وه.

په اشارو یې باد چلیده او وریځې الوتلې او توری بریښیدلې.

چې لمر ته یې جلال او دبدبه ، سپوږمۍ ته یې ښکلا ، ستوریو ته یې زړه راښکون او ګلانو ته یې تازه ګي وربخښلي وه.

مادهو ته دخدای دروښانه خیالونو په وړاندې دچاپیریال تیاری په تولیدو ښکاریدې، پرځمکه او آسمان کې دخدای پر سترتوب داعتراف کوونکیو لپاره ډیر شیان وو ، که دغه زړه وړونکي ننداری نه وای هم نو مادهو به هغه خدای ته ولی ...

وای دریدلی کەلە هغوی سرەد دوی دلیدو تولی لاری بندی نەوای نو دانړی بەدوی تەخومرە ښایستە اورنګینەوە ؟

دکایناتو دغەننداری دوی تە څو مرە ښایستە ښکاریدلی، رندهیر ددە یادیدە خو پەدغە یاد کی دومرە ناکراری نەوە لکە دموهنی پە یادیدوکی لەموهنی پرتە دە تە دخدای دغە نړی لەټولو ښکلاؤ سرە نیمګړی ښکاریدلە کلە بە چی دشپی تیارو دتیتې ذاتو جونګړی نوری هم بی خوندە اوسړی کړی اودښار پە هرە کوڅە او واټ کی بە ډیوی وځلیدی نو دمادهو پەمعصوم زړه کی بەددردیوه څړیکە وزغلیدە ،دە بە پخپل زړه کی ویل چی رندهیر اوموهنی بە دلوړذاتو لەنورو ماشومانو سرەدهغو ډیوو اوچراغونو پەرڼا کی لوبی کوی کاشکی زە هم لەدوی نەیو وای.

لەدوی سرەمی لوبی کولای، دوی تەمی شپیلی غږولی . ددوی سرە می دخدای دښکلو درمسالونو سیل کولی، دوی بەزە هیر کړی یم ! نەنە دوی بەزە هیرکړی نەوم دوی بەیوە ورځ زما پە لټون پسی خامخا راشی ،زە بەرندهیر ډنډ تەدسیل لپارە بوزم موهنی تەبە دڅورو اوبوګلان راوشکوم او وربەیی کړم ،هغەبەډیرە خوښە شی خونە. . . . زەیو تیتې ذاتی یم ،هغەبەزما پەلاس راشکیدلیو ګلاتو تەلاس هم ورنەوړی، هغەبەماتە پەکتلو کی‌سترګی پټی کړی زما غږ چی‌واوری پە خپلو غوږونو کی‌بە ګوتی نندباسی. . . مګر دخە لپارە؟

مادهو بەدشپی مهال لەویدە کیدو نەدمخە زیاترە وختونە دا ارادە

دسهار په رنا کی گډه وډه شوه، هغه به کله دڼد بلی غاړی ته د تلو اراده بدله کړه او کله به یې د امیداو ویری په گډواحساساتو کی د بدهو اوکنول له سترگو څخه ځان گوښه کړاو دخپل هدف په لور به یې مخه وکړه.

خو تردرمسال پوری به څو رسیدو مصلحتونو به یې پرهیلو خاوری ورواړولی.

هغه به په وار وار دی خیالونوځوراوه چی دښارخلکو به دوی ته دلوړ- ذاتو اوتیټ ذاتو توپیرورښودلی وی، امکان لری چی هغه ماته وگوری په حقارت مخ رانه واړوی . که بدل شوی نه وی هم زما له دوی سره لیدل ښه نه دی کـه دښا رخلک پردی خبـر شـول چی مـوږ له لوړذاتو ماشومانوسره دنږدی کیدو هڅه کوو نو موږ به په ډبو لو وشړی بیا به له دوی سره دلیدو هیله دتل لپاره ختمه شی، له دی سوچونووروسته به ما دهو بیرته راوگرځید خو عقل تل له زړه سره ملگرتیا نه کوله کله کله به دارادی سیلاب دمصلحتونو بندونه ورسره ونړول اوما دهویه د درمسال لاری ته نژدی په بوټیـو کی غلی شو اویا به په کومـه ونه کی وخـوت دموهنی دراتلولاریه یې څارله څو ځلی هغه درندهیر اوموهنی په لیدو هم بریالی شو چی درمسال ته تلل خو هغوی یوازی نه وو دښار څو نجونی اوهلکان به نور هم ورسره وو اوما دهو به داجرئت ونه کړ چی مخی ته ورشي.

غاړه پهلوېو اوسات تیریو بوخت‌شول ، مادهو چې رندهیر لهنورو هلکانو سره پهلامبو بوخت ولید ځو ځلې یې پهخیال کې ورغلل چې له ونی راکوز شي اوډنډ ته ځان وروغورځوي خودیوه تیټ ذاتي ځان کم ګڼلو احساس دی لهدې نهایسارکړ موهنی له خپلو نورو ملګریو نجونو سره دده لهونې نه پنځلس شل ګزه لرې دډنډپرغاړه ولاړه وه، مادهو تهنژدې یوې قمرې پهبلهونه کې په غاړو پیل وکړ موهنی ونی لوری ته مخ ورواړاوه او تر قمرې یې پهځو چنده خواږه غږ دهغه دغاړو او نغمو ځواب ورکړ.

مادهو تهاوس دهغې مخ ښه ښکاره کیده دښار لهنورو نجونو سره داپه ستوریو کی سپوږمی ښکاریده، موهنی دکوهو، کوهو، ناری وهلی اودقمرې د لیدو لپاره دونی پهلوروړغله دمادهوزړه پهدرزیدو شو، ده دموهنی لهسترګو دځان پټولوهڅه کوله اوپهشاخونو کی یې له یوې ونی څخه بلې اولههغې څخه دریمې ته ځان ورساوه ،اوس دډنډپرغاړه دلوبیدونکو ماشومانو لهنظره پناه اولری ؤ. ده یوازی موهنی لیدله قمرې غاړې بس کړی وې او موهنی دونو پهمنځ کی ولاړه وه یوې اویلی خواتهیې کتل ، مادهولهونی راکوز شو اوموهنی تهیې کتل دهغهزړه دخوښیو پهسمندرکی غوټې وهلی موهنی دقمرې لهلیدو څخه مایوسه شوه اوبیرته ستنهشوه.

مادهو داسې احساس کړه چې دتقدیر لاس دی دخوښیو دآسمان څخه

راویښ شو، اوددغه شعوردبې پایه‌سیلاب یوې څپې هغه‌تول دیوالونه چې له‌پیړیو راهیسې دتیټ ذاتي اولوړ ذاتي ترمنځ دریدلي وو ونړول، مادهو په‌بیړه له‌جیبه شپیلي راوایستله اودموهني دپام وراړولو لپاره یې یوه غوړه نغمه وچیړله دغه‌ملا یمه‌نغمه دتیټ ذاتي دزندي شوی غږ ترجمانه‌وه موهني چې دشپیلي غږ واورید ودریده څه فکریې وکړ او بیرته‌راوګرځیده اوداندیښنې، خوښي اوویری له ګډه‌وډو احساساتو سره یې یوې اوبلې خوا ته‌کتل اودمادهو په مخکې ودریده، دمادهو په زړه‌کې یو توپان را اوچت‌شو اوشپیلي یې له‌شونډو بیله‌شوه.

موهني وویل: څوک یې... مادهو.... مادهو! مادهو چې دموهني په‌غږکې دکرکې اویا سپکاوی پرځای دمینې او انس احساس ولید دموسکا هڅه یې وکړه خوله‌موسکا سره یې دهغې دمینې او احساس جذبو سترګې وراوښلنې کړې.

– موهني ته‌را غلې! زه‌دې وپیژندلم؟

مادهوداوویل سترګې یې وړپولې چې داوښکو څاڅکې یې بیا له‌بنو پرباړخوګانو وڅڅیدل اوبیا ځمکې ته تویې شوې.

موهني وویل:

زه‌اورندهیر څوځلې دنهته‌راغلو خو ته‌موونه لیدې دا دومره موده چیرته وې؟

مادهو ځواب ورکړ:

موهنی ترلږ ځنډه مادهو ته چې په ژورو سوچونو کې ډوب وه وکتل ، هغه دښار له ټولو هلکانو څخه ډیر مناسب اوښکلی ؤ خوبیا هم هغه یو تیټ ذاتی ؤاو موهنی پردی حیرانه وه چې له هغه څخه یې کرکه ولی نه کوله دی هغه لیده ، غږیې اوریده بیا یې هم له ځایه نه خوځیده دتیټ ذاتی اوښکو ترلږ ځنډه ددی دهلته تم کیدو بیه اداکړی وه.

ناڅا په درندهیر غږ اوچت شو:

موهنا! موهنا! چیرته یې راځه چې کورته ځو!

موهنی په ویریدلی لهجه وویل: زه ځم.

مادهو سرترپایه عذر شو وی ویل:

بیا به راشی؟

- کیدای شی . . . .زه نه پوهیږم. موهنی دډند په لور منډه واخیسته اوترشایی ځواب ورکړ.

دمادهو دژوند رڼا دونوشاته پټه شوه خو دده دزړه په غمجنه فضا کی د هیلو په زرگونو ډیوی بلی شوی په ټوپونو منډو اوشپیلی غږ ولو کورته ورسید ، کنول چی ډوډی په مخکی ورته کیښوده څو نمړی یی وخوړی بیا یی وویل:

مور جانی نوره اشتها نه لرم.

- نن ډیر خوښ یی زویه ، ته چیرته تللی وی؟

- همدلته وم موری! زه شپیلی درته غږوم!

دایی وویل او شپیلی یی را واخیسته اونغمه یی پکی اوچته کړه ،

نن یی بدن ورته چست اوسپک ښکاریده اودعادی تگ پرځای یی مندی وهلی، دغوندی سرته چی وخوت ځلور وخواوته یی نظر واچاوه نن دخدای دنیا ورته بشپړه ښکاریدله، نن یی دخدای پرستر ځواک اعتراف کاوه، موهنی دهغه پهاشاره دډنډ غاړی تهراغلی وه، دهغی دپام وراړولو لپاره قمری هم هغه را استولی وه دده دشپیلی سرته خدای داسی اغیزوربخښلی ؤ چی موهنی پهتلو تلو کی بیرتهراوګرځیده ،اوداهم دهغه ورکړه وه چی یوی لوړذاتی نجلی څو کاله وروسته هم هغهولیدو یی پیژندلو او لههغه سره یی پهکرکه چلن ونهکړ.

دخدای پهاړه ددغسی پهزړه پوری تصور سره دده زندی شوی هیلی پهوینښوشویو ولو لو بدلی شوی.

دی پهخیال کی دورستو جونګړو نهوتلیؤ اودښار په ښکلیو ماڼیو کی ګرځیده ،ده دیوی داسی دنیا د جوړولو خوبونه لیدل چی هلتهټول اوسیدونکی د لوړذاتی اوټیټ ذاتی له نومونو سره نا اشنا وو.

دخدای پر سترځواک دده داعتماد اوباور پهسبب دژوند هرافق ده ته دمایوسی پهوریځو کی دسهار دراتلوپیغام ورکاوه، مادهراسمان ته وکتل اوویی ویل:

خدایه! زه پوهیږم چی یو ټیټ ذاتی یم ماتهستا په درمسال کی دپښی ایښودلو حق نشته ،زه دهغوی ښارته هم نشم تلای خوتهخدای یی اوتاتهدا آسانه دی چی لهنړی څخه دټیټ ذاتی او لوړذاتی ترمنځ توپیر ورک کړی.

سبا ته‌دلوی ډنډ پرغاړه له‌لمدو ختیو مادهو په‌ډول ډول بڼو بوتان جوړ کړی وو اودهغوی دخوښی لپاره یی مذهبی سندره زمزمه کوله.

(۳)

دوه کاله‌نور تیر شول مادهو په‌دی موده کی دختیو په‌بوتانو جوړولو کی ښه مهارت ترلاسه کړ، ډیر بوتان یی جوړ کړل اوبیرته یی مات کړل بیا یی یوداسی بوت جوړ کړ چی ترټولو پخوا نیو ښایسته ؤ مادهو هغه دلوی ډنډ پر غاړه په‌بوتیو کی پټ کړ.

هغه‌به‌دورځی لیږ ترلیږ ه یو ځل خامخا دلوی ډنډ غاړی ته‌راتلو پخپلو لاسو دخدای دجوړکړی بوت په مخکی به‌یی له‌موهنی او رندهیر نه‌زده کړی مذهبی سرو دووایه‌اوبیرته‌به‌تلو.

یوه ورځ رندهیر اوموهنی چی له‌درمسال نه‌بیرته راگرځیدلی وو دلوی ډنډ پرغاړه دشپیلی خوږ غږ واورید ، موهنی په‌تلوتلوکی ودریده اوویی ویل: رندهیره! دغه‌شپیلی غږوونکی به‌څوک وی؟؟

رندهیر ځواب ورکړ:

زه چی هغه بله‌ورځ له‌دی ځایه تیریدم دغه غږ می واورید ډیره ښه شپیلی غږوی.

-تاهغه هیڅکله نه‌دی لیدلی؟

- نه‌هیڅکله نه!

- لیدلی دی دی خو هیر شوی دی دی.

درمسال ته بوتلو!

-هو کی هغه.... رندهیر پر خپلو مغزوزور راووړ اوزیاته یی کړه:

چی شنکر وواهه.... څه نوم یی ؤ.... ما دهو! موهنی په تائید سرو خوځاوه او ویی ویل:

راځه چی ویی وینو!

- مګر هغه لکه چی ټیټ ذاتی ؤ.

دموهنی زړه ولوید ویی ویل:

مګر زما باور نه راځی چی هغه دی ټیټ ذاتی وی ته یی هم چی وینی ښایی ټیټ ذاتی یی ونه بولی.

رندهیر ځواب ورکړ:

ټیټ ذاتی خوله بنی ښخه نه ښکاریږی.

موهنی وویل:

رندهیره! موږ له ټیټ ذاتو نه ولی کرکه کوو؟ رندهیر ته دموهنی اودهغی دپلارترمنځ بحث ورپه زړه شو، ځواب یی ورکړ!

ماتراوسه په دی اړه هیڅ فکر نه دی کړی.

دشپیلی غږ غلی شو او بیا دچا دسندری خوږ غږ اوچت شو. داهغه مذهبی سرود ؤ چی مادهو په یوه ښکلی راګ کی وایه.

رندهیر ټک شو ویی ویل:

نه، داکوم ټیټ ذاتی نشی کیدای، مذهبی سرود وایی اوغږیی زموږ

له‌دوی نه په درمسال کی زده کړی ؤ خو دمادهو دلیدو هیلی دوی پرهره هیله زور راړو اوله څه‌ویلو پرته له‌رندهیر سره روانه شوه.

له لېلاری تلو وروسته رندهیر اوموهنی مادهو ولیده چی بی خبره دیوه ———

بو تی ترڅنګ دخپل راګ په‌تل کی ډوب ؤ، رندهیر دی ونه پیژندلو مادهو چی راګ پای ته ورساوه سترګی یی پورته کړی چی رندهیر او موهنی یی په مخ کی ولیدل هک پک شو، لږ څنډ وروسته را سنبال شو و یی ویل: تا سوراغلی خدای را واستولی.

پردی خبره رندهیر او موهنی یوبل ته‌وکتل، بالاخره موهنی ځواب ورکړ:

موږ ستاغږ واوریدرا غلو ته ډیر ښه‌سرود وایی.

- زما سندره ستا سو خوښه‌شوه؟

-ولی نه،رندهیرهمدا اوس ویل چی زموږ په‌ښار کی ترتا ښه‌سرود ویونکی نشته.

رندهیر وپوښتل:

ته‌ما دهویی؟

- هوکی ودی نه پیژندلم؟

- دغه‌سرود دی چیرته‌زده کړی دی؟

-ستا په‌یاد نه‌دی ، تا راښودلی ؤ.

مودي وړاندي خبره ده دغه سرود دي تراوسه پوري ځنګه په ياد پاتې شو ؟

- زه يي هره ورځ دخداى په مخکې وايم:

- ستا خداى چېرته دى؟

- په هغه بوتی کی ، ودريږي زه يي دروښيم مادهو په بوتى ورتيټ شو دلاندي بيخ څخه يي دخاوري بوت راويوست اوددوى په مخکې يې کېښود.

رندهيرو پوښتل :

داتاله کومه ځايه راوړ ؟

مادهو ځواب ورکړ:

ماپخپله جوړ کړی دى داستاسو له خداى څخه ډير وړوکى دى زه به اوس يو لوى خداى جوړوم.

کټ مټ ستاسو دخداى په شان تاسو به يى ليدو ته بيا راشى ؟

دهغه په ځواب کی رندهير اوموهنى چوپ شول.

مادهو سرترپايه عذرشو په سترګو کی يى اوښکى را غلى ويى ويل: خامخا راشى زه هر ماښام پرغونډى خيژم اوستاسو ښکلى ښار ګورم په کال کی يوه شپه هغه ډير روښانه وى په هر کور کی ډيووکتارونه ترسترګو کيږي موهنى وويل:

هو کی هغه « ديوالى »شپه وى.

وو.

- رام چندر صاحب څوک دی؟

- هغه دخدای استازی ؤ.

- دخدای استازی څه شی وی؟

- یو داسې انسان چې په هغه کې دخدای غوندې زوروی.

- په انسان کې دخدای غوندې ځواک څنګه پیدا کیدای شي؟

- دهغه په نمانځنه او - زه به هم دخدای نمانځنه وکړم. خو مور جانې مې راته وویل چې ته هر څه وکړې بیا به هم دلوړ ذاتو سره برابرې ونکړای شې. آیا زه دخدای په نمانځنه ستاسو په شان نشم کیدای؟

موهنې چوپه شوه، دهغې سترګو له رندهیر څخه ددې ځواب غوښتنه کوله.

مادهو ناکراره شو ویې ویل:

وایې! دخدای لپاره وایې، آیا زه به تول عمر ټیټ ذاتې وم؟

موهنې ځواب ورکړ:

- نه، نه خدای به ستا مرسته وکړي.

چا دلوې ډنډ له لورې غږ وکړ:

وروره! وروره!

مادهو دشانتا غږ وپیژانده، په بیړه یې بوټ په بوټیو کې غلې کیښود او ویې ویل:

شانتا! زه دلته یم.

رندهیر او موهنې غوښتل چې ولاړ شي خو چې شانتایې ولیده ودریدل،

په لتولو دی ستومانه کړم ، ته دلته څه کوی ؟

مادهو ځواب ورکړ:

هیڅ هم نه، شانتا راشه.

دمادهو سره چې هغې موهنی او رندهیر ولیدل لږ پښه نیولې غوندی شوه او ورو ورو ورغله.

رندهیر وپوښتل:

دادی خور ده ؟

- هو کې تا ونه پیژندله؟

رندهیر مادهو ته څه ځواب ورنکړ ، هغه خو ځلې سرترپایه دشانتا له لیدو وروسته په زړه کې وویل:

آیا دا امکان لری چې دغه خور او ورور دی تیټ ذاتی وی؟ زموږ په ښار کې ددوی په څیر برهمن او نجیب زاده نشته. آیا خدای داسی کوی چې دغسی ښکلې څیری پیدا کړی او بیا کرکه ورسره وکړی؟

رندهیر وویل:

ښه مادهو نور موږ ځو. خو زه یوه خبره درته کوم.

-وو ایه!

-هغه بوت پټ درسره وساته، او بیا دښارد کوم سړی په وړاندی دغه سرود مه وایه.

-بوت خو زه دکاکا له ویری پټ ساتم ، خو دمذهبی سرود په ویلو کې څه

څارل یې.

شانتا بیا وپوښتل:

دا څوک وو؟

مادهو ځواب ورکړ:

دخدای استازی.

-داڅه شی وی؟

- ته نه پرې پوهیږې، راڅه چې کورته ځو.

شانتا خوله بوڅه کړه ویې ویل:

واه واه، نو زه ستا په اندازه هم نه پوهیږم، ستا مطلب دا ؤ که نه چې دښار او سیدونکی وو؟

مادهو وخندل.

تراوه ... ی د رندهیر ټولې مشغولتیا وې چکر، ښکار نیزه بازی او پر آس سپرلی وه. دا لومړی ځل ؤ چې ده دخدای، دیوتا، لوړ ذاتي، ټیټ ذاتي په اړه جدي فکر کاوه. هغه په تلو تلو کې ودرید او له موهنی څخه یې وپوښتل.

دا کیدای شي چې خدای دشانتا او مادهو په شیر شیرې جوړې کړې او بیا کرکه ترې وکړي؟

موهنی ځواب ورکړ:

رندهیره! زما په خیال خو خدای له هیڅا نه کرکه نه کوي، کله چې یوه مور دخپل ښکلی او بدرنګه ماشوم سره یو ډول مینه کوي نو دا کله امکان لري چې خدای چې مور، ټول یې پیدا کړي یو، ټولو ته ...

# تیږی توږونکی

ماښام مهال وریځی پر آسمان راخپریدی، بدهو، شانتا، کنول او مادهو دډوډی خوړلو نه وروسته بهر پر چپرکټونو څملاستل، دلویدیځ لوری ته توری وریښیدی او بدهو راجګ شو کیناست.

کنول وویل:

څه خبره ده وروره! تاخو ویل د یر خوب راځی؟

بدهو چپرکټ ورسره واخیست ځواب یی ورکړ:

دغه وریځی به خامخا واوری او زما خوب به خراب کړی زه دننه ځم نن خو هسی هم ګرمی نشته.

شانتا وویل:

زه هم دننه ویده کیږم، راځه وروره ته هم دننه ولاړ شه!

مادهو شانتا ته دځواب ورکولو پرځای خپلی مور ته وویل:

موری جګه شه زه دی کټ دننه یوسم. که باران راشی بیا به دی دشپی له خوبه ویاسی.

کنول جګه شوه جونګړی ته ننوته او مادهو یی چارپایی ورواخیسته دننه یی بوړه.

مادهو بهرته دوتلو په حال کی ځواب ورکړ:

ماته اوس خوب نه راځي موري. دننه گرمي هم ده ؛زه به وروسته راشم.

بدهو وویل:

چې باران راغی بیا موږ راویښ نه کړی.

- نه کاکا! زه به چوپ دننه راشم.

مادهو بهر پر خپل کټ کیناست، له لری د درمسال دزنگ غږ راتلو او دمادهو زړه درزیدو.

شانتا دننه نه غږ پری وکړ:

وروره ماته نکل وکړه!

مادهو ځواب ورکړ:

چوپه شه! کاکا له خوبه وزی!

بدهو پر اړخ واوښت ویی ویل: شانتا شور مه کوه.

- نو زه هم بهر ته ځم، او بیا په خپو پښو بهر ته ووته.

مادهو زر پر بستره وغځید او په خریدو شو.

- هن ته مکار ته گوره چې تراوسه یی خبری کولی او اوس بیا په خریدو شو!

- گوره شانتا! مامه ځوروه که نه وهم دی.

کنول دننه نه غږ پری وکړ:

شانتاولی یی آرام نه پریږدی ، ته دشپی هم په کرار نه شوی!

بدهو یو ځل وغومبید:

شانتا ولی دی شور گډ کړی دی؟

مادهو له بستری څخه جګ شو او خپ خپ دجونګړی ترشا دلوی ډنډ په لور ولاړ، لېږ چې لرې ولاړ دلاری څخه یې ځان ونو اویو ته کړ ، ددرمسال لاره یې ونیوه او په منډو یې پیل وکړ ، دلوی ډنډ پر غاړه چونګښو او چرچریو آسمان پر سر اخیستی ؤ خو دمادهو غوږونو یوازی یو غږ اوریده چې هغه ددرمسال دزنګ غږ ؤ.

په لوی زنګ هر نوی ګوزار دده دزړه درزا او ګامونه ګړندی کول، هغه په منډو منډو کې په وار وار دا خبره تکراروله:

زه به دخدای استازی له ځانه جوړوم.

... زه به دخدای استازی شم!!

**(۲)**

له درمسال څخه لېږ لرې مادهو ودرید او تر لېږ ساعت دمې جوړولو وروسته یې یوی او بلی خواته کتل او کرار کرار ددرمسال په لور ور روان شو. ددرمسال له دروازو څخه دچراغونو رڼا ښکاریدله هغه داسې احساسوله چې ددرمسال دساتونکیو ویروونکې سترګې یې ځاری.

پر آسمان دوریځو تور ځادر ځای ځای شلیدلی ؤ او ستوری ښکاریدل.

مادهو دونو خواته ورغی او تر تیاره لاندې یې ودرید، ددرمسال زنګونه بند شوی وو ، او دننه چا مذهبی سندره ویله. مادهو د مذهبی سرود الفاظ ښه نه اوریدل ، زړه نا زړه وړاندې ورغی او تر تولو دوروستی ونی وشاته ودرید چې ددرمسال له برنډې نه کوم شل ګامه لرې وه.

په هغوی کی یوه مذهبی سندره ویله، مادهو له هغه سره د سرود الفاظ تکرارول، مذهبی سندره پای ته ورسیده او څلور واړه نمانځونکی بهرته راووتل، مادهو د چراغ په تته رڼا کی هغوی ونه پیژندل بیا هم د دوو تنو په باب دده دا شک ؤ چی هغوی د درمسال پخوانی ساتونکی دی.

یوه یی وویل: پنډت « پیشوا صیب! »

تیاره ده زه به دی کور ته ورسوم او بیرته به راشم.

هغه ځواب ورکړ:

نو بیا به ستا سره تر دی ځایه څوک راځی؟

بل تن وویل:

ښه ده پنډت جی! شنکر له پیریانو ډیر ویریږی زه به در سره ولاړ شم!

پیشوا بیا ځواب ورکړ:

شنکر ویریږی خو زه نه ویریږم، زه یوازی ځم.

تاسو دواړه د جسونت جی خدمت وکړی، پیشوا دا وویل او یوه د ټیټ قد خاوند ته یی اشاره وکړه زیاته یی کړه:

تا ته خو دلته څه زحمت نشته؟

هغه د ټیټ قد خاوند ورته وویل:

نه دلته ماته هیڅ تکلیف نشته.

- بوټ به تر کله پوری تیار شی؟

- بس اوس لږ کار پاتی دی، دوی اونی به ولګیږی.

- ښه نو امن مو غواړم!

دده په ځواب کی دری د نمسکار «احترام» غږونه اوچت شول.

ونی ته ور جو خت شو

پاتی دری کسان ددرمسال په انګړ کی یوه لوری ته پر کتونو پریوتل.

شنکر پوښتنه وکړه:

تا تر اوسه پوری څومره بوتان جوړ کړی دی؟

تیټ قدی سړی ځواب ورکړ:

تر دوو سوو پوری به وی.

–ته د توری دیوی بوت هم جوړولی شی؟

–درام نګر ددرمسال بوت خو ما جوړ کړی دی، راجه پر هغو یو فیل راوباښه.

–فیل! هغه به تا څه کړی وی؟

–هیڅ هم نه، هسی یو مصیبت ؤ، ما مذهبی پیشوا ته ورکړ.

ګوپال وویل:

درام نګر د توری دیوی بوت خو ډیر مشهور دی، ویل کیږی چی هر کال هلته څو تنه قربانی کوی.

–هو کی په لومړی ورځ یی اووه تنه تیټ ذاتی په پښو کی قربان کړل.

شنکر وویل:

تراوسه پوری دلته د توری دیوی درمسال سوړ پروت دی او د تیټ ذاتو نسل دومره زیات شوی دی چی هره ورځ یی یو حلال کړی هم لږ به نشی، خو اوس یی په مخکی هسی د کوم ښاروی قربانی ایښودل کیږی.

د تیټ قد خاوند وویل:

اورېدلي مې دي چې ستاسو سردار د تیټ ذاتو [illegible]؟

چې څنګه پاچا وي همغسې يې سرداران! لوی مذهبي پیشوا څو ځلې دده شکایت پاچا ته یوړ، خو وايي نه وریده.

-نو بیا به دا واکمني تر ډیره پاتې نشي.

- تاسو ته به څه وو وایو، دلته تیټ ذاتي دومره زړور شوي دي چې موږ ترې پزې ته راغلي یو، هغوی په ډنډونو کې لامبي، په سیندونو کې کبان نیسي، او که په لاره چیرته ورسره مخامخ شي نو دا مجال چیرته دي چې ګوښه شي او لاره درکړي موږ پخپله لاره ترې چپوو.

ګوپال وویل:

جسونت صاحب! په دې کې نه دراجه ګناه ده او نه دسردار، دغه سیمه چې موږ ونیوله ډیره موده يې لا نه ده وتلې. په پیل کې له دوی سره سختي وشوه، خو دهغو پایله داشوه چې دغه خلک لرې غرونو ته وختل او زموږ سره به يې جګړه کوله، دپاچا پوځونو ته ډیر زیان واوښت.

مخکیني سردار چې پر دوی ظلم وکړ دومره بري يې ترلاسه نکړ لکه رام داس چې په نرمي کې ترلاسه کړی دی. هغه پخوا له دې چې له دوی سره دغلامانو سلوک وکړي دايي ضروري وبلله چې دوی بغاوت پرېږدي او غلامي ومني.

دسردار رام داس دچلن په سبب اوس دې خلکو دا هیر کړي دي چې دوی زموږ غلامان دي، دوی ورو ورو په خدمتګارانو باندې بدلیږي، خو تر اوسه یوري په دوی کې تر یوه حده دبغاوت روحیه شته. که نن موږ له

یې مړی ورغوځی کړی؟

دتیپو قدخاوند وویل:

ته ښه وایې.

گوپال وپوښتل:

شنکر ویده شوی دی.

دگوپال په خبرو به زیاتره شنکر ته خوب ورغی، هغه په خرېدو راغلی ؤ.

په دی خبرو کی دمادهو دژوند دکتاب یوه نوی پانه‌واوښته، نړی یې په مخ کی دیوه لوی ډنډ په څیر وه چی هلته لویو کبانو وړوکی له کومی تیرول، ده دا احساس کړه چی خلک دخدای درضا ترلاسه کولو پرځای دهغه تر نامه لاندی ددنیا په کمزوریو انسانانو باندی دتل لپاره خپله واکمنی ټینگول غواړی.

هغه خدای چی ټول یې پیدا کړی دی پر یوه مهربانه‌او دبل دښمن نشی کیدای، آیا دهغه وریځی پر ټولو نه‌اوروی؟ دهغه شمال ټولو ته نه رسیږی، دهغه لمر ټولو ته رڼا نه‌ورکوی، او دهغه ځمکه دټولو لپاره خوړی میوی، دانی حاصل نه‌ورکوی؟ خدای بدنه‌دی، هغه‌زموږ دښمن نه‌دی، دغه‌خلک پر تورو او نیزو برسیره دمکر او فریب په خطرناکه وسله سمبال دی، خو موږ څه کولی شو؟ موږ ددوی داسونو او فیلانو مقابله نشو کولی اونه‌دوی ته لاسونه‌ورغځولی شو.

زه به دخدای عبادت کوم دخدای استازی به‌شم.

یوه نابشپړ شوی بوت او دهغو دجوړولو سامان ته څه پاملرنه ونه کړه او درمسال ته ننوت ، دخدای دبوت په مخکی لاس په نامه ودرید ، هغه په خپ غږ ویل:

خدایه! غواړم ستا استازی شم، آیا ته له تیټ ذاتو نه کرکه کوی، آیا تا مونږ پیدا کړی نه یو ؟

خدایه ، خدایه!

مادهو دبوت په پښو کی ور ولوید او په سلګیو شو.

بهر په ونو کی دشپی مرغه « خفاش » دوزرونو ځرپهار مادهو وویراوه او راپورته شو او له دروازی سره غلی ودرید ، ددرمسال دساتونکیو خرهار ددوی پر بی خبری ګواهی ویلّه، مادهو بیرته راوګرځید بوت ته یی وکتل او په خپله لهجه یی وویل:

خدایه! ستا ددرمسال دروازی زما پر مخ بندی دی.

خوزه غواړم ستا نمانځنه وکړم، غواړم ستا استازی شم، که ستا پالونکیو او خدمتګارانو زما لاره نه وای بنده کړی نو هره ورځ به دلته راتلم، تا ته به می شپیلی غږوله ، ستا ستاینه به می کوله او سرود به می درته غږاوه، دلوی ډنډ له پاکو اوبو نه به می دنیلوفر لوی لوی ګلونه راوړل او ستا په پښتو کی به می انبارول.

مادهو چی داوویل څه یی په خیال کی ور وګرځیدل او دخوښی یوه څپه یی په زړه کی راتیره شوه:

ستا لاسو نه چی له غوری ختی نه بوتان جوړولی شی آیا د ډبری نه بوت

لاس یې د بوټ پر بدن را گرځاوه.

بیا یې په زړه کې له ځان سره وویل:

مګر سپینه ږیره! بیا یې له لږ چورت وروسته پخپله ځان ته ځواب ورکړ:

په سیند کې ډیرې دي.

## (۳)

سهار د درمسال په برنډه کې د نابشپړ شوي بوټ تر څنګ د بوټ تورولو ډیر سامان ورک ؤ. تګ بوټ تورونکي اسمان پرسر اخیستی ؤ:

هغه خو تیک مې له ډیلي څخه راوړی ؤ، هغه تر ښځ مې له بنارس نه راوړي وه، پلاني پلاني سامان مې له پلاني پلاني ځای څخه راوړی او اخیستی ؤ. اوس به زه بیا رام نګر ته ځم، دخدای پار دی، دخدای له درمسال نه غلا وګوره!

بل لوري ته، شنکر ګوپال ته او ګو پال شنکر ته بد رد ویل:

او یو پر بل یې تورلګاوه چې دخره غوندې ویده ؤ.

–ستا خریدل د څو نګښې په څیر غږ لري.

بالاخره دواړو پریکړه وکړه چې دشپې دلته هیڅوک نه دی راغلی.

لنډوني بوټ تورونکي غاښونه چیچل پوندي یې جګې کړې په دواړو لاسو یې تندی ته شرق ورکړ ویې ویل:

خامخا څوک راغلی دی، دشپې زما سامان پر ځای ؤ.

که څوک راغلی نه وي نو زما دسامان غله تاسو یاست.

وربخښلي ؤ ؟

ماسپښین مهال په ښار کي مذهبي پیشوا ، شنکر ، ګوپال او ډېره تورونکي وار خطا ولاړ وو .

ډېري تورونکي دخپل له لاسه تللي سامان تر لاسه کولو هڅي کولی ، شنکر دتیټ ذاتو پر خلاف دحکومت دسختو کړو وړو غوښتنه کوله .

مذهبي مشر غوښتل چي دخپل درمسال خدمتګاران له سزا وژغوري ، له رام داس سره دحکومت بدنامي ویره وه .

هغه دتیټ ذاتو په اړه دشنکر له خبرو نه د راپیدا کیدونکیو شکونو او بدګومانیو لري کولو هڅه کوله .

ګوپال تراوسه پوري چوپ ولاړ ؤ ، رام داس تري وپوښتل:

ګوپاله ته څه وایی ؟

ګوپال پر دي پیښه دشنکر او مذهبي پیشوا په څیر خپه نه ؤ .

له درمسال نه غلا بیشکه بدکار ؤ خو ګوپال پردي خوښ ؤ چي بوت جوړوونکی دفیل بخښلو دخبرو په اړه سزا و ګالله .

اوس ده ته له ډېرو تورونکی نه دتیولو کنځلو دبدل اخستو فرصت ؤ هغه ځواب ورکړ:

خدای چي تاسو ته کوم عقل درکړی دی مونږ نشو وررسیدای .

خو زه فکر کوم چي دا څه وشول دخدای پری خوښه وه .

خدای غل هم را استولی شي او دوطن ساتونکی ته هم امر کولی شي چي دده سامان پټ کړي . زما په خیال کوم بهره دار دده سامان ور کړي

چې دا دهغه دروغو سزا وه.

ډبره توږونکې له غوسې نه بې واکه شو ویې ویل:

دروغ ، دروغ ، پلیده ما تاسو ته څه دروغ ویلي دي؟

گوپال ځواب ورکړ:

ودرېږه! زه درته وایم!

ښه مذهبي پیشوا! دده عمر به څومره وي؟

مذهبي پیشوا تیږه توږونکې ته په ځیر وکتل ویې ویل:

دشپیتو کلونو په شاوخوا کې به وي!

ډبره توږونکې په غوسه وویل:

شپیته نه پنځوس کاله، دري میاشتې لاکم.

گوپال له مذهبي مشر نه بله پوښتنه وکړه:

ښه مشره! درام نگر دتورې دیوې درمسال څه وخت جوړ شوې دی؟

هغه ځواب ورکړ:

پر هغو پیرې تیرې شوې دي.

– دبوت یې څومره موده کیږي؟

– هغه هم ډیر پخوانې دی.

– دې وایي چې دتورې دیوې بوت ماجوړ کړې دی.

چې بیا مې په انعام کې یو فیل گټلې دی.

بوت تراشونکې بې قابو شو ، ویې ویل:

دې هسې اوتې بوتي وایي ، چتیات وایي!

رام داس وپوښتل:

شنکره څه خبره وه ؟

په عادي وضع کې شنکر هیڅکله هم دګوپال په ګټه ګواهي نه ورکوله.

خو دده پر زړه دډبرې تورږونکي دکنځلو اغیزه لا پاتې وه .

ځواب یې ورکړ:

بنداره! یوازې دراماننګر دسوري دیوې بوت نه دی، ده خــــو یل چې دهندوستان دټولو لویو درمسالونو بوتان ما جوړ کړي او پاچا هانو او ټولو اکانو دومره فیلان په انعام کې راکړي دي چې اوس مې په کور کې دهغو دټولو لپاره ځای نشته، ما دهندوستان په نامه لویو لویو مذهبي مشرانو ته وربخښلي دي.

اوس دمذهبي مشر وار ؤ چې ویې خندل او ویې ویل:

ماته خو یې یو سیرلې هم نه دی راکړی.

دډبرې تورږونکي پښې پر ځمکه نه لګیدې او له ډیرې غوسې ټول رېږدیده، په لړزیدلي غږ یې وویل:

دا ګناه ده! بې انصافي ده ،زما سامان دې بدماشانو غلا کړی دی، زه به بدل ترې واخلم زه به پاچا ته ورشم!

رام داس له خپل جیبه دری دسرو زرو سکې را وایستلې ډبرې تورږونکي ته یې وروغورځولې او ویې ویل واخله او نور له دې ځایه تښته. موږ ستا په لاس جوړ شوي بوت ته هم اړتیا نه لرو.

تېرې تورږونکي په رېږدیدلیو لاسونو سکې راپورته کړې او بیا ته

چې ددرمسال په لور تلل شنکر گوپال ته وویل:

شاباش بچو! دروغ ویل ستا کار دی، له هغه احمق نه دی ښه شی جوړ کړی.

ماښام گوپال رام داس وروغوښت او چې بیرته هغه له ښاره راستون شو شنکر ته یې له لری چیغې وهلې:

شنکره بچو! سردار ماته غوا رابخښلې ده . په شیدو او کوچو کې یې راسره شریک یې، یوازې دومره وکړه چې واښه به ورته راوړې.

شنکر لاسونه ومروړل.

**(٤)**

ماښام مهال ارجن چې ډوډۍ وخوړه ساوتری ته یې وویل:

تا واوریدل ، تیره شپه چاله درمسال نه دبوت تراش سامان غلا کړی دی.

ساوتری حیرانه شوه ویې ویل:

دخدای له درمسال نه غلا! دومره ستره گناه څوک کولی شي؟

– دا دکوم ټیټ ذاتی کار دی.

دموهنی تندی تریو شو ارجن ته نژدې ورغله او ویې ویل:

پلارجانه دغله درک معلوم نه شو؟

– لورجانی لټون یې روان دی، که پیدا شو نو ډیره لویه سزا به ورکول کیږی.

–څه ډول سزا پلار جانه!

-لیونی! لوړ ذاتې شوک هم له درمسال نه غلا کولای شي!

دا دکوم ټیټ ذاتي کار دی.

موهنی چوپه شوه او ارجن او ساوتری ترلږ ځنده له خبرو وروسته ویده شول، موهنی تر ډیره پوري ویښه وه، هغې ته په وار وار مادهو په خیال کې راتلو او هرځل یې ځانته دا تسلي ورکوله چې نه هغه دا کار نشي کولای، هغه هیڅکله داسې نشي کولای.

خدای دې وکړي چې هغه داسې نه وي کړي، له نیمې شپې وروسته دهغې خیالونه په خوبونو بدل شول، دې په خوب کې لیدل چې دلوی ډنډ پر غاړه له مادهو سره خبرې کوي.

- هغه ورته ویل:

موهنی زه یو ډیر لوی خدای جوړوم، کټ مټ ستا سو دخدای په څیر، ما دډبرو تراشلو سامان پیدا کړ.

او دې ورته ویل:

مادهو دغه سامان غلی کړه، هغوی به تا ونیسي بوبه دې زي او بیا به دې قرباني کړي.

په بوټیو کې دسردار سرتیري راښکاره شول او هغه یې ونیو ورسره بویې تلو، موهنی هغوی ته زاري کولې:

دې پریږدی، هیڅ گناه نه لري. هغوی دتوري دیوی دبوت مخې ته بوتلو، دتوري دیوی دویروونکې شیرې په لیدو دموهني له خولې وړوکې کریږه ووته.

موهنی له ویری لړزیده ځواب یی ورکړ:

- هیڅ نه موری!

-لور جانی که ویریږی راشه له ما سره یو ځای ویده شه.

موهنی بیا ځواب ورکړ:

نه موری اوس سهار کیدونکی دی، زه به دخدای عبادت کوم.

دارجن دکوړ یوه کوټه دنمانځنی او عبادت لپاره وقف وه.

دیوه بوت مخی ته لاس په نامه کیناستله. په خواږه غږ یی څو مذهبی سندری وویلی، بیا یی په دردمنه لهجه دعا وکړه:

خدایه! ته پوهیږی چی هغه بی گناه دی، هغه ته ستا نوم هم معلوم نه ؤ، دا هرڅه هغه ته مورږ وروښودل.

مورږ ددرمسال لاره وروښودله، خدایه! هغه دزړه له اخلاصه ستا سره مینه کوی اوستا سره مینه کول گناه نه ده، آیا تا هغه پیدا کړی نه دی؟ هغه چی په څه ډول ستا په اړه فکر کوی، په کومو لاسونو چی ستا بوتان تراشی. په کومه ژبه چی ستا مذهبی سرود وایی او په کوم زړه چی ستا سره مینه کوی، دا ټول تا جوړ کړی او پیدا کړی دی، دا کله کیدای شی چی ته دخپلو پیدا کړیو انسانانو دمینی ځواب په کرکه ورکړی، بیا دهغه ځیره هم داسی نه ده چی پیدا کونکی یی دی کرکه ورسره وکړای شی.

دموهنی په سترگو کی دمادهو ځیره راوگرځیده، دی دسهار په تته رڼا کی بوت ته وکتل او له مادهو سره یی پرتله کاوه. دمرمرډبری په بی روحه بوت کی له یوه مرموز هیبت نه پرته نور هیڅ نه وو.

او ځليدونكيو ستر گو په تل كې دي ته دژوند يوه په زړه پوري ځلا تر سترگو شوه.

په وار وار دزاريو او دعاگانو په ورانديدبوت مرموزي چوپتيا يې زړه غورځولې ؤ، ددې تودي او توندي ساه گانې په سرو اسويليو بدلې شوې وې خو دمادهو تصور يې په مړو رگونو كې يو نوي خوځښت پيدا كړ.

دې ددغه سپيڅلي بوت له درشل نه لرې په هغو زړه وړونكيو فضاؤ كې الوت كاوه چې هلته او بو څپې وهلې، گلان غوړيدل، وني زنگيدلې، او دشپېلې له سر نه نغمې راوتلې هلته چې ژوند له خپلې تولې رنگينې سره ؤ هلته چې دهري سطحې نه لاندې ژوري وي، داسې ژوري چې غوټې وهونكې كله هم ځان پكې ستومانه نه احساساوه دغه بوت د خپل عظ . او سپيڅلتيا سره سره د يوي ځليدو نكې سپينې ډبرې نه پرته .. ـيڅ نه ؤ، د نمانځونكي په سترگو كې دتندې، په غېږ كې، سوز او په زړه كې يې د درزا او ټكا نو نو له را پيدا كولو څخه بې وسه ؤ.

موهنې په وار وار خپل تيت او پر ک خيالونه سره را ټول كړل او هڅه يې وكړه چې دخداى سپيڅلي بوت دخپلې پاملرنې مركزكړي خو بالاخره يې پرخپله بې وسې اعتراف وكړ هغې دخداى دبوت په پښو كې سر كيښود ويې ويل:

خدايه! ماوبخښه هغه يو تيټ ذاتي دي زما هيڅ خواخوږي ورسره نشته، زه غواړم لرې تري واوسم زه به لوي ډنډ ته هيڅكله هم ولاړه نه شم، كه هغه ته سزا وركړاى شې زه به هيڅكله پري خپه نه شم،

موهنی ربښتيا هم ستاله ماسره هيڅ خواخوږی نشته، که ما دبوت په پښو کی قربان کړی بيا به څه کيږی؟

موهنی وويريده سريی را اوچت کړ دهغه له سترګو اوښکی بهيدلی، سلګی يی وهلی ويی ويل:

خدايه! مادروغ وويل ما دروغ ويل ،زه بی وسه يم، اوهغه بی ګناه دی هغه غواړی يوازی ستا عبادت وکړی که ته ربښتيا خدای يی نو مرسته يی وکړه.

موهنی چی دومره وويل ناڅا په وويريده او جګه شوه ، دهغی زړه احتجاج وکړ ،ربښتيا خدايه! دادی څه وويل؟ ستا دده پرخدای توب کی شک دی؟

موهنی سمدستی ددی پوښتنی ځواب ورنکړای شو لاس په نامه دبوت مخی ته ودريده دسهار درنا په زياتيدو يی سام اوهيبت مخ پر کميدو شو.

ايا دابوت ، داپه لاسوجوړه شوی ډبره خدای کيدای شی ..... آيا داستا غږ اوريدای شی؟ ستا دزړه په راز پوهيدای شی؟.... آيا همدی تړوله نړی پيدا کړی ده؟

موهنی ددی پوښتنو په باب په فکر کولو وويريده ،دډيری انديښنی په حالت کې له کوټی راووته، په انګړکی دآم په ونه کی يوی قمری زړه راښکونکی غاړی کولی ارجن بهرته وتلی ؤ اوساوتری غوا لوشله.

موهنی تر ډيره پوری چوپه وه اوقمری ښکليو غاړو ته يی غوږ نيولی

ساوتري شاته وکتل اوویې ویل:

نن دې چې پلار جان په عبادت ولیدې ډېر خوښ شو.

ستاسرېې چې دخدای په پښو کې ایښې ولید وېې ویل چې زمالور نور هوښیاره شوې ده لورې دشپې دې څه ډول خوب لیده؟

- مورې په یاد مې نه دې خو په څه خبره وېریدم.

دبهرله دروازې شخه رندهیر دوه درې ځلې وروکتل خو چې دموهنې ورپام شو بیا دننه ورغی اوویې ویل:

موهنې دپړانګ بچې ګورې؟

- چیرته دی؟

- زمونږ په کور کې! د شپې یوه ښکاري نیولی ؤ رایې وړ ساوتري وویل:

لورې شیدې وخښه بیا ولاړه شه.

موهنې له رندهیر سره دیوازې خبرو لپاره ناکراره وه، ویې ویل:

زه اوس بیرته راځم مورې!

له کوره چې راووتل موهنې رندهیرته په غمجن نظر وکتل رندهیر دهغې په څېره کې ددې دوضعې له اټکل سره عادې شوې ؤ پوښتنه یې وکړه:

موهنې ته چوپه یې څه خبره ده؟

- رندهیره زه غواړم یوه خبره درته وکړم خپه کیږې خونه؟

کور کی وم.

– رندهیره! که‌غل ونیول شي پلار به‌دي سزا ورکړي؟

– خامخا به سزا ورکوي. ددرمسال غل څوک بخښلی شي؟

موهنی له‌لږ ځنډ چورت وهلو وروسته وویل:

رندهیره! که‌دغه سامان چا ددی لپاره غلا کړی وی چی دخدای بوت تري جوړ کړي چی عبادت یی وکړي بیا به هم سزا ورکول کیږي؟

رندهیر حیران‌شوویی ویل:

موهنا! ته څه غواړي راته‌ووایی؟

موهنی وویل:

رندهیره ستا به‌یاد وی چی مادهود خدای دبوت جوړولو سره مینه درلوده!

رند هیر له‌ژورو سوچونو سره موهنی ته‌وکتل هغی بیا وویل:

رندهیره! که په هغه‌ورځ موږ دی درمسال ته‌نه وای راوستی نو خبره به‌تردی ځایه پوري نه‌رسیده.

اوس دده ژغورل زموږ پر غاړه دی که چاله‌هغه سره دغه سامان ولید وبه‌نیول شي خو ته‌دي ژغورلی شي ته‌لوي ډنډ ته ورشه تري وپوښته چی که‌هغه‌سامان‌ده غلا کړی وی چیرته یی دی غلی کړی.

که‌درندهیر له‌یوه تیټ ذاتی سره څه خواخوږي هم‌نه‌وای دموهنی اشاره ورته دحکم په معنی وه هغه‌موهنی ته‌ډاډ ورکړ وی ویل:

زه همدا اوس ورځم کورته

نه، چې ته له لوی ډنډه راوګرځې بیا مې کورته درسره بوزه.

**(۵)**

شانتا دلوی ډنډ پرغاړه پریوه ډبره ناسته وه دنیلو فرګلانو پاڼې یې شکولې اویوه یوه یې ډنډته ورغورځولې ، شاوخوا ورته وزې اوپسونه څریدل، چې دونوله منځه یې داس دپښو ترپهار واورید وزې اومیږې سره ټکې شوې همغه لورې ته یې مخونه واړول او په خپله ژبه یې یو بل ته څه سره ویل:

شانتا هم جګه شوه ودریده ، درندهیر آس دونو په منځ کې را ښکاره شو اووزې اومیږې وترهیدې یوې اوبلې خوا ته سره تیت شوې، سپاره پرخپل تیول ځواک داس جلب راکش کړ، آس په دریدو دریدو کې د اوبو څنډې ته راورسید، شانتا وویریده اوشاته ولاړه پښه یې له ډبرې سره ونښته اوشاپرتخته په اوبو کې ولویده.

رندهیر له آس څخه پلی شو اوپه اوبو کې یې ورټوپ کړل، شانتا یې له مټ څخه را ونیوه راجګه یې کړه ویې ویل: بخښنه غواړم دغه آس ډیر یاغی دی، زه لومړی ځل پرې سپور شوم ته خو به خوږ شوې نه وې؟

شانتا درندهیر په څیر نیک خویه ځوان ځان ته دومره نژدې تصور هم نه کاوه ددې په سپین اوسره مخ کې څو رنګه څپې واوښتې ، رندهیر ته یې څو ځلې سترګې تیټې کړې اوبیا به یې ورته وکتل ، د زړه درزا اوساه ګانې به یې کله توندې اوکله کراري شوې چې له اوبو راووتل رندهیر یې مټ پرېښود اوبیا یې تسلي وکړه ویې ویل:

کې ځان واچاوه رندهير پريوه تيټ ذاتي لاسونه‌لګولي وو، دهغې موسکۍ اونه هيريدونکې ښيره يې ليدلې وه، دهغې غږيي دغوږونو له پردونه دزړه تل ته کوز شوی ؤ بيا هم‌ده دپښيمانۍ پرځای دخپل زړه درزا احساسوله.

شانتا ده ته‌د ځواب پرځای چوپه وه او ورته کتل يې، دی دلومړي ځل لپاره په خپل‌نامه کې ښيګنې احساس کړی ،دی په وار وا د رندهير له‌خولې دخپل نامه اوريدل غوښتل.

رندهير بيا وويل:

شانتا! ستا نوم شانتا دی که‌نه!

شانتا دهوپه‌دود سروخوځاوه.

- ګوره شانتا! زه ديوه ضروري کار لپاره را غلی يم.

ستا ورور چيرته دی؟

شانتا ځواب ورکړ:

هغه.... خو هغه ويلي وو چې چا ته مې مه‌ورښيي.

شانتا چې دا وويل بيا يې بيله‌دې چې اراده وکړي ښې لاس ګنيو ونوته يې وکتل.

- هغه‌داهم ورته‌وويل چې که‌زه‌راشم هم دي‌به‌نه‌را ښيي؟

- نه تا اومنوهنې خو ډير يادوي.

- نو ته دهغه درک نه‌را کوې چې ،چيرته‌دی؟

شانتا په‌سوچونو کې شوه.

شانتا وموسکل اوبیا یی هغو گنوونو ته وکتل ویی ویل:

نه ته نه یی خبر چی هغه چیرته دی.

رندهیر وویل:

هغه په هغو ونو کی پټ شوی دی.

شانتا په کړس کړس وخندل.

– ته دلته څه کوی؟

– بدهو کاکا ښکار ته تللی دی، نن زه او ورور می وزی څروو، ته به چاته نه وایی ورور می په هغو ونو کی ډیری توری زه بورشم را به یی ولم.

– نه زه له تاسره ورځم.

رندهیر آس پر یوه ونه و تاړه اوله شانتا سره دمادهو په لور ورغی، په گڼو ونو کی یو پریل کی ننو تلیو ځانگو اولاندی را زغورن شویو بوټو او وښود وړاندی تلو لاره ستونزمنه کړی وه.

رندهیر اوشانتا له سخت زیار وروسته څه لاره ووهله.

رندهیر وپوښتل:

څومره نوره لاره باید ولاړ شو؟

– څومره چی را غلی یو لږ ترهغو زیاته.

شانتا بیا زیاته کړه:

دلته ماران ډیر دی، نن می ورور یو تور مار وواژه. چی هلته ورسیدو زه به یی دروښیم، ما پخپله هم څو ماران وژلی دی.

يو لرگی رامات کړ ويي ويل:

راځه اوس څه خطر نشته.

شانتا وويل:

زه خو مار په لاس کی اخلم بيا يي وژنم، دادروغ وو خو که نن مار مخی ته ورته راغلی وای شانتا به رندهير ته دخپلی زړورتيا دورښودلو او يا دهغه دساتنی لپاره دهغه په نيولو کی هم زړه نازړه شوی نه وای . يوځای يی دځو ډبرو په منځ کی يو مړ مارولید دوی لږ څنډ ورته ودريدل اوپرډبره يی دترښځی دگوزارونو غږ و نه و اوريدل شانتا وويل:

بس نور راورسيدو.

لږ نور چی وړاندی ولاړل دترښځی ټک ، ټک ناڅاپی بند شو ، شانتا رندهير ته وکتل اوويي ويل:

ورور به ويروو ته شور مه کوه.

شانتا په احتياط دونو څانگی يوی اوبلی خوا ته کړی او وړاندی تله رندهير ددی پرسادگی خندل اوله شا ورپسی ؤ.

ديوی لويی ونی لاندی شانتاودريده او حيرانه شوه او يوی اوبلی خوا ته يی وکتل، چادونی په څنگ کی په وښو کی دکيناستلو لپاره ځای جوړ کړی ؤ ،د تورل شويو ډبرو څو ټوټی خوری وری پرتی وی . شانتا په وارخطا يی رندهير ته اوهغه په انديښنه دی ته وکتل.

بالاخره شانتا وويل:

بیا خونو شخه رابنکته او ددوی په مخ کی ودرید.

هغه زړه نازړه پوښتنه وکړه:

موهنی هم راغلی وه؟

دمادهو پرخوله دموهنی نوم رندهیر ته ښه ښکاره نشو ، ویی ویل:

موهنی بهدلته دخه لپاره راتله؟

مادهو وویل:

تاسو چیراغلی پرما مو ډیر احسان وکړ، زما داتمه نهوه چی تاسو به زما پهلتهپسی تردی ځایه راځی.

رندهیر وویل:

مادهو زه دیوی ضروری خبری لپاره راغلی یم.

- ووایه!

- تادلتهخه کول؟

مادهو پریشانهشو شانتاتهیی وکتل، دهغی ویریدلو سترگو داگواهی ورکوله چیرازیی رندهیر تهویلی دی.

رندهیر تسلی ورکړه ویی ویل:

ویریږه مه، تاچی څهکول زه پری خبریم.

تابوت توږ لو اوډیرو توږ لوسامان دی له درمسال نهراوړی دی.

مادهو ځواب ورکړ:

رندهیره زه تا ته دروغ نهوایم خو ویریږم چیرا نه خپهنهشی.

رندهیر وویل:

- زه پوهيږم ځکه خو دلته پټ کار کوم.

مادهو وني ته نژدې يوه بيلچه لرې کړه اوويې ويل:

داوګوره ! ماچې ستاسو دپښو غږ واوريد داهرڅه مې غلي کړل.

رندهير د بيلچې دلرې کيدو نه وروسته وليدل چې لاندې دډبرې تورلوسامان ايښې دی.ويې ويل:

ته ډېر هوښياريې موهنې دتاپه باب اندېښنه درلوده، هغې زه راواستولم.

مادهو وويل:

رندهيره! زه حيران يم چې ته او موهنې دښار له نورو خلکو سره څومره توپير لرې زه به ستا دنيکې بدل هيڅکله درنکړای شم.

رندهير ځواب ورکړ:

موږ هم حيران يو چې تاسو دواړه خو په ښه اوخيره کې ښيښې ذاتو ته ورته نه ياست.

درندهير له دې خبرې سره مادهو خپه شو اوسر يې ښکته واچاوه خودشانتا سترګې له خوښې نه ځليدې.

رندهير وويل:

ښه نوزه اوس بيرته ځم راباندې ناوخته کيږي.

- راځه دلو ډنډ ترغاړې زه درسره ځم ، بيا يې سامان بيرته دبيلچې نه لاندې پټ کړ او دشانتا اورندهير نه مخکې شو.

دلوي ډنډ پرغاړه چې مادهو آس وليدو يې پوښتل:

مادهو وویل:

رندهیره په ډنډ کې نه لامبې؟

درندهیر کورته دتلو بیره وه خو چې شانتا هلته وه دمادهو غوښتنه ورته دمنلو وړ وه، لږ څنډ وروسته لوڅ ذاتي او تیټ ذاتي په یوه ډنډ کې لنبیدل، سره له دې چې رندهیر په ښار کې یو غوره لامبو زن ؤ خو هغه ته بیا مادهو په دې کمال کې ترڅان اوچت ښکاریده.

له ډنډه چې راوتل دواړو نیلو فرګلان راوشکول رندهیر خپل ګلونه شانتا ته ونیول، مادهو بیا رندهیر ته ونیول اوویې ویل:

دا درسره واخله موهني ته یې ورکړه، دهغې دغه ګلان ډېر خوښ دي.

دمادهو له خولې چې رندهیر بیا دموهني نوم واورید تریخوالی یې احساس کړ، خو دشانتا په مخ کې هغه دمادهو دګلانو له اخیستلو نه انکار ونکړای شو.

(٦)

رندهیر اس زغلاوه اوښارته ننوت، موهني له خپل کور نه بهر دیوې ونې لاندې دهغه په انتظار ولاړه وه، هغه چې نژدې ورغی له اس نه پلی شو اودموهني دخورولو په نیت یې هغې ته په غمجن نظر وکتل دموهني رنګ سمدستي تک زیړ شو.

په ژړه غونې غږیې ویوښتل:

رندهیره! څه خبره ده؟

- موهني ډېر بدکار وشو، هغه ونیول شو.

دموهنی پەسترگو کی اوښکی وځلیدی.

رندهیر کرس کرس پەخندا شو او موهنی سرترپایه عذر شوه او هغه ته یی وویل:

رندهیره! دخدای پەروی توکی مه کوه رښتیا ووایه تاهغه ولید؟

- هو کی! تەدهغه غم مه کوه، هیڅ خطرورته نشتەراغه کورته!

- ته خوراته ووایه هلته څەوو؟

رندهیرتوله کیسه تیره کړه بیا یی گلان ورتەونیول ویی ویل واخله دادی گلان! موهنی دهغەلەلاسه گلان واخستل ،رندهیر لەشرار ته پەدکی موسکاورته وکتل ویی ویل: موهنی تەناولی شوی داگلان مادهورا شکولی وو. موهنی پەموسکا ځواب ورکړ: ماته څه معلومه ده چی چاشکولی دی، خو گناه یی دراوړنکی او ماته راکوونکی پرسرده.

# بدهو اوشنکر

نژدی ترڅلورو میاشتوپوری کنول اوبدهو دمادهو له مشغولتیاؤ ناخبره وو، دیخنی په موسم کی دلوی ډنډپرهغه بله غاړه دمشغولتیا اوسات تیری هیڅ شی نه وو، پرغاړه واښه وچ شوی وو، دونو پاڼی رژیدلی وی اودنیلو فرګلان خو داسی ورک وو چی تابه ویل دلته به هیڅکله هم نه وو خو مادهو به دورځی یوځل هلته خامخا تلو.

بدهو دخپلی ساد ،ګی خلوص اوایثار په سبب په شاوخوا کلیو کی په خلکو کی ډیر عزت ترلاسه کړی ؤ، دی به له هغوی سره ښکارته تلونو هغوی به تر خپله وسه دسیند په یخواوبو کی له ورکوزیدو نه ایسار ولو اودخپل ښکار دویش په وخت به یی ده ته له نورو نه زیاته برخه بیلوله ددوی په جګړو کی دبدهو پریکړه وروستی بلل کیده.

دښکار په وخت کی به دبدهو په غیر حاضری کی وزی او میږی پوول د شانتااو مادهو پرغاړه وو او مادهو به بیا دډبری تورلولپاره تپوله ورځ فرصت درلود، خوکله کله به هغه بدهو دمیږو پوولواودکبانو نیولو لپاره ورسره بوتلو ،بدهو په خپل ژوند کی نه غوښتل چی دمادهو پرسرڅه ذمه واری وروتپی خو غوښتل یی چی هغه یوښه شپون اوغوره ښکاری

په‌غږولو کی بدهو دهغه پر کمال اعتراف کړی ؤ، خودهغه داگیله وه چی مادهو دکبانوپه‌نیولو اورمی څرولو کی زرستومانه‌شی اوتری راتښتی.

یو ماښام یی کنول ته‌وویل:

خوری! دمادهو بهرزړه هیڅ نه‌لګیږی آخر دی په‌کور کی کری ورځ څه کوی؟

کنول حیرا نه‌شوه ځواب یی ورکړ:

کورته خوهغه له‌ماښام نه‌مخکی نه‌راځی کومه‌ورځ چی ته‌له‌کوره وزی دی هم له‌سهاره تر ماښامه چیرته‌ورک وی.

- نو هغه چیرته‌ځی؟

- زه تل‌هغه دلوی ډنډ لوری ته په‌تلوراتلو وینم، کله کله شانتا هم ورسره ورکه‌وی.

شانتا! تاسو دواړه چیرته درومی؟

شانتا ځواب‌ورکړ! هیڅیری هم نه، دلوی ډنډ پرغاړه دبتویوه‌جوړه اوسیږی‌مونږ دهغوی لیدو ته‌ورځو. په‌دی څنډ کی مادهو راورسید او بدهو چی‌ولید ورته‌ویی ویل:

څنگه بچو دبتوجوړه دی ولیدله اورا غلی؟

مادهو اندیښمن شو ځواب یی ورکړ:

دبتو جوړه! چیرته ده؟

- ته‌له کومه ځایه را غلی؟

- کاکا! هلته مې شپېلۍ غږوله، مايوه نوې نغمه زده کړې ده درته وايې وروم.

شانتا په بيړه ورته وويل:

واوروه وروره!

مادهو پرشپېلۍ شونډې کيښودې اويوې دردوونکې نغمې يې د بدهو غوسه په مينه بدله کړه، بيا هم دهغه زړه ګواهي ورکوله چې مادهوځه خبره ترې پټوي دشپې يې دويده کيدو پروخت مادهوته وويل:

مادهو! زه سهاروختي ښکارته ځم ته مېږې درسره سنبال کړه.

سهار چې مادهو دبدهو کټ تش وليد خوښ شو.

شانتا يې راوېښه کړه ورته ويې ويل:

شانتا! مور چې شيدې ولوشلې مېږې اووزې دډنډغاړې ته درسره راوله، زه به همالته يم ، شانتا غلې سرورته وخوځاوه اومادهو په خوښۍ د لوې ډنډ په لور مخه وکړه، دډيرو ګردونو په سبب ځوګامه وړاندې ستر ګوځه نه ليدل، دلوې ډنډ غاړې ته چې مادهو ورسيد ځلورو لوريو ته يې وکتل اوچې ډاډه شو په ګڼو ونو کې ننوت، ديخنۍ په موسم کې دده دهدف ځای ته لاره ډيره سخته نه وه، وچوپاڼواو مراوو ځانګو يې مخه نشواې نيولې، مادهو په تلوتلوکې شاته ځه کړپااحساس کړه او وار خطا شو يوې او بلې خوا ته يې وکتل چې ځه خوځنده شی يې ترسترګو نه شول پرخپل وهم يې وخندل اووړاندې ولاړ.

شوی وای، دوړو کی څیری انسانی خط اوخال ډیره غوره نمونه‌وه ، په سترګو کی یی دمرموزهیبت پرڅای ، درحم، مینی اوبخښنی لاڤانی ځلکاوه، مادهو یو سامان راپور ته کړ اود زیړو برخو په ګرولو اوښویو لوبوخت شو.

دونوله څانګو نه دپرخی ځاځکی ورتوی شول خو مادهو دخپل شاوخوا نه ناخبره په خپل کاربوخت ؤ لږوروسته یی په درمسال کی زده کړی مذهبی سرود پیل کړ، دهغه غږ ورو ورو اوچت شو.

ناڅاپه یی مادهو، مادهو! غږ واورید اوسترګی یی پورته کړی اوبیاهک حیران ودرید په مخکی یی بدهو ولاړ ؤ.

ده په ویریدلی غږ وویل:

کاکا ته ښکارته نه یی تللی ؟

بدهو په یوه بله نړی کی ؤ، دهغه ټول حواس په سترګو کی را ټول شوی وو او هغه بوت ته یی کتل.

مادهو وویریده بیا یی وویل:

کاکا دادخدای بوت دی ماجوړ کړی دی. . .

کاکا ته څه شوی ؟

پربدهو دی خبر وهیڅ اغیزه ونه کړه، دی دیوه داسی کمره په څیر پرځای ولاړؤ چی داوبو دناکراره څپودڅپیړو ځواب دحقارت نه ډکی چوپتیا نه پرته بل هیڅ نه ؤ، مادهو ورجګ شو وړاندی ورغی او بدهو

بدهو په لاس مادهو له مخی یوی خواته کړ او دبرښنا په څیر ګړندی ورغی ترښځ یی اوچته کړه اودبوت دماتولو هڅه یی وکړه خومادهو په یوه لاس دهغه مټ او په بل یی ترښځ ونیوله اوویی ویل:

کاکا. کاکا!

له څو شیبو کشمکش وروسته مادهو له بدهو نه ترښځ واخستله اودی یی شاته ټیل واهه بدهو دلومړی ځل لپاره خپل بوډاتوب اودمادهو ځوانی احساس کړه.

کله یی بوت اوکله مادهو ته وکتل، داسی یی ګڼله لکه دواړه چی ورپوری خاندی ،دی چی هرڅومره داسی څوک ؤ چی پرماته یی اعتراف نه کاوه خو په مخکی یی یو داسی ځوان ؤ چی دسکدیو وینه یی په رګونو کی چلیده.

اودا داسی وینه نه وه چی دبدهو په زړه کی دبل شوی اور لپاره داوبو کار ورنکړی. دهغه په سترګو کی داور سپرغی په اوښکو بدلی شولی او په زړه غونی غږ یی وویل:

بچیه ته اوس له مانه ځواکمن شوی یی، ستا پوهول نور زما په وس کی نه دی له دی خبرو سره دبدهو په سترګو داوښکو هغه څپی چی تراوسه یی دپټولو اوتم کولو هڅه کوله وبهیدی.

دمادهو زړه پخوا پښیمانی ځپلو ددی ننداری تاب یی رانه وړ بی اختیاره ورغی اودبدهو په پښو کی ورولویدو ویی ویل:

زما زویه! زما مادهو! زه نن ډیر خوښ یم چې ستا په مټو کې دومره زور وینم. ستاهغه ورځې په یاددي چې په وږوکیو خپږو به دې پر مخ وهلم اومابه ستا لاسونه ښکلول، ته ماته اوس هم هماغه مادهو یې.

بدهو داوویل اودمادهو پر مټو یې لاسونه را تیر کړل، مادهو خپلې اوښلنې سترګې ورپورته کړې بدهو ته دهغه په څیره کې دغم تت سیوری هم دروند ؤ، هغه پر خپلو غمجنو شونډو دموسکا غوړو لوځه وکړه ویې ویل:

بچیه! ته به ګومان کوې چې زه ستا دښمن یم خودا کله کیدای شي چې زه دسکدیو زوی وینم چې ځان اورته غورځوي خوزه چوپ پاتې شم.

- کاکا ماهیڅ بدکار نه دی کړی مابوت جوړ کړی دی.

دهغه خدای بوت چې مونږ تول یې پیدا کړي یو هغه چې ځمکه اوآسمان یې پیدا کړی دی.

بدهو وویل:

راموهم داسې خبرې کولې هغه هم یو بوت جوړ کړی ؤ. خوله هغه سره دحکومت هوس ؤ ،هغه غوښتل دختمو له بوت نه دام جوړ کړي اوانسانان پکې ښکار کړي.

غوښتل یې خلک له بوت نه و ویروي اوخپل غلامان ترې جوړ کړي، هغه له دیو تاګانو څخه هماغسې کار اخستل غوښتل لکه لوړ ذاتې یې چې دټیټ ذاتو د حقوقو دغصبولو لپاره کوي ،دهغه لومړنی ښکار

زما خداى دلوړذاتو خداى نه دى چى له چاسره مينه اوله چانه کرکه کوى، زه خداى هغه ذات گڼم چى ټولو ته په يوه سترگه گورى، چى دهغه جوړ شوى لمر اوسپوږمى دټولو کورونو ته يو ډول وړانگى او تودوخه ورکوى ، چى رااستول شوى وريځى يى پرهر فصل اورى، چى دهغه په امر چليدونکى هوا موږ ټولو ته ساه راکوى، ځمکه يى دهرچا لپاره پنبه اوميوى پيدا کوى له هر چاسره مينه اوعدالت کوى.
ايا دازموږ ذمه وارى نه ده چى دداسى خداى بوت جوړکړو اونمانځنه يى وکړو!

- مگرزه نه پوهيږم چى دډبرى دغه بى روحه ټوټه چى ترپرون پورى داهم معلومه نه وه چى چيرته پرته وه نن ستا دترښځى په گوزارونو ولى ددى وړ شوه چى موږ يى عبادت وکړو ، ته پخپله وايى چى خداى هغه دى چى لمر اوسپوږمى يى پيدا کړى دى اوس ته دا وايه چى چادغه شيان بيدا کړى دى هغه بايد څنگه وى؟
ايا ددى توږل شوى ډبرى له هغه سره څه نسبت اوتړاو کيداى شى؟

مادهو ځواب ورکړ:

کاکا! داخو دهغه بوت دى، زه کله وايم چى داخداى دى ترڅو دهغه کومه بنه زموږ په مخکى نه وى موږ يى نمانځنه څه ډول کولاى شو؟

- زويه! زه همدغه درته وايم چى دغه شکل چى تا جوړ کړى دى دخداى بنه نشى کيداى، ستا خپله څيره تردى ډيره غوره اوښه ده اوبياکه دا

تول تیږي توږونکي کولای شي دلمر اوسپوږمۍ په څیر کوم شي جوړ کړای شي؟

لمر اوسپوږمۍ خوله دې ځمکي نه لرې دي، تههره ورځ دختیځ لوړ لوړ غرونه وینی چې پرڅو کویی ۱۲ میاشتی واوري ځلیږي ، چې په لمن کی یې شرشري او خوږونه بهیږي ، ددې غرونو نه لوړ بل غردی چې څوک یې له اسمان سره لګیږي، که ته هلته ولاړ شي نو دابه احساس کړې چې څوکه تراشلي ډبرې (بوتان) خدای ګڼي دا پرهغه ملنډې وهل دي . کهستا داګومان وي چې خدای دیوه داسي ځواک نوم دی چې دنړې هرڅه یې پیدا کړي دي نو په مینه یې نمانځنه اوعبادت وکړه ، هیڅوک تانشي منعهکولای ستا پلار هم یوستراوعادل ذات مانه اونمانځنه یې کوله، خوزه وایم چې کـه ستـا پهزړه کې ددې ډول ډول شیانو په لیدو دخدای د عبادت تلوسه نهرا پیدا کیږي نو په خپلو لاسو تراشلیو بوتانو نه بهڅه ترلاسه کړای شي؟

**(۲)**

دبدهوله دې خبرو نهوروستهمادهو داسي احساس کړه چې دیوه درانه خوب نهرا وینې شوی وي. دساده زړې شپانههرې خبرې دده پرزړه دنشتر اوغشی کار کاوه، د بوت تراشلي نقش اوکرښې یې ترنظره ورکیدلي، او په تصور کې یې دسیند پرغاړه یوه پرتهډبره لیدله چې پیړې پیړې دخدای دسیڅلي بوت دجوړېدو لپاره دکومې دېرې تورونکي دمې ...

وی؟ آیا ددی تراشلیو دبرو له هغه ستر ځواک سره څه تړاو اونسبت کیدای شی چی ته یی پیدا کړی یی؟

داخبره دبدهو په خیال اوخاطر کی هم نه وه چی دده د وینا هر لفظ دمادهو دخیالونو نړی گډه وډه کوی. هغه دمادهو چوپتیا دده ضد او شله توب گانه خپه شو ویی ویل:

مادهو زویه! زه پوهیږم چی زما دخبرو پرتاهیڅ اغیزه نشته، زه تانه منع کوم خو ته داکار دلته په اوسیدو نشی کولی، موږ باید دیرزر داسیمه پریږدو، ښایی ته خبر نه وی چی لوړذاتی تیټ ذاتو ته ددی کار اجازه نه ورکوی.

کهچاته معلومه شوه نوستا سزا به مرگ وی.

مادهو ځواب ورکړ:

کاکا! ماته معلومه نه وه چی ته دخدای په باب دومره خبریی خو مانه غوښتل چی چاته دوکه ورکړم، بلکی پخپله په یوه دوکه کی راگیروم، تازماسترگی راخلاصی کړی دډیرو بوت یوازی ترهغه مهاله ماته خدای ترسترگو کیده چی سترگی می پټی وی. نن زه دسترگو پرغړولو دا احساسوم چی هغه زموږ له نظرونو ډیر لری دی.

موږ یوازی دهغه دجوړو شویو شیانو څخه دهغه دعظمت اټکل کولای شو، پخپلو لاسودتراشلیو بوتانو څیری دهغه څیری ته ورته نشو جوړولی، هغه په هر ښکلی شی کی شته دی.

دیدهو زده له خوښی په تو یږ ... هغه یو ځل بیا ور وړاندی شو او

-مگر کاکا! رښتیا ووایه ته خدای منی؟

بدهو ځواب ورکړ:

زه یو داسی ځواک منم چی دځمکی او اسمان هر شی یی پیدا کړی دی، چی دهغه له رضا پرته هیڅ کار نشی کیدای، چی موږ ته له یو بل سره دمینی درس راکوی، پاتی شوه خبره ددیوتا گانو او بوتانو، زما له هغو سره هیڅ کار نشته.

دا زموږ ددښمنانو دژبی لفظونه دی چی په دی نومونو موږ په دامونو کی راښکیلوی. که رښتیا رانه پوښتی نو زما له دی نه کرکه ده.

مادهو موسکی شو، ویی ویل:

کاکا! ماته دا نه وه معلومه چی ته په دومره شیانو پوهیږی.

بدهو وویل:

سکدیو هم زه ناپوه گڼلم، خو دهغه په ژوند کی ماته ددی اړتیا نه وه چی ځان هوښیار کړم، چی کله به هغه زما په لاره کی کوم ازغی لیده ماته به پرهغو ورتلل مزه راکوله او له دومره بوج سره زه په هر ډول سمو او کږو لارو تلای شوای. خو اوس زه دځان لپاره نه بلکی ستا په خاطر په لاره کی پام کوم او بیا گام اخلم. زه نا خبره وم خو دسکدیو مرگ دی ته اړ کړم چی فکر وکړم.

زه زړه ور وم خو ستاسو دساتنی ذمه واری ډارن کړی یم.

کاشکی نن سکدیو ژوندی وای او دغه ناپوه بدهو دمیږو پوولو، پرونو

مادهو پر ځمکه پرته تر ښځ راواخیسته او بدهو ته یې ور وړاندې کړه ،ویې ویل:

کاکا! واخله دغه بوټ دې پخپلو لاسو مات کړه ، زه وعده کوم چې بیا به ستا له خوښې پرته هیڅ نه کوم.

بدهو تر ښځ واخسته له څه فکر کولو وروسته بوټ ته ورنژدې شو ، دماتولو په نیت یې دوه ځله لاس اوچت کړ ، خو تر بوټ پورې له رارسیدو وړاندې به یې لاس پخپله ودرید ، بیا یې مادهو ته وکتل ویې ویل:

مادهو! تا به ددې پرتر اشلو ډیرې ورځې لګولې وي!

-هو کې کاکا .

-زه دا نشم ماتولی. راځه دا چیرته وغورځوه.

- چیرته یې وغورځوم؟

- په لوی ډنډ کې ، مګر اوس به دې څوک ووینې.

-کاکا ما ښام به یې وغورځوم، راځه اوس کورته ځو.

مادهو بوټ راواخیست او دونې لاندې یې کېښود په وچو پاڼو کې یې پټ کړ بیا دواړه کورته روان شول.

(۳)

سبا ته شنکر چې سهار له خپلې کوټې نه راووت ددرمسال ددروازې په مخه کې یې یو ښکلی بوټ ولید ، بلې کوټې ته ورغی او دګوپال دراویښولو پرځای یې ژوندی دی وی خدای! ناری وهلې او نیغ یې دښار لاره ونیوه. ګوپال په ناوخته راویښیدو عادت ؤ خو شنکر ویریده چې که نن

ترشا راکتل او لا به ګرندی شو، تر ښاره پورې چې رسیده سره له دې چې ډېره یخنی وه پر ده خولې راماتې وې.

له ښار نه بهر څو تنو دی راایسار کړ او دوارخطایی پوښتنه یې ترې وکړه خو ده غوښتل د دغه ګران بیه شي لومړی خبر د ښار دسردار غوږ و ته پخپله ورسوي. ځکه خو یې هر پوښتونکي ته دداډ من ځواب ورکولو پر ځای ورانده ځان ورساوه. ددې نتیجه دا شوه چې ډېرو کسانو په ده پسې منډې وهلې او چیغې یې وهلې:

شنکره ودرېږه څه خبره ده؟!

چې ښار ته ننوت مخامخ یې رندهیر ولیدچې را روان دی.

دخلکو چیغو او کوکارو دهغه پام شنکر ته وراړولی ؤ.

هغه هم غږ پرې وکړ:

شنکره ودرېږه!

خو شنکر ځان بلې کوڅې ته وواهه او غوښتل یې لاره بدله کړي، رندهیر دده پرډې کار هم وخندل او هم غوسه ورغله په منډه ورغی شنکر یې تر مټ ونیو او ویې خوځاوه، ورته ویې ویل:

شنکره څه خبره ده! غلا خو به دې نه وي کړې، ولې ټول ښار درپسې دی؟

شنکر چې ډېره بده ساه یې سوځیدلې وه او سیلیده ترلږ ځنډه یې هیڅ خبره تر خوله نه راوتله بیایې وویل:

دخدای لپاره ماپرېږده چې ستا پلار جان ته ورشم.

رندهیر ځواب ورکړ:

کاوه.

شنکر وار خطا شو شاوخوا ته یې وکتل او په مایوسې یې ځواب ورکړ:

ما په درمسال کې دخدای نوی بوت ولید، چې دیوتا پخپله جوړ کړی او دشپې مهال یې هلته ایښی ؤ.

رندهیر دشنکر مټ پرېښود، خو اوس دنورو وار ؤ.

درندهیر له لاسو چې ووت اوس څو نورو راګیر کړ او څو ژبو په یوه وخت ډول ډول پوښتنې ترې کولې.

ښه شنکره! هغه څه ډول بوت دی، د ډبرې دی که داوسپنې، دسرو زرو به وي! څومره لوی دی او تا څه وخت لیدلی...

شنکر غوښتل دوی ته لنډ لنډ ځوابونه ورکړي او ځان ترې خلاص کړي، خو پردې پوه شو چې دخلکو دتسلۍ نه پرته یې ترې خلاصیدل ګران دی.

له شنکر نه چې چا پوښتنې کړې وې هغوی ددرمسال په لور مخه کړه، خو تر هغوی نور زیات لا هلته وو، ځکه خو شنکر څو څو ځلې مجبور شو خپلې خبرې تکرار کړي، په دې کې یې ولیدل چې ګوپال بې دریغه منډې وهي او را روان دی.

ده دخلکو نه دځان ژغورلو وروستې هڅه وکړه خو بې ګټې وه.

ګوپال چې نژدې شو خلکو غوښتل چې هغه هم راایسار کړي، خو هغه پر خپلو مزیو تو متو خلک یوې او بلې خواته کړل او وړاندې تیر شو.

شنکر دګنې ګوڼې نه هغه مهال خلاص شو چې ټول خلک یو یو ددرمسال په لور روان شول. دنارینه نه وروسته دښځو نوبت ؤ. خوښځې دداسې ... ته نه ګوري، ځکه دوی تر ډېره دشنکر لاره ډب نکړای

دسردار او مذهبي پیشوا مانیو ته چې ورغی شنکر پوه شو چې هغوی ته گوپال وختي دا خبر رسولی دی او هغوی درمسال لوری ته روان شوی دی.

شنکر مایوس شو او بیرته راوگرځید، اوس ده غوښتل چې ددرمسال په لور تلونکې ښځې او نارینه بیا ده ته پام ور واړوي او په هماغه ناکراري له ده نه پوښتنې وکړي خو ډیر زر داورته ثرگنده شوه چې دی اوس چا ته نوی معلومات نشي ورکولی، چا پر دی اعتراف هم نه کاوه چې ښار ته تر تولو لومړی دغه خبر شنکر راوړ، هر سړی شنکر ته داسې ورښودل چې دنوی بوت په باب تر ده ډیر معلومات لري.

لږ وړاندې یې په یوه لویه غونډه کې رام داس، مذهبي مشر او گوپال ولیدل، دی پرستوماني برسیره په منډه ورغی او په غونډه کې ورشریک شو، خو چې درام داس سترگې پرې ولگیدې تری ویې پوښتل:

شنکره! تا هم هغه بوت لیدلی دی؟

شنکر پردې پوښتنه داسې احساس کړه لکه چا چې دیخو اوبو منگی پرې ورتش کړی وي، ده په غمجنه لهجه ځواب ورکړ:

باداره! ما له لمر ختو نه ډیر وړاندې دغه بوت لیدلی ؤ.

ډیر تا هغه ددرمسال په دروازه کې پرینښی ؤ.

دشنکر پر مظلومیت دزیاتو لو لپاره گوپال وویل:

باداره! ما خو بوت ددرمسال دننه لیدلی ؤ، اوس ښایي بهرته راوتلی وي!

مذهبي مشر وویل:

زما پر شنکر باور نشته

شوي دي، بيا هم دي حيران ؤ چې بوت درمسال ته دننه څنګه رسيدلی دی.

درمسال ته په ورننوتلو شنکر پوه شو چې ګوپال له ده سره ډير لوی شرارت کړی دی، نوی بوت چې ده له دروازې څخه بهر ليدلی ؤ اوس د درمسال دننه رسيدلی ؤ.

خلکو پر نوی بوت په خلاص زړه مال وښينده.

مذهبي مشر مذهبي سرود وويلو، خو ددغو کړو وړو په دوران کې شنکر په زړه کې رندهير ته بد رد ويل.

دی پر دې باوري و چې دندراني په ويش کې به دې له ګوپال سره د برابرۍ برخې څخه برخمن نه وي.

موهني هم درمسال ته رسيدلی وه، هغه بوت ته نژدې ورغله او ويې ليده، بيا يې د خلکو له نظره غلې ځان رندهير ته ورساوه او ودريده.

رندهير وموسکل پوښتنه يې وکړه:

موهنی! زه تا ته يوه حيرانوونکې خبره کوم.

-ووايه!

-دلته نه، زه به دلوی ډنډ پر غاړه ترونو لاندې ستا انتظار کوم. که غواړې چې د ما دهو په باب څه واوري نو خامخا راشه، راځې که نه!

د موهنی پر مخ د حيا سرخي راخپره شوه، هغې د رندهير له سترګو نه ځان ژغورلو مخ يې بل لوري ته واړاوه ويې ويل:

درځم!

رندهیر پخوا هلته تللی ؤ، موهني چې ولید ویې ویل:

ګوره رندهیره! زموږ دغسې ګرځیدل ښه نه دي.

زړ ووایه څه خبره ده؟

رندهیر وویل:

ما غوښتل چې تا ته له څه ویلو مخکې خپله تسلي وکړم.

- آخر څه وایې که نه؟

رندهیر وویل:

موهني! هغه بوت لکه چې مادهو جوړ کړی دی.

موهني وارخطا غوندې شو ویې ویل:

مادهو! زه خو یې نه شم منلی. هغه داسې بوت نشي جوړولی.

- راځه زه یو شی در وښیم.

- څه شی راښیې؟

- یو داسې شی چې زما خبره رښتیا ثابته کړي.

راځه ولې ویرېږې؟

موهني له لږ زړه نا زړه توبه وروسته له رندهیر سره روانه شوه.

دلوی ډنډ بلې غاړې ته چې ورسیدل دواړه دونو په ځنګل ورننوتل،

رندهیر هغه ځای ته ورسید، ودرید چې مادهو ډبرې تراشلې.

رندهیر پر ځمکه خورو ورو د ډبرو ټوټو ته اشاره وکړه ویې ویل:

موهني! آیا دا دهغې ډبرې ټوټې نه دي چې تراشل شوې او بوت ترې

رندهیر وویل:

مادهو ما دهغه په تورولو دلته هغه وخت ولید چې دی بلکل نابلده ؤ، ماتاته ویلی هم وو، خو ما دا گومان نه کاوه چې دی به دغسې بوت وتورولی شي.

-مگر هغه بوت درمسال ته چا ورساوه؟

-زه پردې پوه نه شوم . لومړی هغه گلان در کړل او دخدای پالونکې یې ناولې کړه، اوس یې د خدای پر درمسال هم زور راوړ، که دښار خلکو ته دا معلومه شوه چې دغه بوت چې دوی مال او دولت پرې ښندی یوه تیټه ذاتې جوړ کړی دی نو بیا به څه کیږي؟

موهنی وویل:

رندهیره! که بوت هغه په درمسال کې ایښې وی نو ډیر بد یې کړی دی.

رندهیر وویل:

زه یوازې پردې خبر یم چې دغه بوت ده جوړ کړی دی.

بیا هم زما گومان دا دی چې درمسال ته د هغو راوړونکی بل څوک دی. امکان لري دا دگوپال او یا شنکر کار وی.

موهنی وویل:

نو بیا خو هغوی پردې خبر دی چې دغه بوت مادهو جوړ کړی دی.

-زه هم همدغه فکر کوم موهنی، دهغه ژوند په خطر کې دی.

-ته له هغوی پوښتنه نشې کولی؟

-زه له دوی نه مخکې غواړم له مادهو څخه پوښتنه وکړم.

- ته لري ودرېږه! زه به پوښتنه تري وکړم بیر ته به راشم، امکان لري هغه په لاره کي چیر ته مېږي پیا یي او ویي وینو.

دگنهو ونو نه چي راووتل دوی له یوی خوا نه دشپیلي غږ واورید او دموهني زړه په درزیدو شو.

رندهیر وویل: دا همدی دی راځه!

موهني او رندهیر له یوی غونډی نه چي تیر شول هوار میدان ته ورسیدل، هلته ما دهو پروچو وښو ناست ؤ او شپیلي یي غږوله.

شاو خوا مېږي او وزی ورته څریدلی، موهني ودریده ویي ویل:

رندهیره! ته تری وپوښته او راځه، زه همدلته درېږم.

- ته له هغه نه ویرېږی څه، راځه!

مادهو ته چي ورنژدی شول لږ څنډ دواړه ولاړ وو.

هغه په خپلو چورتونو کي ډوب ؤ. بالاخره رندهیر ورو غږ پری وکړ: مادهو!

مادهو وویریده جگ شو ویي ویل:

تاسو راغلي! بیا یي دواړو ته وکتل او بیا یي سترگي پر موهني میخ پاتي شوی.

موهني دده دنظر تاب رانه وړ او سترگي یي ښکته واچولی.

رندهیر وویل:

مادهو! زه تا ته دیوی پوښتني لپاره راغلی یم.

مادهو څک غوندی شو رندهیر ته یي وکتل او په بیره یي بیا وابنه

رندهیر وویل:

نه، زموږ بیړه ده، زه له تا نه دیوی پوښتنی ځواب غواړم.

هغه بوت چې تا جوړ اوه چیرته دی؟

مادهو وارخطا شو لومړی یی رندهیر او بیا موهنی ته وکتل او چې ددواړو په څیره کی یی دغوسی پرځای دخواخوږی نخښی ولیدی ویی ویل:

تاسو کینی زه یی درته وایم.

رندهیر او موهنی یوی او بلی خوا ته وکتل او بیا پر وښو کیناستل، مادهو له دوی نه لږ بیرته کیناست ویی ویل:

تاسو له درمسال نه راغلی یی؟

رندهیر ځواب ورکړ:

هو کی

–نو بیا له مانه څه پوښتنه کوی!

رندهیر وویل:

زه دا پوښتنه درنه کوم چې دغه بوت تا پخپله هلته رسولی دی که . . . ؟

–هو کی ما رسولی!

–ولی؟

– له بوتانو څخه یوازی ددرمسال خاوندان ګټه کولای شی، هغه ماته په کار نه راتلو.

–وګ تاخ. غوښتل چې دخدای استازی شې.

دخدای دلاري ښودلو لپاره په نړۍ کې ډیر شیان شته، لمر، سپوږمۍ، ستوري، سیندونه، غرونه چې وي مور ته له خدای سره دمینې لپاره پخپلو لاسو دبوتانو جوړولو اړتیا نشته.

رندهیر بې ځوابه غوندې شو ویې ویل:

که خلکو ته دا ټولې خبرې معلومې شي پوهیږې چې تا ته به کومه سزا درکوي؟

-که ته سزا راکوې زه حاضر یم، که نه خلک پردي خبرونه خبریږي.

شانتا دمادهو لپاره ډوډۍ راوړه، د هغې په راتلو دخبرو اترو دغه لړۍ تر لږ ځنډه ودریده.

شانتا دشړومبو کټوه پر ځمکه کیښوده او پر سر یې په یوه زاړه ټوکر کې نغښتې ډوډۍ کیښودې.

دحیرانۍ او خوښۍ په ګډوډو احساساتو یې رندهیر او موهنۍ ته کتل. دهستي دبڼ دغه ښکلې غوټۍ اوس په خوږبوۍه ګل بدله شوې وه.

رندهیر په تیرو څو میاشتو کې دشانتا دبیا لیدو لپاره ډیر تدبیرونه په کار اچولي وو، نن هم که دده په لاشعور کې دحسن او معصومیت ددغې مجسمې دلیدو او موندلو تلوسه نه وای نو ده به موهنۍ دمادهو په موندلو کې دومره نه وای مجبوره کړې. دده دخوبونو دیوۍ یې مخې ته ولاړه وه. ده چې هر څومره هڅه وکړه له شانتا سره یې ځان بې علاقې ونه ښودلای شوای ویې ویل:

موهنۍ! دا پیژنې؟

وغوښته او دهغه په اشاره کیناستله.

دموهنی ښځینه حس زر دشانتا او رندهیر تر منځ دسترګو پر سوال ځواب و پوهیدو هغې وویل:

مور چې شانتا لیدلې وه هغه وخت دا ډیره وړوکې وه.

-هوکې ، مګر دا هغه ورځ هم ما ولیدله.

- څه وخت؟

-چې دمادهو په لټون پسې راغلې وم.

رندهیر او موهنی دماشومتوب ملګري وو ، او ددوی پلرونو او میندو ددوی دټول عمر دیو بل ملګرتیا په اړه هم اشاري او کنایي معلومیدی.

همدغه سبب ؤ چې موهنی دمادهو دزړه داحساساتو پر پوهیدو برسیره هغه ته په خپل زړه کې دځای ورکولو پریکړه ونکړای شوه. تر اوسه پوری له مادهو سره ددې تړاو تر خواخوږي پوري محدود ؤ.

دې د رندهیر په موجودیت کې دبل چا خیال هم ګناه بلله.

دې دا هم احساسوله چې که رندهیر نه وای او مادهو یې دومره له نژدې لیدلی وای خامخا به یې اغیزه پرې کوله. که هغه هم د رندهیر په څیر یو نجیب زاده وای بیا به ښایي دې ټول عمر هم دا پریکړه نشوای کولی چې دهمیشنی مینې لپاره کوم یو غوره کړي.

او که دوی دواړه ددې دماشومتوب ملګري وای نو څو دځوانۍ منګ ته رسیدلي پر زړه به یې یوازې دمادهو واکمنی وای.

اوس دې له رندهیر سره مینه کوله خو له مادهو نه ویریدله.

سترګې ور واړولې دهغه ناکراره او ګړندې نظر دسترګو له لارې دده دزړه تل ته ورکوز شو او دې احساس کړه چې ددې په زړه کې له دغه تیپ ذاتي سره یوازې دخواخوږۍ احساسات نه دي، بلکې ددې دزړه دنغمو هغه تارونه چیړلي شي چې د رندهیر او یا دبل چا نظر هلته نشي رسیدای.

په چورتونو کې شوه او په زړه کې یې ویل:

کاشکې مادهو رندهیر وای. خو سمدستي پرخپل دې خیال وشرمیده ، راجګه شوه ،ویې ویل:

راځه رندهیر ه ناوخته شوه مور جانه به زما انتظار کوي.

رندهیر په نه زړه راپورته شو ، مادهو او شانتا هم ودریدل.

رندهیر وویل:

مادهو! له موهني سره ستا ډیره اندیښنه ده.

موهني ته د رندهیر دغه طنز بدښکاره شو غوښتل یې چې په ځواب کې یې د رندهیر په باب شانتا ته څه ووایي خو بیا چوپه پاتې شوه.

رندهیر بیا وویل: ښه مادهو نور درنه ځو.

ته مو ډیر پریشانه کړې.

مادهو موهني ته وکتل ویې ویل:

کاشکې تاسو هره ورځ ما داسې پریشانه کړې.

شانتا وویل:

وروره! زه هم غواړم کور ته ولاړه شم.

ستا ورور اوس هم ډېري تراشي که نه؟

- نه هغه اوس بدهو کاکا منعه کړی دی، هغه بوټ يې چې تراشلي ؤ هغه يې هم چير ته غورځولي ؤ.

موهني ترې وپوښتل:

مورږ ته دي څنګه ده؟

- ښه ده ته ورسره ګوري! راځه ډيره به خوښه شي.

رندهير وويل:

هو کې موهني راځه ددې مور به ووينو.

- نه، اوس ناوخته کيږي، بيا به ورځ.

لږ وړاندي چې ولاړل ددوي لاري سره بيلي شوي.

## (٤)

دموهني او رندهير له رخصتولو وروسته مادهو ترلږ ځنډه چوپ ولاړ ؤ او هغوی ته یې کتل، خو چې هغوی دغونډی په اړخ کې واوښتل او له سترګو پناه شول.

دده په زړه کې يو توپان را اوچت شو، له لږ چورت وروسته يې ورپسې منډه کړه او دسترګو په رپ کې دغونډی سر ته وخوت.

رندهير او موهني په دې ځنډ کې دغونډی په لمنه کې دلوی ډنډ غاړې ونو ته رسيدلي وو، دمادهو ناکرارو سترګو تر ترلږ ځنډه هغوی ته کتل خو

یوازیتوب ، مایوسي او بې وسي څخه ولړزیده ، درمسال او بوتانو چې تراوسه پورې د لوړ ذاتو او تیټ ذاتو تر منځ د پله کار ورکاوه هغه پل هم نور ړنگ شوې ؤ ، دده په زړه کې موهني دخدای دبوت لپاره ځای کړی ؤ خو دبدهو پر بې وختـه لاس وهني تر ډېره وختـه دیوه تیټ ذاتي زړه پرینښـود چې دبوت درمسال شي.

بیا هم له بوت سره داړیکو له شلولو سره مادهو احساس کړه چې دزړه کلي یې دیوې داسې هستي پر خیالونو آباد شوې دی چې دنړۍ دښکلیو منظرو په څیر حقیقت ؤ.

دغه ژوندی حقیقت موهني وه . موهني چې دده شعور ته ورننوته او دده په زړه کې یې دبوتانو ، درمسالونو او دیو تاگانو مینه پیدا کړه . . . موهني چې دده وروستي ارمان ؤ ، چې ددې د ترلاسه کولو لپاره یې دخدای دبوت لارښوونه او مرسته غوښتله.

پر خدای او یا د کایناتو پرستر ځواک اوس هم دده عقیده وه ، خو دده د الوت مخه دخدای په لور نه وه ، ده ددغه سترځواک څخه دا توان غوښت چې دده او موهني تر منځ واټن له منځه یوسي.

پر غـونډۍ ولاړ ؤ او تر لږ ځنډه یې دوړاندې تلو او یا بیـرته راگرځیـدو پریکړه نشوای کولی خو ناڅاپه یې له یوه خیال سره په بدن کې دبریښنا څپه وځغلیده.

آیا دموهني په دلته راتلو کې دهغه ځواکمن ذات لاس نه ؤ.

آیا دهغې دلته راتلل دا معنی نه لري چې دهغې له ماسره زړه لگیږي ؟

وی، آیا داضروری نه وه چی ما دخپل زړه رازورته ویلی وای؟

له دی خیالونو سره هغه احساس کړه چی هماغه څواکمن ذات په یوه نوی اقدام کی دده ملاتړ او مرسته کوی.

ده ځان له بوټیو نه څنګ ته کاوه او له ډېرو نه راکوزیده او چی لاندی راکوز شو ډیری ګړندی منډی یی پیل کړی. چی له ونو راووت رندهیر او موهنی یی ولیدل دده منډی هم ګړاری شوی، په زړه کی یی له ځانه وپوښتل:

که رندهیر بده ومنله بیا به څه کیږی؟

بیا یی پخپله زړه ته تسلی ورکړه:

نه، رندهیر داسی نه دی، هغه دلوړ ذاتو نورو خلکو سره توپیر لری. هغه زما سره خواخوږی لری، که څه هم زما پری پروا نشته، مینه ګناه نه ده، موهنی به خامخا زما پر خبرو نه خپه کیږی، که څه هم زما له زړه نه به دتل لپاره شکونه او بدګومانی لری شی او له دی سره یی بیا ګامونه ګړندی شول.

رندهیر او موهنی چی دده دپښو غږ واورید شاته یی راوکتل، دوی په پوښتونکی نظر ورته وکتل او دی کتو یی دده پښو ته بیا زولنی واچولی یوه شیبه ودرید او بیا ورو ورو ور روان شو او ددوی په مخکی ودرید:

رندهیر تری وپوښتل:

مادهو خیر خو دی؟ دهغه په لهجه کی حیرانی او خواخوږی دواړه وی.

بیا هم مادهو دهغه پوښتنی ته تر لږ ځنده ځواب ورنکړای شو. بالآخره یی

ووایه څه وایی موهنی ته؟

د مادهو په مغزو کی اوس نه الفاظ وو او نه څه موضوع ، په ډیر زحمت یی وویل:

دا اوس چی ما دبوت په باب څه وویل ته خو به پری خپه شوی نه یی ؟

موهنی ددی پوښتنی دځواب پر ځای په حیرانی ده ته کتل.

مادهو بیا وویل:

زما اراده داسی نه وه چی ستا زړه آزرده کړم.

موهنی د مادهو د تسلی لپاره وویل:

زه درنه خپه نه یم، زه دا حق نه لرم چی له تا نه خپه او یا خوښه شم.

مادهو غوښتل ووایی چی مادا حق تا ته درکړی دی، خو جرئت یی ونکړای شو، هغه د موهنی پر ځای رندهیر ته مخاطب کیدل آسانه وګڼل وی ویل:

رندهیره! ما له دیو تاګانو سره مینه ونکړای شوه خو زما په زړه کی ستاسو مینه له هغی مینی څخه زیاته ده چی له دیو تاګانو سره ستاسو په زړونو کی ده. زه هغه ستر ځواک منم چی تاسو یی خدای بولی خوزه پخپلو لاسو دجوړو شویو بوتانو څخه دخپل خدای په لاس دجوړو شویو دیو تاګانو سره مینه غوره ګنم او ماته تاسو د خدای جوړ کړای شوی دیو تاګان یاست.

د تاسو اشاره تر رندهیر ، موهنی ته زیاته وه او هغی ددی خوږ والی احساس

نړول.

دی په وار خطایي وویل:

مادهو موږ درنه خپه نه یو. دتولنی دسپیڅلی لوړ غرور په نرمی بدل شوی ؤ، خو ددی خبرو نه وروسته یی چی رندهیر ته وکتل دغه نرمی په حیا بدله شوه، ویی ویل:

راځه رندهیره!

مادهو وپوښتل:

بیا به راشی؟

رندهیر ځواب ورکړ:

ښایی راشو.

ددی ښایی څخه د رندهیر مطلب خامخا ؤ خو موهنی په خپل خیال کی فکر کاوه چی دتل لپاره سره بیل شول.

**(۵)**

ددی لیدو نه وروسته دمادهو لپاره دژوندانه ټول تصور په موهنی کی راټول شو، ده ته دنړی په هر ښکلی شی او هری په زړه پوری ننداری کی دموهنی څرک ښکاریده، هغه موهنی چی دده تر شعور لاندی ورننوتله او دی یی دخدای لوری ته ورکوږ کړ، دخپل پیداکوونکی دیوتا جوړولو ته یی وهڅاوه.

اوس یی دده دزړه او دماغ ټول ځواکونه دځان په لور ورکشول.

په درمسال کی دخدای دبوت له پرېښودو نه وروسته مادهو داسی

هغه پل چې دتيټ ذاتي جونګړه يې دلوړ ذاتو له محل سره پيوستولې شواى يوه ناڅاپي سيلاب ورسره واخيست.

ترڅو مياشتو پورې چې دبوتانو په جوړولو بوخت ؤ، ده ډيرې خيالي كلا ګانې جوړې كړې، دبوت په مخكې دلاس په نامه دريدو او دعا نه وروسته ده داسې احساسوله چې كه نن نه وي نو سبا ته او كه سبا نه وي بله ورځ به دى دخداى استازي كيږي.

خداى به خپل بې روحه بوت په خبرو راولې او هغه به ووايي:

مادهو موږ زيات درنه خوښ يو، وغواړه څه غواړې؟

او دى به دنمانځنې له جوشه دبوتانو په پښو كې سر ږدي او دهغه سپيڅلې درشل به په خپلو اوښكو مينځي بيا به ورته وايي:

خدايه! زه موهنې درنه غواړم. او خداى به ووايي چې موږ ستا دا غوښتنه پوره كوو.

بيا به خداى له خپلو نامعلومو ځواكونو سره دلوړ ذاتو هر سړى زره ته ورننوزي او وبه وايي:

ګورئ! مادهو زما استازى دى، تاسو حق نه لرئ چې له هغه نه كركه وكړئ، او بيا به دهغه ځواكمن لاس موهنې دتولنې له زنځيرونو څخه خلاصه كړي او ده ته به يې راولي.

بيا به دى او موهنې يوه داسې دنيا جوړه كړي، چې دلوړ ذاتي او تيټ ذاتي ترمنځ به دكركې او نفرت ديوالونه نه وي دريدلي.

سهار به ده له بدهو سره ميږي يو لي اوپر غونډې به وخوت ښار ته به
يي کتل، هغه خو ړونه چي شاوخوايي له ښار سره تړلي وه ده ته حوصله
ماتوونکي اودنه تيريدو وړ ښکاريدل.

ده به درمسال ته سترگي ور واړولي او احساس به يي کړه چي هغه
بوت چي ده پخپل لاس تراشلي ؤ او هلته يي وړي ؤ موهني اوددي
دقوم تولو انسانانو ته له مادهو او دده دقوم له خلکو سره دکرکي
اودښمنی سبق ورکوي او دا ورزده کوي چي دي دخداى داستازى
کيدو لپاره نه بلکي ددي لپاره پيدا شوى دي چي تېټ ذاتي واوسي
اوويلل شي.

خو ماسپښين مهال دموهنی له ناخا پي راتگ نه وروسته ده ته
داحقيقت څرگند شو چي دي سره له دي چي دبوتانو اودرمسالونو څخه
ياغي دي موهنی ته دکرکي وړ نه دي تردي وروسته ده ته دژوند ترخه
حقيقتونه بيا په ښکليو خوبونو بدل شول،خيالي ماڼي يي بيا جوړې
کړي.

دده دزړه په درمسال کي د خداى دبوت پرځاى دموهنی ژوندی تصوير
ځاى ونيو دبوت په واسطه خداى ته درسيدو پرځاى ده ته دا اسانه
اوپه زړه پوري لاره ښکاره شوه چي موهنی يي واسطه شي.

ماد هودخپل ژوند پرهر افق يوازي موهنی ليدله ،ده غوښتل دشپيلي
په هر سر کي دهغي دغږ خوږ والي پيدا کړي ، اوغوښتل يي دنړی دمخ
... څېره تړي جوړه کړي ده غوښتل چي

ددرمسال تصویرونه دخدای پهاړه دډېرې توږ ونکیو دتیتو خیالونو هنداری وی خو موهنی دخدای دتخلیق دځواک نمونه او غوره ښکارندویه وه.

لهموهنی سره زیاتیدونکی مینی یی له شاوخوا سره مینه اوزړه خواله کمهکړه، څو ورځی وروسته یی داسی احساس کړه چی دمیږو پوولو اود کبانو ښکار داسی څهنهدی چی دده دزړه مخ پر زیاتیدو ناکراری تهدوا شی ، ده ته پهانتظار کی اوږدی ورځی اوناپایهشپی لهزغم نهوتلی وی.

دځپل زړه دبارکمولو لپاره یی یوهراز دار اودوست تهاړتیا درلوده خوپه شاوخوا کی دتیټ ذاتو پهکلیو کی داسی څوک نهوو چی دده دغه اړتیا یی پوره کړی وای ،دکمی داحساس لاندی ځپل شویو انسانانو پهمنځ کی یو هم داسی نهؤ چی دده دزیاتیدونکیو هیلو اوارمانونو حوصله یی زیاتهکړی وای.

نژدی تردوو اونیو پوری دپریشانی پهحالت کی تیرولو نه وروستهیی دلوی ډنډ پر غاړه پهونو کی ښخ کړی سامانراویوست ، ماسپین مهال یی دسیند پرغاړه دپر توډبرو نهیوهلویه سپینه ډبره وټاکله اوبیا یی هغهکور تهراوړه.

دخلکو لهنظره لری دځپل شغل لپاره دهتهد لوی ډنډ پرغاړه ډیر خوندی ځایونهوو خو مادهو پهدی کی دچالاس وهنهنشوای زغملی د لوړ ذاتو لهلوری ډاډهؤ چی ددوی لهنظره ترنورو ځایونو ورته خپله

درلوده کله چې هغه پوه شي چې هغه ددیو تا او خدای پرځای دکوم انسان بوت جوړوی بنا یې اعتراض ونکړی.

ځکه خو چې بدهو ماښام دکبانو له ښکارنه بیرته راستون شو نو مادهو دډبرې په تراشلو بوخت ؤ هغه بهر له شانتا او کنول نه پوښتنه وکړه چې مادهو چیرته دی؟

کنول په سادګی ځواب ورکړ:

دننه ډبرې ماتوی ، وایی چې شانتا ته له ډبرو نه نانځکی جوړوم اودی ته ګوره دومره لویه شوه اوس به له نانځکو سره لوبیږی؟

شانتا دخپلی مور په ځواب کی چې دبدهو وضعه بدله ولیده وویریده اوزریی وویل:

هو کی کاکا! مادهو ډیری ښی نانځکی جوړوی دجونګړی په منځ کی ناڅا په دتیشی ټک اوټوک بند شو.

اومادهو زړه نازړه بهرته راووت او پرته له دی چې بدهو څه تری وپوښتی ده وویل:

کاکا زه شانتا ته نانځکی تراشم.

بدهو بیله دی چې څه ووایی جونګړی ته ننوت اوډبری پر برالی اندیښمن کړ مادهو ته یی وکتل.

دهغه په کتوکی ډول ډول شکونه اوبدګومانی ښکاریدلی.

مادهو بیا وویل:

کاکا! شانتا ویل، ماته نانځکه جوړه کړه، زه هم خپه وم څو ورځې په

چې ستا خیالونه تراوسه سم نه شول.

- کاکا ته فکر کوې چې زه بیا دخدای بوت جوړوم؟ نه نه زه دروغ نه وایم زه به یوه داسې نانځکه جوړه کړم چې ستا به هم خوښه شي.

دمادهو ځواب بدهو ډاډه نکړای شو بیا هم هغه پردې خوښ ؤ چې مادهو دغه خبره تري پټه نکړه.

څو ورځې وروسته دډبرې په تراشلو کې چې بدهو اوکنول دې ډیر ډوب ولیدل پریشانه شول دلمر ختلو نه ترلمر لویدو پورې دجونګړې نه دترښځې ټک ټوک غږونه پورته کیدل، اوچې دترښځې په وهلو به دمادهو لاسونه ستومانه شول نو دلې ځنډ لپاره به یې شپیلۍ راپور ته کړه اوپه جونګړه کې به کله دخوښیو ډکې اوکله ډیرې غموونکې نغمې اوچتې شوې شانتا هم دخپلې نانځکې په باب دمادهودومره زیار اوبوختیدنې حیرانه کړې وه.

کله کله به هغه بدهو دمیږو پوولو اویا دکبانو ښکار ته ورسره بوتلو، خودنیمګړې کار دبشپړولو مینې هغه ترډیره بهر رایسارېدو ته نه پریښود. څو اونۍ وروسته چې شانتا په خپل کور کې یوه ښکلې نانځکه ولیده له خوښۍ په جامو کې نه ځاییده خو مادهو پرخپلو هڅو ډاډه نه ؤ.

شانتا یې په غوږکې وویل:

وروره! داخو موهنې ته ورته ده.

ده په ځواب کې ورته وویل:

# رندهير اوشانتا

رندهير دموهنی په‌باب پرخپلو خيالونو هيڅکله هم فکر نه‌ؤ کړی.
دوی له‌ماشومتوبه سره يوځای ؤ، ديوه پنډت نه‌يی زده کړی کړی‌وی
،ديوبل په‌باب يی په يوازيتوب دفکر کولو فرصت نه‌ؤ موندلی اوچی
دځوانی پړدرشل يی گامونه کيښودل هم دوی دواړو په‌راتلونکی کی
دبيلتون هيڅ خطر نه‌احساساوه ځکه خو هغه احساسات چی دبيلتون له
انديښنو څخه راپورته کيږی ديوه هميشنی نژدی والی په‌سبب خپ
پاتی شول ، موهنی ته‌له‌پلار او مور وروسته رندهير خپل ساتونکی
ښکاريده اودی هغه‌دخپل ژوند ډير لوی او په‌زړه پوری برخه باله.
له‌شانتا اومادهو سره دوروستی ځل ليدو نه وروسته دواړو دخپلی
راتلونکی په‌اړه دفکر کولو موقع وموندله، رند هير ديوه خام‌ذهنه
زلمی په‌څير غوښتل دژوند څو ورځی دحالاتو له‌سيلابونو سره په‌څپو
کی تيری کړی خو موهنی ديوی ښځی دفطرت له‌مخی مجبوره‌وه چی
دراتلونکی توپان څخه دخوندی کيدو لپاره دپناه ځای ولتوی.
رندهير په چی کله سهار دښکاراومابنام دچکر په پلمه‌بهر ته‌ووت دده

لەشانتا سره لومړنی دوه دری لیدنی یی دمادهو په مخکی وشوی ځکه یی لەهغه سره دخه ویلو اوخه اوریدلو هیلەترسره نەشوه یوه ورځ یی په خرڅای کی لەمادهو سره بدهو هم ولید بدهو دلوړذاتو په باب دخپل نظر بدلون ته چمتو نەۋ خولەرندهیر سره ډیرزر بلد شو ، ددی سبب داۋ چی رندهیر لەدوی سره پەډیره تواضع چلن کاوه بل سبب یی داۋ چی رندهیر داسی جامی اغوستی وی چی ده لومړی ځل سکدیو پکی لیدلی و ، دسکدیو په خیر دده پر ملاهم توره ځوړنده وه اوپەیوه گوته کی یی دسروزرو گوتی هم وه دسکدیو گوتی اوس لەکنول سره وه خو توره یی تراوسه پوری بدهو ساتلی وه.

بدهو وویل:

تەدپا چا سرلښکریی؟

رندهیر دبدهوله خولی دسرلښکر دلفظ په اوریدو حیران شو وبی ویل:

نەزه دپوځ مشر نەیم پلار می ۋ، خواوس هغه دښار سرداردی.

بدهو وویل: ستاپلار جان بەزموږ خلکو نە خامخا کرکەکوی.

– نەهغه لەهر چا سره عدالت کوی.

– مااوریدلی دی چی ستاسو یو دپوځ مشر دتیټ ذاتو ډیرلوی دښمن ۋ دهغه نوم لکه چی گنگارام ۋ.

– دگنگارام لەوژل کیدو نە ډیره موده تیره شوی ده. زه هغه وخت

- دهغه‌نوم څه‌ؤ؟

-سکديو .

دسکديو دنامه په‌اوريدو مادهو څک شو خوپردې چوپ پاتې‌شو چې‌ښايي پردې‌نامه‌بل څوک وي ، بدهو دمادهو په‌مخکې ددې خبرولړي ته‌دوام ورکول مناسب ونه‌بلل هغه وويل:

مادهو ! زه‌تږي شوی يم ولاړشه‌له‌کوره شړومبی راوړه.

مادهو دکور په‌لور ستون‌شو اوبدهوله رندهيرنه وپوښتل:

ستادپلار نوم خو به‌رامداس نه‌وي؟

- هوکې همدادې ، مګر ته يې‌څه پيژنې؟

- ماله‌چانه اوريدلي دي.

بدهو له‌سکديو څخه څوځلي دخپل ژوند داستان‌اوريدلي ؤ اوس چې دا ورته‌څرګنده‌شوه چې‌رندهير درام داس زوی دی‌دده پاتې شکونه هم‌لرې شول او کنه‌دلوړذاتو سره دمادهو راشه‌درشه دې خامخا ځوراوه ،زړه يې‌غوښتل چې هغه ته‌دسکديو په‌باب څه‌وو وايي خودمصلحت لپاره چوپ شو درندهير سترګې دجونګړو په‌لور اوښتې وي خو دده دهيلې پرخلاف چې کله مادهو له‌شړومبوسره يوازې‌راغی نو په خپل‌زړه له بوج سره‌رخصت شو.

په‌لاره کې لوی ډنډ ته‌نژدې دده زړه له‌خوښيو په توپونو شو ، شانتا داوبو منګې پرسرايښې ؤ اورا روانه‌وه هغې چې رندهيروليد ديوی ونې لاندې ودريده دده‌له خولې بې اختياره ووتل:

شوه.

- شانتا! زه ستا له وروره سره ناست وم ستا د راتلو انتظار می کاوه.

شانتا زړه نازړه منګې له اوږې کوز کړ او ويې پوښتل:

موهنې ديوی څنګه ده؟

- ښه ده تاديره يادوی.

- هغه ستا څه کيږي؟

- هغه زما د پلار د دوست لور ده.

دواړه ترلږ څند چوپ ولاړوو رندهير غوښتل چې دغه چوپتيا ماته کړي او څه ووايي چې يوه لوری ته د کوم حيوان دمندو ترپهاراو د چا د کنځلو غږ اوچت شو دونو له منځه يو ترهيدلی غويی راښکاره شو ورپسې شنکر ؤ چې په يوه لاس يې د غوايي لکی نيولی وه او پربل يې په ډانګونو واهه او منډې يې وهلی.

خوغوايه دبيرته ګرځيدونوم نه پيژاند اودساه سوځيدلی شنکر غوسه پردی هم زياتيدله چې دغه غوايي د ګوپال ؤ.

رندهير زرووېل:

ښه شانتا ته اوس درځه بيا به سره ووينو.

شانتا منګې ورسره واخست اورندهير يوی خواته ودريد، شکرچې هغوی دواړه وليدل غويې يې پريښود اورندهير ته نژدې راغی ويې ويل:

داډير خراب غويی دی صيب!

شنکر درندهیر طنز وزغملو ویی ویل:

ته دلته څه کوی؟

رهندهیر ځواب ورکړ:

زه دښکارلپاره راغلی وم اوس می ستا مخ ولید دادی بیرته کورته

ځم.،

شنکر وویل:

ښکار خوروان دی!

- کوم ښکار؟

شانتا لږ وراندی تللی وه شنکر هغی ته اشاره وکړه ویی ویل:

هغه!

رندهیر په غوسه ورته وویل:

گوره شنکره! په هوش خبری کوه ته یو برهمن یی.

شنکر خجالت غوندی شو ویی ویل:

وبخښه تیوکه می وکړه.

- دټولو لپاره عقل ته اړتیاده او هغه لبده مرغه خدای تاته نه دی

ورکړی.

شنکر وغوړمبیده او په غوایی پسی روان شو اورندهیر په زړه کی ده

ته بدویل اودښار په لور یی مخه کړه.

(۲)

دکال ځلورمی میاشتی « اهاړه » وروستی ورځی وی.

دوریځو په برستن کی پټ شواود وریځو سیوری دختیځ پر غرونو اوغونډیو ګرندی تیریدلی شانتا او کنول دخپلی جونګړی په مخه کی دیوی ونی لاندی ناستی وی.

ناځاپه شانتا دجونګړی شاته داس دپښو ترپهار واورید دهغی زړه له خوښیو په درزیدو شو او ځګه شوه دجونګړی بل لوری ته ورغله څو ګامه لری رندهیر دآس جلب نیولی ؤ اوپلټونکی نظریی یوی اوبلی خواته اچاوه.

شانتا په کتوکی دی پوه کړه چی دلته خبری مناسبی نه دی اورندهیر دلاس په اشاره وپوهوله چی دی دلوی ډنډ لوری ته دروږی درندهیر آس په ګنوونوکی ورک شو اوشانتا را غله له خپلی مور سره کیناستله.

کنول تری وپوښتل :

څوک وو ؟

هغی ځواب ورکړ:

نه پوهیږم څوک وو لږ څنډ وروسته یی وویل:

مور جانی! ډیره ګرمی ده زه به لږ په لوی ډنډ کی ولامبم اوبیرته به راشم.

— ته خوهمدا اوس له هغه ځایه را غلی ، ښه ولاړه شه!

شانتا تر هغو پوری چی مور یی لیدای شوه عـادی روانه وه، خو چی دبوټیو شاته پناه شوه دیوی غرنی هوسی په څیریی په منډو پیل وکړ.

رندهیـر آس پریوه ونه پوری تړلی ؤ اوهغـه په اوبو کی له غوپوو هلو وروسته خپلی جامی بدلولی، د رندهیر په لیدو شانتا ښه ونیوه اوداهغه

شانتا را غلی!

شانتا ده ته‌دخه ځواب ورکولو پرځای په یوه لاس دوني یوه څانګه راتیته کړه او پر بل یې پاڼې را وشکولې او ډنډ ته یې وغورځولې.

رندهیر بیا وپوښتل:

شانتا! ما دهو چیرته دی؟

شانتا بله پاڼه راشکوله ځواب یې ورکړ:

هغه تولـه ورځ په کـور کې دی ،نن بدهو کـاکـا په زور میـږو پولو ته ورسره بوتلو.

- کری ورځ پر کور هغه څه کوی؟

- بوتان جوړوی:

- بوتان هغه څنګه؟

- هغه دری بوتان جوړ کړی دی کټ مټ دموهني په څیر ه خودریم یې ترتولو ښکلی دی.

رندهیر په ژورو چورتونو کې ډوب شو ،دموهنی بوت جوړول داسی ګناه نه وه چې یو تیټ ذاتی دی پری ویخـښـل شی ، ترلږ څنډه یی په خپلوتولو پخوانیو کړو وړو شرم احساس کړ مادهو ده ته‌دکرکی وړ ښکاره شو ، خوله‌دی سره جوخت ده ته‌دا په‌خیال کی ورو ګرځیدل چې که‌دمادهو او موهني ترمنځ ده دیوه زنځیر په‌څیر دوصل کار نه وای ورکړی نو مادهو به‌دا جرئت نه کاوه اوس دامعامله یوه خطر ناک براو ته‌رسیدلی ده.

ترخواخوږی پوری محدوده ده ، دهغې د پوهولو اړتيا نشته که هغې ته معلومه شي چې يو تيټ ذاتی ددی بوتان جوړوی نو ټول عمر به يې ونه بخښي.

...... خوزه هم له ماد هو څخه څه توپير نه لرم، ماترننه پوری دافکر نه دی کړی چې زما اوديوی تيټ ذاتی نجلی ترمنځ يو داسي خليج پروت دی چې تری تيريدل امکان نه لری پردی سربيره زه دراتلونکی د پايلو نه بی بروا پردی پسی منډی وهم آيا زه دومره توان لرم چې دټولنی ددستـــور زولنی وشلوم؟ ددی نجلی لپـــاره به د« بدذاتی » تور اوپيغوررومنم؟ ددی پوښتنو په ځواب کی دده ضمير چيغی کړی چی: نه رندهيـره ! ته دمـا دهو په څير دځان په دوکـه کـولو روږدی شوی يی ته شانتا يوه لوبه اويوه موسمی مشغولتيا گڼي ، ته غواړی يوازی ددغه خوږ بويه گل نه گتـه واخلی خو په زړه دی لـه دی سره د مينی پرځای دټولنی ددستور درناوی اويا ويره ناستـه ده ته چې په کوموپښو دلته را غلی يی په همغو به بيرته ولاړ شي بيا به ددی نجلی څه حال وی، آيا ستامينه به دی ته دزهرو پياله نه وی؟

رندهيـر په غـمجن نظر شـانتـا ته وکـتـل ، هغـه انديښمنه شـوه ويی پوښتل:

ته دبوتانو په باب په فکر کی شوی ؟

ده ځواب ورکړ:

وړاندې دکایناتو دخوښیو زانګو وه دخپګان اواندیښنې تصویرشوه ، د درزیدونکې زړه هیلې ارادې اواحساسات په زاریو بدل شول. ترڅې پورې ورسیدلې شونډې ورپیدې، ورپړدیدې اوبیا یو له بله نښتې پاتې شوې شانتا څه ونه ویلای شوای اودغه زارې په اوښکو بدلې شوې اوپه سترګوکې وځلیدې.

شانتا سرځوړند واچاوه اوپه خیرن ټکرې یې اوښکې پاکې کړې ښکته یې کتل.

ناڅاپه دې په وښو کې یو خوځند شي ولیدل او په رګونوکې یې وینه وچه شوه په سترګو کې یې د غم اوخپګان پرځای دویرې نخښې راښکاره شوې یو مار سرله وښوراپورته کړی ؤ او درندهیر پښې ته نژدې شوی ؤ دشور ماشور وخت نه ؤ شانتا دیریښنا په څیر ګړندی ورغله او رندهیر یې ټیل واهه اویوې خواته یې کړ خوله دې سره یې له خولې یوه وړوکې چیغه ووته او پرخپله پښه ورټیټه شوه ،کوم وخت چې درندهیر سترګې پرمار ولګیدې هغه نژدې په یوه بوټي کې ننوتلو.

رندهیر بیا شانتا ته وکتل او ویې پوښتل:

څه وشول؟

شانتا په موسکا ځواب ورکړ:

هیڅ نه.

رندهیر وویل:

اوف ډیر خطرناک مارؤ ،که تانه وای ټیل وهلی ښا یې چیچلی یې

یې دی.

- هوکې! دا ډیر زهر لرونکی دی.

- دمرګ په وخت کې خوتکلیف نه‌وي؟

- نه، وایي چې دمار دزهرو په‌سبب خوب پرې راځي.

شانتا وویل:

تاویل چې‌زه به‌بیا دلته نه‌راځم؟

- هوکې ! خوزه خبر نه‌وم چې ستازړه به پرې خپه شي.

دشانتا پرشونډو غمجنه‌موسکا وغوړیده ویې ویل:

اوس به‌زما زړه نه آزرده کیږي اوس که‌ته راشې هم‌ما به ونه‌وینې.

- ولې شانتا ته چیرته‌ځې؟

شانتا له‌لږځنډ وروسته په‌خوبوړي حالت‌سترګې پټې کړې وې ویل:

لکه چې‌خوب راځي!.... له‌دې خوبه بیا ښا یې زما سترګې ونه غړیږي.

رندهیر وار خطا شو چیغې یې کړې:

شانتا ته‌لکه چې مار .....

- هوکې! زه مار وچیچلم خو خوښه یم چې ستا په کار راغلم شانتا دا ووئیل، کیناستله او خپل ښنګرۍ ته‌یې وکتل..

رندهیر دیوی‌شیبې لپاره هک‌پک شو او بیا ورووړاندې شو او غږ ونه یې پرې وکړل:

شانتا! شانتا! ... ورغې، ددې په‌مخ کې کیناست په خپلو ږیږدېلو

هغې پەچنگرې گوتە کیښودە وېې ویل :

داوگوره!

رندهېر دیوې سرې نخښې ترڅنگ وړوکې تڼاکه ولیدله پەدرد ناکه لهجه یې وویل:

شانتا! تازمالپاره ولې ځان په خطر کې واچاوه!

شانتا پەبریمنه موسکا رندهېر تەوکتل اوځواب یې ورکړ:

مارتاته دېر لنډو کەماتەلرې کړې نەوای نو ماربه.....!

درندهېر پەزړه کې دلوړذاتو دکبر اوغرور د مزیوتو کلاگانو دیوالونه چې پخوا وړلسعەشوې وو اوس ټول لەبیخه ونړیدل ، ټیټ ذاتې نجلې دلومړې ځل لپاره دەتەیوە بښځه ښکارە شوه ، داسې ښځه چې ددە لپاره یې پر خپل ژوند لوبې کړلاې شواې اودمرگ دوېرورنکې شیر ی لەلیدو سرە یې موسکا کړلې شواې، دەپەزړه کې ویل:

رندهېره تەددې مینې اودې ایثار حقدار نەوې.

تالې وراندې دتړلنې لەدستور څخه دوېرې لەامله لەدې څخه دتل لپاره درخصتیدو ارادە کړې وە ، تەیې همتەیې مینه اووېره هیڅکله هم نشې یوځاى کیداى، مینه گټې اوتاوان تە نە گورې.

دې نجلې تەوگوره چې دمار لە چیچلو سره خاندې.

کاشکې تە هم دومره زړه ور واى. خراوس بە څە کیږې؟ دشانتا دمرگ لەتصور سرە ددە پریدن لړزه راغله لەدرد اودوکه په ډکه لهجه

شانتا په غمجنه لهجه وویل:

پارو گر ( مار نیوونکی ) به څه وکړی؟

- هغه دهر څو مره زهر جن مار زهر زیښېلی شي.

- مگر مااوریدلی دی چی دتور ماردزهرو هیڅ علاج نشته.

- نه دهغه سره دهر مار علاج شته، شانتا ته په وژغورل شي.

- مگر تا خوویل چی زه به بیا رانشم.

- نه، مادروغ ویل، زه به هره ورځ دلته راځم ستا لپاره به تولی نړی ته شاکړم، زه ستایم، دتل لپاره ستایم.

درندهیر لهری خبری سره دشانتا ساه گرندی کیدله، یو ساعت مخکی چی درندهیر نه مایوسه شوه له نړی نه دتل لپاره پر تلو هیڅ خپه نه وه، بلکی دمارله چیچلو نه وروسته پردی خوښه وه چی پر رندهیر یی ورو ستی یری ترلاسه کړی، خواوس درندهیر پر خوله دمینی د اعتراف له اوریلو وروستـه دی ته د نړی هر ازغی لهویمـو ډک گل ښکاریده، رندهیر ددی ژ اودی غـوښتل چی دمرگ له څواکمنو منگولو څخه وژغوری اوپه دی نړی کی ژوند وکړی، لومړی درندهیر له مینی څخه مایوسه شوه اوژوند ورته گران شو خواوس درندهیر دمینی له اعتراف سره مرگ ورته گران ؤ، دژوند هیلو دمرگ څیره ډیره ویروونکی کړی وه ددی په سترگو کی اوښکی راغلی وی پوښتل:

هغه پارو گر به راشی؟

پر سترگو می تیاره راځي لږ کرار څه.

- نه‌شانتـا ! مـوږ بايد بيـږه وکـړو شـانتـا تر لږ ځـايه گـړندی ورسـره ملگرتيـا وکـړه خو پښی يی رپږديدلی دوه دری ځلی يی پښی له‌ډېرو سره ولگيـدلی اوتيندکونه يی وخوړل اورندهيـر داپه خپلو متـو کی ورسره واخستله اودجونگړی په لوريی منډه واخستله.

**(۳)**

شانتا يی چی په‌دی حالت‌وليـده دکنول سترگی رڼدی رڼدی وختی ، اورجگه‌شوه اورندهير ته‌يی کتل ،دی دڅه‌ويلو او وړاندی ورتلو همت نه‌درلود خو بالاخره مورولی پروارخطايی بری ومونديی ويل:

ته څوک يی ، پر شانتا څه شوی دی؟

رندهير شانتا پرکټ څملوله جواب يی ورکړ:

دامار چيچلی ده.

کنول چی دا واوريدل چيغی يی کړی:

زما لوری! زما شانتا اودراپه هوښ کولولپاره يی وخوځوله.

شانتا سترگی وغړولی ويی ويل:

مور جانی خوب ته‌می پريږده.

-لوری! ووايه مار چيرته وچيچلی؟

شانتا هماسی پرته‌وه ښنگری ته‌يی اشاره‌وکړه ويی ويل:

دلته.

پر ښنگری وړوکی تنهاکه‌اوس ښه لويه‌شوی وه.

کنول وویل:

که دغه تناکه وچوی ښه به وی.

—او هو! ماته معلومه نه وه، کوم تیره شی راوړی!

مانن خنجر هم په کور کی پریښی دی.

کنول اندیښمنه شوه ویی ویل:

تبرونه مادهو اوبدهو ورسره وړی دی نور تیره څه شی په کور کی نشته ،هو یو شی شته دهغی څوکه ښه تیره ده کنول په منډه ولاړه له جونګړی نه یی یوه توره له پوښ سره راوړه. توره که څه هم ډیره پخوانی وه خو چی کله کنول له پوښه را وایستله نو ځلیدله ،دی توره رندهیر ته په لاس کی ورکړه ویی ویل:

زه یی نشم غوڅولی ته بیړه پری کړه!

رندهیر په بیړه دتوری پرڅوکه تناکه وخیرله، چی توره یی بیرته په پوښ کی ایښوده پر موټی یی دخپل پلار دنامه توری ولیدل ،هغه حیران شو کنول ته یی وکتل اوغوښتل یی څه تری وپوښتی خو دوخت نزاکت چوپ کړ ویی ویل:

ښه ده زه اوس ځم ډیر زر به بیرته راشم.

کنول تری وپوښتل :

پاړوګر چیرته اوسیږی؟

– له دی ځایه اته میله لری!

– اته میله لری! بیا خو به ډیره ناوخته شی.

پرتول آسمان راخپری شوی‌وی چی‌ډنډ ته‌ورسید ویی‌لیدل چی‌اس یی پرخپل ځای نشته ، ده داس دورکیدو پرډول ډول سببونو فکرکاوه اوله‌کوره‌یی د بل آس دراخستلو په‌نیت دښار په‌لور منډه واخستله خو چی دونو له‌منځه ووت‌شنکر یی ولید چی آس یی ترجلب نیولی دی او ورسره کشوی یی.

یاغی اس گام‌پرگام په‌دوو پښو دریده او شنکر به‌تری وویریده په‌یوه لاس‌به‌یی دآس جلب نیولی ؤ او په‌بل کی یی‌لښته ورته خوځوله اوله ځانه‌یی لری دایسارولو هڅه کوله.

نن‌بیا ښار ته زررسیدل دشنکر لپاره د ژونداومرگ مسأله وه، نن ده ډیر څه‌لیدلی وو رندهیر درام داس زوی دیوی تیټ‌ذاتی نجلی پرپښو لاسونه وهلی وو اوهغه‌یی دلیونو په‌څیر په‌غیږ کی نیولی وه‌او منډی یی وهلی ،کاشکی رندهیر ترلږځنډ نورهم په‌هغه‌ځپره کی پاتی شی خودغه یاغی آس دغه‌بدماش ضدی اوناپوه ځناور چی‌دانسان‌له بوج سره‌دباد په څیر زغلیدای‌شی دشنکر دبدمرغی په‌سبب نن‌د وراندی تلو پرځای دشاته‌تلو تمرین‌کاوه.

آس په دی نیت ده‌ورسره راوستلی ؤ چی رندهیر ترده مخکی کور ته‌ونه‌رسیږی دده‌دی ته هم پام ؤ چی اس دڅبوت په‌څیر وړاندی کړی رام داس به‌بیا دده هری خبری اوریدو ته چمتو شی خو دا اس؟

کاشکی نن‌یی مخ دلکی خواته گرځیدلی وای.

درندهیر غږاوچت‌شو:

آس چې درندهیر غږ واورید و شنیده او دمخې پر دووپښو ودرید.

درندهیر دوهم غږ اوچت شو:

داچیرته درسره بیا یې؟ گوره جلب یې پرینږدی... اوهو... جلب یې له پاسه ونیسه.

شنکر وېرېده:

هوصیب! داسې دی لکه غابښونه یې چې نه وي، رندهیر نژدې ورغی اس یې ترجلب ونیو او په غوسه یې وویل:

ته ډیر احمق یې! آخر تاله هغه ځایه ولې را خلاص کړی دی؟

شنکر په طنز یه لهجه ځواب ورکړ:

صیب! ما فکر کاوه چې تاسو لکه چې دهغه تیټ ذاتې نجلی په مینه کې دا بیچاره هیر کړ.

رندهیر په غوسه شو وېې ویل:

گوره شنکره! له درمسال نه بهر ستا هیڅ کار نشته.

که دی یو سوڼ له خولې وتلې ژ بیا به زه پوه شم چې ته برهمن نه یې.

رندهیر بیا پر آس پښه واړوله او دستر گو په رپ کې دشنکر له نظره ورک شو.

# پاړوگر

پر آســمــان درنگارنگ وریځــو توتې غــوړیدلې وې چې ورو ورو په یوه تیــاره رنګ، پرده بدلیــدلې، چې رندهیــر کوم پنځــه مــیله لاره ووهله شړکند باران ونیو، دوړو کیو هسکو تیتمو او غونډیو په منځ کې چې تیر شو مخې ته یې یو نسبتاً هوار میدان راغې، وروستی میل لاره یې وړوکې وړوکې خوړونه مخې ته راغلل چې ترې تیر شو، دې په ختمو او باران لیت پیت ؤ چې دیوې غونډۍ په لمنه کې دتیټ ذاتو یوه کلې ته ور ننوت، یوې جونګړې ته چې ورنژدې شو چیغې یې وکړې: څوک شته! څوک اورې!

یو ښځې سر له دروازې رابهر کړ او ترڅو رندهیر هغې ته څه ویل بیرته په شا ولاړه. دښځې له تلو وروسته څو شیبې وروسته یو ځوان رابښکاره شو او د آس له قد او قامت نه یې دسپاره دارځبنت أندازه ولګوله له جونګړې نه بهر ته راووت.

رندهیر ترې وپوښتل:

دلته کوم پاړوگر او سیېږي!

-هو کې باداره دهغه جونګړه هغه دبړ ونې ته مخامخ ده.

زه ستاسو له جونګړي نه کرکه نه لرم، مګر زه نن غواړم چې پاړوګر پيدا کړم، هغه چير ته تللى دى؟

ځوان ځواب ورکړ:

تاسو نن هلته نشى رسيداى، هغه نن سهار ځوکسانو دچا دعلاج لپاره له سينده پورې غاړې ته ورسره بيولى دى.

– مګر دا ضرورى ده چې نن يى پيدا کړم. هغه کلى څومره لرى دى؟

– کلى لرى نه دى، له سينده پورې غاړې ته پټکارى، خو په داسى باران کې معلومه نه ده چې او به څه وخت او څومره پورته شى. نن به څوک سيند ته د کښتى ورغور ځولو همت ونکړي.

رندهير لږ مايوس غوندى شو او له آس نه پلى شو د ځوان پراوږه يى لاس کيښود ويى ويل:

ګوره! دا دچا دژوند خبره ده.

زه ستا مرسته غواړم، په يوه لاره مى له سينده پورې غاړې ته ورسوه.

ځوان زړه نازړه شو ده ته يى وکتل.

رندهير دځپل لاس له ګوتيى څخه دسرو زرو ګوته وايستله هغه ته يى ونيوه ويى ويل:

دا واخله ،اوس له ماسره نورهيڅ هم نشته.

تيت ذاتى ته دهغه پراوږه ديوه لوړ ذاتى دمينى او مهربانى لاس له هغه ګوتيى څخه څو چنده قيميتى ؤ ، هغه وويل:

دی تهوار تیا نشته

زه په یاغي څپو کې هم له سینه تیریدای شم.
یوازې دهغه پاړوګړ د راوستو لپاره کښتۍ ته اړتیا وینم.
ځوان وویل:
هغه له اوبو نه لې ویریږي خو ښایي تا ته انکار ونکړای شي، خیر دی وبه ګورو هغه په زور هم راوستلای شو.
راځه! زه به ستا آس په کور کې وتړم، سیند دلته ډیر نژدې دی.

## (۲)

ځوان آس په جونګړه کې دننه پریښود او له رندهیر سره ملګری شو، دواړه په منډه دسیند غاړې ته ورسیدل.
د کب نیوونکیو څلور وړوکې کښتۍ وې چې دسیند پرغاړه پر موړیو پورې تړلې وې او په اوبو کې یې تالونه خوړل. ځوان کب نیوونکي یو دخاورو کنډولی راواخیست او دکښتۍ اوبه یې پرې لرې وغورځولې.
رندهیر له بلې دغسې یوې کښتۍ څخه کنډولی راواخیست او له کب - نیوونکي سره په کار کې شریک شو.
دواړو دکښتۍ له منځه داوبو په ایستلو او کښتۍ دسیند څپو ته ورغورځولو کې ډیر ځنډ ونکړ.
کب نیوونکي پرې خلاص کړل او بانس یې اوچت کړ، رندهیر ور ته وویل:
اوبه خو تر اوسه پورې نه دي راختلې؟

خو ده له هرې څپې څخه د تیریدلو او د ګرداب نه د وتلو نه وروسته همدغه خبره تکرارولـه چې:

باداره! داخو هیڅ نه دی، ما لـه لویو توپانونو سره ډغرې وهلې دي، اوس که پر مورږ هلته څنډ ونښي نو ښه به وي، او به ورو ورو راپورته کړي.

بلې غاړې ته چې ورسیدل کب نیوونکي د کښتۍ پړی پر یوه ډبره پورې وتاړه او دواړه په منډه ولاړل له ښنډې څخه کوم دوه سوه ګامه لرې یوه کلي ته ورننوتل.

کب نیوونکي یوې جونګړې ته اشاره وکړه ویې ویل:

دا د کلي د ملک کور دی، راځه ته همدلته ایسار شه زه به د پاړوګر درک معلوم کړم.

رندهیر ځواب ورکړ:

نه، ته لومړی دا معلومه کړه چې هغه په کوم کور کې دي ، زه هم درسره ځم.

کب نیوونکي جونګړې ته ور ننوت او لږ ځنډ وروسته له یوه عمر خوړلي سړي سره راووت ، دا د کلي ملک ؤ ، هغه چې رندهیر ولید له لرې لاس په نامه ودرید او درناوي یې پرځای کړ ویې ویل:

باداره! ته او دلته په داسې موسم کې.

راځه د ننه زه به پاړوګر همدلته راوغواړم.

-نه زه له تاسره ځم، پر ما اوس هم ډیره ناوخته شویده.

-سمه ده باداره چې ستا ښنګه خوښه ده. راځه!

- باداره! هغه اوس ښه دی، خدای خبر دی چې نن دهغه پر ښه ولی تنهاکی راوختی ، هغه دپلار او مور ایکی یوازی زوی دی. مور یې چې تناکه ولیده شور یې گډ کړ چې زوی مې مار چیچلی دی.

او هغه هلک هم ډیر ساده دی چې ورغلو دی پر کټ پرمخې پروت ؤ چې بیر ته راغلو او پاړوگر مو راوست هغه چرس څکولی وو مونږ ته یې کنځلی کولی:

تاسو ټول بدمعاشان یې، تاسو زه پر باران لوند کړم.

رندهیر وویل:

اوریدلی می دی چې دی دهر ډول مار علاج کولی شی.

-باداره په دی کې شک نشته، هغه لیونی غوندی دی خو مونږ لیدلی دی چې کله دی مار چیچلی ته پر وخت رسیدلی دی هغه یې مرگ ته نه دی پریښودی.

(۳)

دوی دری واړه خبری کولی او یوی چوتری ته ور ننوتل.

پاړوگر دکلی دخوکسانو په منځ کې ناست ؤ او دپیریانو ، شیشکو او دیوانو کیسی یې کولی، دهغه یوه نوکر دبنگو یو چیلم پری ایری کړی ؤ بل یې ورته تیاراوه.

ملک پاړوگر ته لنډ ورغی او په غوږ کې یې څه ورته وویل.

او هغه سرو خوځاوه په لوړ غږ یې وویل:

ته پوهیږې چې دا څوک دی؟ دا دبیاس دسیند پورې غاړې لوړ ذاتو دښار اوسیدونکی دی او په دې هیواد کې یوازې دهمدې ښار سردار داسې څوک دی چې له موږ نه کرکه نه کوي.

که هغه خبر شي چې زما دښار یو څوک دپاړوگر لپاره دلته راغلی ؤ او هغه بیا داسې نه ځواب ورکړی ؤ نو خامخا به خپه شي.

خلکو چې داواوریدل یو له بل سره یې پسپسکې پیل کړې.

او ملک پاړوگر ته وویل:

کالو! پوهیږې چې دغه خلک دې زولنې په پښو کې هم بیولې شي.

رندهیر ددې لپاره چې دملک خبرې نورې هم ښې اغیزمنې شي وویل:

دښار سردار زما پلار دی. بیا هم زه دې ته مجبور وم.

په تلو کې به خامخا به په باران کې په زحمت شي خو چې زه یې دچا دژوند ژغورلو لپاره غواړم راسره بوزم هغه ستاسو دقوم یوه نجلۍ ده، هغې زما په پښو کې مارولید، غوښتل یې ماوژغوري او مار هغه وچیچله.

دسردار دزوی په مخ کې خلک لاس په نامه ودریدل، او ملک وویل:

باداره! ستا لپاره زموږ سرونه حاضر دي، بیا یې پاړوگر ته مخ واړاوه:

کالو! جگیږې که دې په زور بوزو؟

دکالو دمغزونو نه لا دبنگو نشه نه وه تللې بیا یې هم چې دخلکو غوسه ولیده جرئت یې په ویره بدل شو، هغه وغومبیده:

گوره په باران کې مې بهر ته مه بیا یې، مړ به شم، کښتې به په سیند کې واوړي او ما به... ما به نهنگ وخوري.

پاړوګر ته د بنګو په نیشه هلته په څپره کې راتول خلک تول نهنګان ښکاریدل، چیغې یې کړې :

وګوره نهنګ! او بیا یوه کونج ته ورغونج شو.

ملک وویل:

نن یې ډیر بنګ وهلې دی. خو مورږ یې د نیشې تر الوتو انتظار نشو کولی. په باران کې به یې ماغزه زر سم شي. چهجو! ته دده کڅوړه درسره راواخله.

یوه تن د پاړوګر کڅوړه اوچته کړه او ملک له څلورو ځوانانو سره پاړوګر په زور بهر ته راویوست، هغه تر لږ ځنډه لاس او پښې وغورځول کنځلې یې وکړې خو توند باران او د ځوانانو ځواکمنو متو یې دماغ ور برابر کړ.

ویې ویل:

ښه ده پرې مې ږدی، ځم.

چې ځنډې ته ورسیدل رندهیر پوه شو چې دسیند وضع بدله شوې ده، هغه ډېره چې دوې د کښتې پړې تړلې و اوس په اوبو کې ډوبه شوې وه، ځوانانو په تندی کې چې رندهیر د پریشانۍ نخښې ولیدې ملک ته یې وکتل.

هغه ورته وویل:

باداره! خطر خو شته خو زه درسره ملګری یم، ستا خو لا مبو زده ده؟

رندهیر ځواب ورکړ:

زما لامبو نه ده زده، ډوب به شم، پرما رحم وكړى.

خو خلكو په زور په كښتى كى ورسپور كړ.

په دى كښتى كى بوازى يو بانس ؤ، ملك يوه تن ته دبل دراوړو وويل، هغه په منډه له نژدى يوى بلى كښتى څخه بل بانس راوړ. رندهير له پاړوګر سره نژدى كيناست او ملك او ځوان مانو دكښتى پر تيل وهلو بوخت شول.

كوم وخت چى هغو دواړو دسيند له توندو څپو سره مقابله كوله پاړوګر دراز په توګه ورو رندهير ته وويل:

رښتيا ووايه ستا لامبو زده ده؟

رندهير ځواب وركړ:

هو كى زده مى ده.

پاړوګر سوړ اسويلى وكيښ ويى ويل:

نو بيا خو به دغه بدماشان خامخا كښتى ډوبه كړى.

– ولى؟

– بس ددوى له ماسره سيالى ده، فكر كوى چى كه ما ډوب كړى څوک به مى پوښتنه كوى، كه ستا لامبو نه واى زده نو دوى به ستا د ساتنى خيال ساتلى ؤ، خو اوس دوى پردى داده دى چى تاسو به په لامبو ځان وباسى او دى بدماشانو ته ګوره داسى كښتى چلوى لكه چى دا سيند نه وى كومه وياله وى.

رندهير پاړوګر ته دتسلى په نيت وويل:

-دوی تر موږ زیات پام کوي.

-خاوري پام کوي. ددي خلکو په باب به هغه وخت پوه شي چې کښتی واوړي.

وای هغه ده څپه راغله.. گرداب ته کیوتو.

هلته گوره څه شي راغلل، نهنگ دي نهنگ. هغه یوه لرگی ته چې اوبو ورسره راوړ په لاس اشاره کوله.

د ملک تجربې او ځوان ماڼو همت کښتی روغه رمته بلی غاړي ته ورسوله او دوی په منډه کلي ته ننوتل.

ځوان له څپري څخه آس راوست. پاړوگر وویل :اوس خو ماښام دی موږ به ښار ته کله ورسیدای شو ؟

رندهیر ور ته وویل:

ته پر آس په ماپسی راسپور شه اوس به ورسیږو.

- هی هی .. زما پلار، زما د پلار پلار، زمانیکه پر آس نه دی سپور شوی، او دا خو آس نه دی پیری دی، زما خو دده په لیدو اروا بوږنیده.

ملک رندهیر ته وویل:

ته پر آس سپور شه دا دده کڅوړه درسره واخله ، دی به موږ له شا درپسی بار کړو.

رندهیر په بیړه پر آس سپور شو او کڅوړه یی ورسره واخسته. ملک او دهغه ملگریو پاړوگر په داسی حال کی چې چیغې یی وهلی له شا ورپسی سپور کړ.

زه ستاسو نوم پوښتلی شم؟

ځوان ماڼو په ځواب کی وویل:

زما نوم نتهو دی.

ملک وویل: زما نوم دهر مو دی. افسوس چی ته په باران کی راغلی او په باران کی بیر ته روان شوی. موږ ستا هیڅ خدمت ونکړای شو.

-تاسو زما سره ډیر ښه وکړل. اوس خدای ته زاری کوی چی دهغی ژوند وژغورل شی. زه به بیا کله له تاسو سره ووینم.

رندهیر د آس جلب لږ سست کړ او پاړوگر له ویری لاسونه دده تر ملا تینگ راوڅرخول. دهر موڅو گامه له آس سره منډی وهلی کالو ته یی وویل:

کالو! له موږ نه خپه نشی. ته دیوه ښه کار لپاره روان یی، که ته دهغه نجلی ژوند ونه ژغورلای شی نوزموږ ټولو بدنامی به وی.

چی له کلی راووتل رندهیر اس پونده کړ، او هغه دباد په څیر گړندی شو، پاړوگر چیغی وهلی:

لږ کرار! لږ کرار څه. ستا دی پر خدای سوگند وی، په دیو تاگانو دی قسم.

چی نیمایی لاره یی ووهله رندهیر شپی راگیر کړ او آس یی کرار کړ. دباران زور لږ کم شو.

خو په تیاره کی یو گام وړاندی هیڅ نه لیدل کیدل.

وروستی دوه میله لاره خوړونه او غونډی داسی سره ورته وو چی رندهیر

شو او په ډیره عاجزۍ یې دشانتا دژوند دعا کوله. چې جونګړۍ ته یې نژدې شو څه غږ یې وانه ورید تسلي شو، مادهو او بدهو چې د آس د پښو ترپهار واورید له څپرۍ نه راووتل مادهو غږ وکړ:

څوک یې رندهیر؟

هغه په ناکارۍ تری وپوښتل؟

شانتا څنګه ده؟

هغه وړاندې ورغی د رندهیر د آس جلب یې ونیو ویې ویل:

هغه په هوښ کې نه ده. بیا یې وپوښتل:

پاړوګر راته غی؟

دا زما شاته سپور دی کوز یې کړه.

بدهو ور وړاندې شو د پاړوګر دراښکته کولو لپاره یې تکیه ورکړه.

رندهیر کځوړه مادهو ته ونیوله او له آس نه پلې شو ویې ویل:

آس چیر ته وتړم؟

بدهو د آس جلب په لاس کې ونیو ویې ویل:

زه به دا د څپرې دلاندې وتړم. مادهو ته دوی دننه درسره بوزه.

**(٤)**

دچراغ په تته رڼا کې رندهیر شانتا ولیده چې پر یوه کټ بې سده پرته وه، کنول یې سرته ناسته وه.

پاړوګر پوښتنه وکړه:

[illegible]

دلته! تنباکه یې ما وځیرله.

– تابه وکړل چې تنباکه دې شیرلې ده. نجلې به وژغورل شي ماته مار هم دیر زهرجن نه ښکاري.

پاړوګر دا وویل او پر زخم یې خوله ورکیښوده او هغه یې زبیښلو او لاړې یې تو کولې، دشانتتا د زخم شاوخوا پنډې توره او نوره تکه سره اوښتې وه او سوی یې کاوه.

تر څو چې له زخم نه توله وینه پاړوګر نه وه زبیښلې تر هغو یې پرینښود.

بیا یې له کڅوړې نه دلرګی یو قطی راواخیست او له هغې نه یې تور رنګی پوډر پر زخم ودوړاوه. شانتتا د پوډر په سوي زګیروي وکړل او سترګې یې وغړولې بیا یې په بستره کې لاسونه او پښې وغورځول.

پاړوګر وویل:

دا لږ څند راقابو کړي.

بدهو دهغې پښې او مادهو او رندهیر یې متې ونیولې.

شانتتا ددوی په لاسو کې بې وسه شوه یوې او بلې خوا ته یې وکتل او بیا یې سترګې د رندهیر پر څیره میخ شوې.

پاړوګر کنول ته وکتل او ویې ویل:

ستاسو په کور کې که غوړي وي زر یې تاوده کړه رایې وړه!

کنول جګه شوه له یوې ګوښې نه یې د کتېږي نه دخاورې په پیاله کې غوړي راوایستل او په کونج کې نغرې ته کیناستله په نغرې کې دیوه غټ لرګي یو

سر بلیده، کنول له هغه

ورغوی کې راواخیست او کنول ته یې غږ وکړ:
بس دی نور یې راوړه ډیر تود ولو ته یې حاجت نشته.
کنول غوړی راوړل او بیا یې وویل:
جگه شه لوری دغه دوا وخوره غوړی پسې وڅښه سبا ته به رکه روغه وې.
مادهو په لاس تکیه ورکړه او شانتا یې راکښینوله.
شانتا وویل:
دوا خورم ، غوړی نه څښم، کانگی پری راځي.
بدهو ورته وویل:
څښې به یې لورې!
کنول هم ورته وویل:
شانتا کم عقلي مه کوه.
شانتا مایوسه شوه رندهیر ته یې وکتل، هغه همدومره وویل:
وڅښه شانتا!
په دې الفاظو کې یوه هیله وه چې شانتا رد نکړای شوای. یو حکم ؤ چې دې سرغړاوی نشو تری کولی، د رندهیر په غوښتنه دې دزهرو پیاله هم پر سر اړولی شوای.
بیا یې وموسکل او خوله یې خلاصه کړه. پاړوگر دوا په خوله کې ور واچوله او کنول غوښتل په خپل لاس غوړی پری وڅښې خو دې پیاله تری واخسته او غوړی یې وڅښل او په بریمن انداز یې رندهیر ته وکتل .

پیل وکړ.

رندهیر چې دشانتا بدلیدونکې وضعه ولیده دپاړوګر تر منتر پر دوا ډیر باوري شو. ستومانه پاړوګر زر خپل منتر پای ته ورساوه.

دشانتا له وضعې نه چې داده شو رندهیر ته خپله لوږه او تنده ورپه یاد شوه، بدهو په یوه ذهني کشمکش کې راګیر ؤ.

په کور کې پر ډوډۍ او کوچو برسیره بنه ډیر تازه کبان وو، خو رندهیر یې ډوډۍ دبلنې جر ئت نه کاوه او دده په وړاندې یې پاړوګر ته هم څه ویل مناسب نه بلل.

دذات اوقوم نه پر ته دوی فکر کاوه چې رندهیر به په سرو او سپینو لوښو کې په خوراک روږدی وي که فرضاً هغه ددوی بلنه ومنې هم په خاورینو جامونو کې خوراک به ځان ته سپکاوی وبولي.

خو سکدیو هم څه عادي څوک نه ؤ، هغه دخاورینو لوښو نه کرکه نه کوله.

دی هم بنايي دسکدیو په څیر وي او دخاورینو لوښو نه کرکه ونکړي. آخر په پوښتنه کې څه عیب دی.

په دې خیال دبدهو لږ تسلي وشوه او رندهیر ته یې دمناسبو الفاظو په اړه فکر وکړ. خو بیا یې دا په خیال کې راتیر شول چې سکدیو دکنول په خاطر په خاورینو لوښو کې په خوراک او په جونګړو کې پر اوسیدو مجبور ؤ، مګر دی خو څه مجبوري نه لري، که وي نو شانتا ؟

آیا دا کیدای شي چې رندهیر او شانتا یو دبل لپاره سکدیو او کنول

هغه پيغام چې دازل له ورځې يې هر ژوندي انسان خپل مخالف جنس ته ورکوي.

بدهو په خپل زړه کې وويل:

دا خو بده جوړه نه ده مګر پاى به يې څنګه وي؟

آيا رندهير دشانتا لپاره دومره لويې قرباني ته تيار دى؟

رندهير وويل:

زه اوس کور ته ځم، پلارجان به مې ډير پريشانه وي، سبا ته به بيا راشم.

دبدهو دخيالونو لړى وشليده، رندهير له خپلې ګوتې طلايي ګوته راوايستله پاړوګر ته يې ونيوه ويې ويل:

نن تا ډير خدمت وکړ. زما سره اوس نور هيڅ نشته.

زه سبا ته بيا راځم، تر څو شانتا نه ده روغه شوې ته به چيرته نه ځې.

پاړوګر دسرو زرو ګوتې ته په تمه وکتل او غوښتل يې لاس ور اوږد کړي چې کنول وويل:

نه نه، دانشي کيداى، تاسو خپله ګوتيى له ځانه سره وساتى.

تاسو پر موږ ډير احسان کړى دى، بيا جګه شوه ديوه صندوق سر يې پرانيست او يوه ګوتيى يې راوايستله پاړوګر ته يې ونيوه ويې ويل:

ستادنيکى بدل موږ نشو درکولى خو تردې ګرانبيه شى له ماسره نور نشته، دا دشانتا دپلار ورروستي نښه ده.

پاړوګر وپوښتل:

هغه مړ شوى دى؟

پاړوګر وویل:

دکونډی مال پر ما حرام دی، دا در سره وساته.

رندهیر دپاړوګر لاس ونیو او خپله ګوتیی یې ورکړه او هغه غلی دخپل پوډر په ډبلی کی واچوله او کڅوړی ته یې ور وغورځاوه.

کنول وویل:

بچیه! دا ته واخله که نه زه به خپه شم.

رندهیر ځواب ورکړ:

نه موری! دادی له ځانه سره وساته، خو دبدهو او مادهو په ټینګار رندهیر ګوتیی واخستله هغی ته یې چی په ځیر وکتل ځو توری یې ولیدل او چی د ډیوی رڼا ته یې یووړه ویی لیده په حیرانی او خوښی یې شانتا، مادهو او کنول ته وکتل، پرګوتی دسکدیو نوم کیندل شوی ؤ.

ده پر توره دخپل پلار نوم پخوا لیدلی ؤ، دغه راز یې پټ نکړای شو پوښتنه یې وکړه:

مادهو! ستا دپلار نوم سکدیو ؤ؟

مادهو ځواب ورکړ:

هو کی!

رندهیر دخوښیو په احساساتو کی له هغه سره غاړه غړی شو، مادهو یې پرینښود بیا یې شانتا ته مخ واړاوه ویی ویل:

شانتا! زه غواړم څه شی درکړم خو انکار به نه کوی.

[illegible]

بیا یی کنول ته وکتل وَیی ویل:

موری! زه درام داس زوی یم، تاسو به هغه پیژنی!

کنول لکه چی ورک کړی زوی موندلی وی په مینه یی د رندهیر پر سر لاس کیښود ویی ویل:

زویه! ته هماغه یی دنورو سره غمشریک او ملگری!

رام داس مور له جیل نه راوایستلو او تا زما دلور ژوند وژغوره، ژوندی اوسی زویه!

ترتولو وروسته یی بدهو ته وکتل ویی ویل:

بنه زه اوس ځم، سهار خامخا راځم.

بدهو وویل:

راځه آس دی تر څپره لاندی تړلی دی.

بدهو او رندهیر بهر ته راووتل شانتا بیرته سترگی پټی کړی خو داځل ددی دسترگو پټولو سبب دمار زهر نه وویلکی پر دماغ یی دخوښی یوځانگړی کیفیت خپور شوی ؤ.

**(۵)**

دبدهو نه له رخصتیدو وروسته رندهیر نیغ کورته دتلو پرځای لوی ډنډ ته ولاړ او آس یی پرونه پوری وتاړه په ختمو کی له لیت پیت جامو سره اوبو ته ور کوز شو.

فکر کولو نه وروسته داسی احساسوله چی دټیټ ذاتو په باب چی ده دټولنی په دنګو مانيو کی داوسیدو په مهال کومه رایه او نظر درلود څومره غلط اوبی ځایه ؤ.

ده په وار وار له خپل زړه نه پوښتل چی د رمو او نتهو غوندی خلکو ته ټيټ ذاتی ويل ګناه نه ده ؟ زموږ په ښار کی به څومره کسان وی چی څوک په مصيبت اوستونزو کی ښکيل ووينی له دومره ايثار اوخلوص نه به کار واخلی درندهير په مغزکی دټيټ ذاتی معنا دانسانانو هغه ډله وه چی په تنګو اوتيارو جونګړو کی يی دمينی ډيوی بلی وی.

رندهير په خپل خيال کی يوه داسی نړی جوړوله چی په هغو کی ټولو انسانانو يوه درجه درلوده. برهمن اوټيټ ذاتی ټول په يوه صف کی ولاړوو او قانون يی هر انسان ته د ژوند او ژواک يوډول آزادی اوحق ورکړی ؤ ، مذهب يی ټولو انسانانوته د خلاصون او ژغورنی لاره ور ښودله اود عبادت ځايونو دروازی يی دهر عبادت کوونکی پر مخ پرانيستلی وی هغه آسمان ته وکتل اوپه ډير خلوص يی دادعا وکړه:

خدايه! ستا دنيا يوه داسی انسان ته اړتيا لری چی ستا سا ده زړی او کمزوری بنده ګان دغرضی انسانانو له واکمنی نه وژغوری.. دغه دنيا چی تايی دښکلاپاره لمر، سپوږمی اوستوری پيدا کړی دی ، چی سيندونه پکی بهيږی شمال پکی الوزی ، ونی پکی ټالو نه خوری

تولی دروازې وتړي.

خدایه! ستا په بڼ کې اوس داسې ازغي لرونکي بوټي راشنه کیږي چې تر هغو لاندې په زرگونو تاند او نازک بوټي دهوا او رڼا ارمانجن دي اوس ستا بڼ یوه بنوال ته اړتیا لري چې هغه ازغن بوټي غوڅ او لرې کړي او د هغو نرم او نازکو بوټیو سره یې برابر کړي، یا د غوبوټیو ته اوبه ورکړي او د ازغنو بوټیو سره یې برابر کړي.

خدایه! زه نن د غلامانو جونګړو ته تللی وم، پر هغوی مې لاسونه لګیدلي دي او خوښ یم چې نن زما مغزو ته ستا سپې خیال راغی. زه مې په زړه کې یوه نوې رڼا وینم، خو زما سره کوم داسې مشال نشته چې نورو ته ستا سمه لاره وښودلای شم.

خدایه! دې هیواد ته کوم د مشال خاوند راواستوه.

د دعا نه وروسته رندهیر احساس کړه چې راتلونکی سهار ده ته د یوه نوي ژوند پیغام راوړي د سپین سهار د زیاتیدونکې رڼا په وړاندې دور کیدونکیو تیارو په څیر د مذهب او خدای په باب د ده په فکر کې زړو خیالونو ځای نو یو خیالونو ته پریښود، بیا رته چې نژدې شو داسې یې ګڼله چې د تولنې د قانون په باب یې په زړه کې نه پخوا نې درناوی شته او نه ویره.

چې بیا رته ننوت رندهیر د سپرو یوه ډله ولیده او ده ته معلومه شوه چې کرې شپه نه سردار او نه یې سپاهیانو خوب کړی دی. خلکو چې دې ولید چیغې یې پیل کړې:

یی گرندی کړ.

رام داس اوارجن له کوره بهر په یوه دالان کی ناست وو اودده انتظار یی کاوه، رندهیر په بیړه له آس نه پلی شو اوهغه یی یوه سپاهی ته وسپاره په منډه ورغی لومړی یی پلار اوبیا ارجن ته سلام وکړ.

رام داس زوی ته ورته غاړی شو ویی ویل:

زویه! تاخو موږ ډیرپریشانه کړو چیرته وی؟

دهغه په سترگو کی دخوښی اوښکی ځلیدی.

-پلار جانه زه.....له ښاره لری ولاړم په لاره کی باران راگیر کړم،چی راستون شوم تیاره شوه لاره می ورکه کړه.

ولاړشه بچیه جامی دی بدلی کړه ته به وږی شوی هم یی ډوډی به دی نه وی خوړلی.

ماسپښین مهال رندهیر له درانه خوبه را ویښ شو.

موهنی یی سرته ناسته وه او خندل یی ،دی وغځید او بیا را جگ شو.

موهنی ورته وویل دا دریم ځل دی چی را غلم اوس می ډیر په زحمت را ویښ کړی چیرته وی توله شپه؟ زما پلار ستاله پلار جان سره توله شپه لټولی او مور جانی هم توله شپه ژړل.

رندهیر وویل: موهنی تاته دروغ نشم ویلی زه دلوی ډنډ غاړی ته تللی وم.

- توله شپه....؟

- نه شانتا مارو چیچله.

- اوف بيچاره اوس څنګه ده؟

- اوس ښا يې وړغورل شي زه له‌دې ځايه نژدې اته- نهه ميله‌لرې دسيند نه پورې غاړې ته‌ديوه پاړو ګردرا وستلولپاره ورغلى وم.

- په‌داسې توپان کې له‌سينده څه ډول پورې‌وتې ؟

رندهير ددې پوښتنې په ځواب کې دخپل سفرتوله کيسه تيره کړه بيا يې له‌موهنې نه‌وپوښتل:

دشانتا دليدو لپاره ځې؟

- څه‌وخت؟

- همدا اوس، ته‌ولاړه‌شه زه درپسې درځم.

لومړى خو په دې وخت کې په‌لاره کې مونږ څوک نه‌وينى که په مخه راغلل ورته ووايه درمسال ته‌ځم.

**(٦)**

شنکرله‌تيرواتو شپوراسې‌دا احساسوله چې دښار مذهبي مشر، سردار اودهغه‌سرتيرى تول دغفلت په‌خوب ويده دى‌او خداى دټولنى دساتنې ټول مسووليت دده پراوږو وراچولى دى. تيرى اته ورځې دستومانى ،لوږى اوتندى‌له‌احساسولوپرته ده درمسال ،ښار، لوى ډنداو دتيپ ذاتو تريوه کلى پورى منځ لاره څوځلى وهلى وه ، ماسپښين مهال‌چى کله‌رندهيرله‌ده‌نه‌آس واخيست اوپښه يې پرى واړوله دهغه مخه‌دښار په‌لور نه‌وه.

ځکه دې‌بيرته دلوى ډنډ پرغاړه‌جونګړو ته په منډه ولاړ رندهيرهلته

دونو په منځ کی ولاړ ؤ اوچورت یی واهه کله چی باران پیل شــو دی درمــسال لوری ته ولاړ په درمــسال کی دده ناکراره اروا ترډیره تم نه شوه.

رندهیر چیرته ولاړ؟ دی پوښتنی دی ډیر ځوراوه.

ترلږ ځنده یی په درمــسال کی لـه آرام وروستـه پـه منده ځان ښار ته ورساوه رندهیر هلتـه هم نه ؤ. ده غـوښتل چی رام داس ته دخپل زړه براس وباسی خوچی دهغه له رعبه ډکه ځیره یی ولیده جرئت یی ونکړای شـو، دده داتمـه نه وه چی هغـه دی ترخـو پخپلو سـترگـو ونه وینی درندهیر په باب داسی خبری ومنلی شی ترځنده یی په ښار کی درندهیر انتظار کاوه.

دشپی یوځاښت تیر شو چی درندهیرپلټنه پیل شوه ده بیا دکنول دجونگړی په لور منډه واخستله.

هغه بیا مایوسه شو خو چی دکنول، مادهو او بدهو خپلمنځی خبروته یی غوږ ونیو وپوهیده چی هغوی درندهیر دراتلو انتظار کوی هغه درام داس دراوستلو لپاره بیا دښار په لور منډه واخستـه خو هغه سپاهیان ورسره ملگری کړی وو اودرندهیـر پـه لټـون پسی وتلی ؤ ،ترلږ ځنده پوری سترړی اوبی سیکه شو، خو دمسوولیت پیژندنی اودرک بیرته دمــه ور جـوړه کــړه، ده ترډیرځنده د رام داس انتظار ونه کـړاو بیــرته دجـونگړو په لـور ولاړ، هغــه په جـونگړه کی دننه درندهیــر غږ لـه لری وپیژانده، رندهیر ویل ښه ده زه نور ځم.

گنله لکه ډوبیدونکی چی کومی څانگی ته ورسیږی هغه ډاډه شو درمسال ته ولاړ او پر کټ پر یووت ویده شو.

ماسپښین مهال یی چی سترگی وغړیدی ویی لیدل چی گوپال داویو کوزه پری ورتشه کړی ده او مذهبی مشر سری سترگی ولاړدی اووایی چی که دغه بی عقل وړی اوتږی نشی ،نوشپه او ورځ به ویده وی نه عبادت نه مذهبی سرود ، گوپاله چی دی کله لا مبی اوکه نه؟

گوپال ځواب ورکړ:

باداره! زه کله کله دغسی په ویدو اوبه پری ورتشوم.

- کری شپه څه شی کوی؟

- هیڅ نه باداره! ده چی دمابنام ډوډی وخوړه ویده شو.

مذهبی مشر شنکر ته بد رد ویل اود ښار په لور روان شو اوشنکر گوپال ته له څو کنځلو وروسته د لوی ډنډ په لور منډه واخیسته ،هغه په وار وار په خپل زړه کی ویل:

هغه به اوس بیرته را غلی وی ،زه ولی ویده شوم ولی خوب را غی؟

دجونگړی مخی ته دلږ ځنډدریدو نه وروسته پوه شو چی رندهیر دننه نشته هغه دډیری مایوسی په حالت کی بیرته را وگرځید خوډیر نه ؤ تللی چی زړه یی دخوښیو په سمندرکی په غوپوشو. رندهیر او موهنی راروان وو. دی دیوی ونی شاته غلی شو رندهیر اوموهنی خبری سره کولی تری تیر شول، ده ترجونگړی پوری هغوی وڅارل چی درندهیر په څیر موهنی هم ده ولیده چی جونگړی ته ننو تله بر خپلو سترگو یې باور

کیده:

شانتا خوری! اوس څنگه یی؟

شنکر چی دا واوریدل دوی پښی یی خپلی دوی یی پور کړی او دښار په لور یی منډه واخیسته. کاشکی دیو تادلی څند لپاره ده ته دالوتو څواک ورکړی وای.

ښار ته نژدی یی مذهبی مشر ولید چی څو خبری یی واوریدی هغه هم له ده سره دښار په لور په زغاسته شو.

# دمادهو ديوى

کنول له يوى مودى وروسته موهنى ليدله ځکه يى ونه پيژندله ، بدهو دالومړى ځل وليدله ځکه خو يو ډول ترى تررعب لاندى راغى ، مادهو دموهنى نوم واخيست ودريدحيران شو او څو شيبى يى پر هغى سترگى وگنډلى، ددوى جونگړى ته دموهنى راتگ دده له هيلى ډير لوړوو. کله چې موهنى له شانتنا سره خبرى پيل کړى نودده حيرانى په خوښى بدله شوه هغه کټ مخى ته راکش کړ او ويى ويل:

موهنى ديوى دلته کښينه! موهنى دمادهو ترغوښتنى زيات درندهير په اشاره مخ شانتنا ته واړاوه او کيناستله.

کنول رندهيرته وويل:

زويه ته هم کښينه!

رندهير له شانتنا نه لږ لرى کيناست.

کنول ترى وپوښتل:

زويه داستا خورده ؟

هغه ځواب ورکړ:

- هوکی رایاد شول، هغه وخت داړوکی وه دی پرخپل تیکری دمادهو سرتړلی ؤ. ډیره ښه نجلی ده، څنګه یی لورکی!

موهنی ځواب ورکړ:

ښه یم، شانتا خو اوس روغه ښکاری!

پاړوګرچی تراوسه پوری چوپ ناست ؤ وییویل:

ولی به نه رغیږی! ماخو داویښتان په لمرکی نه دی سپین کړی.

رندهیر وویل:

تاډیر زحمت وګاله.

کنول وویل:

اوس دی غواړی ولاړ شی، ماډیری زاری ورته وکړی چی یوه دوی ورځی نورهم ایسار شی.

رندهیر پاړوګر ته وویل:

که یو دوی ورځی پاتی شی څه کیږی!

پاړو ګر ځواب ورکړ:

نور دلته زما هیڅ کار نشته که هلته څوک په ماپسی راشی چی نه وم پریشانه به شی.

نن باران نشته، او امکان لری سبا ته باران وی. بیا به زه ډیرپه زحمت شم.

رندهیر ورته وویل :

زه به دی سبا ته پر آس ورسوم.

چې پر خره به مې، رسوې، زه به له هغه سره کرار کرار ولاړ شم.

رندهير ترې وپوښتل!

ته همدانن غواړې ولاړ شې.

پاړو ګرځواب ورکړ:

زما تګ همدا نن ځکه ضروري دی چې له هغه ځایه دې نجلۍ ته یوه دوا راولیږم، هغه دلته له ماسره نشته، خودا هسې یوه پلمه وه اصلاً دې ته نا کراروُ چې کلې ته ولاړشي اوخلکو ته دسروزرو ګوتیې ور وښیې.

رندهير ورته وویل:

که هغه دوا ضروري وي نو له ماسره پر آس ولاړشه چې زربې راورسوم:

پاړو ګر ځواب ورکړ:

نه تاته اړتیا نشته تر سبا پورې به یې بدهو راورسوي. تراوسه پورې چې ما کومې دواګانې پرې خوړلې دې همغه بس دي.

بدهو چې ولید مادهو موهنې ته په وار وار سترګې ور واړوي اوپه ځیر ځیرورته ګوري نو دایې احساس کړه چې هغه تراوسه پورې د یر لوی راز ترې پټ ساتلی وُ. مادهو چې کوم بوتان تراشلي ووهغه توَل دې نجلۍ ته ورته وو، تیر مابنام چې کنول مادهو ته وویل چې دښار ښکلې اونیک خویه ځوان دپاړو ګر په راوستو پسې تللی دی نو هغه بوتان یې دجونګړې په بره کونج کې تر څادر لاندې کړل.

شانتا پاړو ګر له ګرځیدو را ګرځیدو منع کړې وه، ځکه یې دجامو یوې

یی مغ واړاوه اوکومه خبره به یی را واخسته ، ما دهو له خپل شاوخوا ناخبره اوبی پروا بیا سترگی دموهنی پر خیره گنډلی وی اوهغی هم په خپلو باړخوگانو کی یو ډول په زړه پوری تودوخه احساسوله.

بدهو دمادهو دغه حالت ولید چی پرده به دبوتانو دجوړولو پر وخت هم را تلوا وده په زړه کی به دا سی شک را پیدا شو چی دمادهو په مغزونو څه اغیزه پریوتی ده اوعقل یی پر ځای نه دی، خو نن یی چی موهنی ته کتل پوه شو چی دمادهو په لاس جوړ شوی بی روحه بوتان ددغه بی ساری حسن اوجمال تصویرونه وو ، هغه درد ناک راگ به چی ده هر سهار اوماښام دهغو بوتانو په مخکی تکرار اوه اصلاً ددی نجلی لپاره ؤ. اوهغه تازه گلان به چی ده هر سهار دبوت په پښو کی انبار کړل دیوی لوړ ذاتی دیوی په پښو کی دیوه ټیټ ذاتی یو وړوکی سوغات او پیرزوینه وه.

دبدهو په زړه کی دمادهو په باب درحم اودموهنی په باب دمینی اومهربانی احساسات په څپو شول، ده په خپل خیال کی دخپلی نازولی نږور پر سر دمینی لاس را تیرول ، دلوړ ذاتو یوی باوقاره نجلی دی جونگړی ته را تگ دهمدغی یو ښکاره ثبوت ؤ چی داد ماد هو له مینی نه ناخبره نه ده.

درندهیر اوشانتا دمینی په باب هم اوس له دوی سره څه شک پاتی نه ؤ ، کله چه هم دهغوی ژبی ، گونگی وی خو په نظرونو کی یی دره‌یی

اشنا شوی وو.

توپیر یوازی دومره ؤ چی شانتا دخپلی راتلونکی نه بی پروا وه او ځان یی دهمدغه سیلاب څپو ته سپارلی ؤ خو موهنی دخپل انجام نه ویریده ځکه خو یی دراویښو شویو څپو دبیرته غلی کولو اوویدولو هڅه کوله ، ددغه سیلاب په مخ کی وروستی گړنگ یوازی رندهیر کیدای شو. درندهیر په تکیه دی خپل زړه دمادهو په ړواندی ډبره کولی شوای، خواوس ددغی تکیی په ماتیدو کی هم دی هیڅ شک نه درلود ، لومړی ځل درندهیر اوشانتا ترمنځ یویل ته په سترگو کی اشارو چی پردی اغیزه وکړه هڅه یی کوله چی زړه پردی دوکه کړی چی ددی تیت ذاتی نجلی سره درندهیر زړه خواله لنډه او تیریدونکی ده، نن ماسپښین چی په کورکی هغه خپله کیسه ورته تیره کړه په زړه کی یی شکونو سراوچت کړ، مادهو په تیرځل کتو کی ددی په زړه کی یو نه لړی کیدونکی انځور پریښی ؤ ،دی ته به چی کله هغه وریه یاد شو اندیښمنه به شوه اوخدای ته به یی زاری کولی چی درندهیرپه مینه کی یی ټینگه کړی ، دی په خپل زړه کی دا اراده کړی وه چی بیا به مادهو نه وینی خوتن یی چی درندهیر په باب زیاتیدونکی شکونه ولید ل هغه ارادی اوتکل ماتولو ته یی مجبوره کړه.اوداشانتا سره دخواخوږی پرپلمه دی جونگړی ته راغله.

**(۲)**

موهنی چی رندهیر ولید چی په ناکراری شانتا ته گوری دایی

رندهیر پری په‌پهره ودروی ، بیا هم دی له‌رندهیر څخه دومره گیله‌نه درلوده لکه څومره چی له مادهو څخه ویریدله ، یو دوه‌ځله یې ترسترگولاندی مادهو ته‌وکتل او احساس یې کړه چی که‌نوره‌هم دلته پاتی شی نو دمینی ددغه دیو تاپه مخکی به‌وسلی غورځولو ته مجبوره شی .داوویریده ویی ویل:

رندهیره راځه کورته‌ځو!

رندهیر تکان وخوړ یوځل یې موهني او بیا شانتا ته‌وکتل ، دشانتا نظر دده پښو ته‌رنځیرونه واچول.

دهغه‌زړه نازړه توب یې‌چی ولید موهني بیا وویل: ښه‌ده رندهیره ته پاتی شه‌زه ځم بدهو ورواندی شوی ویل:

کښینه لوری! ته‌لومړی ځل زموږ کره راغلی یې.

رندهیر دبدهو خبره تائید کړه ویی ویل :

هوکی هوکی موهني لږ کښینه اوس به ولاړشو.

هوکی ماته یوه‌خبره را یاده شوه شانتا تا ویل چی مادهو دخپلی دیوی بوتان جوړ کړی دی هغه‌چیرته‌دی؟

شانتا لږ وویریده بدهو او مادهو ته‌یی وکتل، مادهو ته‌ترلږ ځنډه دموهني دپاتی کیدو تدبیر نظر ته‌ورغی ترلږ ځنډه چورت یووړ بیا یې رندهیر ته‌وکتل

رندهیر وویل:

راوبنیه ! دابده نه‌مني دیوتانو له‌لیدو سره‌ یې مینه‌ده

خوله‌رضا وګڼله ، دجونګړی یوه کونج ته ورغی اودبوتانو له‌سر نه‌یی
ښادر لری کړ.

دری بوتان کتار ولاړوو په‌هغوی کی دوه موهنی ته‌ډیر ورته‌وو او په
منځ کی یی چی کوم یو دریدلی ؤ هغه‌دموهنی یو بشپړ تصویر ؤ.
دبوتانو په پښو کی تازه ګلان انبار وو پر موهنی ترلږ څنډه سکته‌را
غله ، په ډېره تورلوکی دمادهودغه‌کمال درندهیر له‌هیلی څخه هم‌ډیر
لوړ ؤ هغه‌یو پړیل پسی بوتانو او موهنی ته‌وکتل اوله‌چپرکټ څخه
جګ‌شو دبوتانو مخی ته‌ودرید.

هغه‌وویل :

موهنی که‌ددی بوتانو په مخکی هنداره کیږدی او خپل مخ ته
وګوری نوباور می‌دی چی دخپل عکس اودی بوتانو ترمنځ به‌توپیر
ونکړای شی مادهو تاربښتیا هم کمال کړی دی.

پاړو ګر هم ورو ورو بوتانو ته‌ورنژدی‌شو هغه وویل: په‌دی بوتانو
کی یوازی. د اروا کمبود دی که‌نه‌په‌خیره او شکل کی کټ مټ دغه
دیوی ته‌ورته دی.موهنی داسی‌وه‌لکه چا یی چی لاس اوپښی تړلی
وی اوسیند ته‌یی غوځولی وی هغی ترلږ څنډه د خپلو حواسو دراقابو
کولو هڅه وکړه بیا راجګه شوه اوپه‌منډه له‌جونګړی نه‌بهر ته ووتله لږ
وراندی چی ولاړه پر سترګو یی داوښکو پردی را غلی پر یوی ونی یی
سرتکیه کړ اوپه‌سلګیو شوه خو ضمیریی ویل:

ته له یوې مودې راهیسې دده په لور ورنژدې کیدلې له مادهو سره ستازړه خواله یوازې دخواخوږۍ په سبب نه وه بلکې ستا ورسره مینه وه پردغه مینه دبرې لپاره دې غوښتل رندهیر ته پناه یوسې ، خو ته پوهیږې چې که رندهیر سره واده وکړې هم ستا په زړه کې به دغه اور بل وی ؛ ته چې کوم شی دمذهب او دود درناوی گڼې دا اصلاً دمذهب اوټولنې له بدل اوکسات څخه ویره ده موهنی ته بې همته یې اوله مرگه مخکې خپله قربانی ورکوې ته به له مادهو څخه وتښتې اودټولنې قانون ته به پناه یوسې ، خو پراروا به دې تل هغه برلاسی وی، دې په ډیره بې وسی اسمان لورې ته وکتل اوویې ویل:

خدایه! تاهغه تیټ ذاتی ولی پیدا کړی دی اوکه دی دی تیټ ذاتی پیدا کاوه زه دی ولی په لوړذاتو کی پیدا کړی یم؟

(۳)

له جونگړې دموهنی له وتو سره دننه ټول پریشانه شول اویو یل ته یې کتل، هغه خیالی جنت چې مادهو له کلونو راسی آباد کړی ؤ دسترگو په رپ ویجاړشو. دی ډیر درد اورنځ په حالت کی درندهیر پرېښو ور پریووت اوپه ژړه غوني غږیې وویل:

هغه له مانه خپه شوه، له مانه مروره شوه، زه نه وم خبر چې دابه بده منی، زه بې گناه یم، ته پوهیږې چې زه بې گناه یم.

رندهیر مادهو ترمټ ونیو اوراپورته یې کړ، په تسلی یې ورته وویل:

مادهو! هغه له تانه خپه نه ده،زما پرخبره باور وکړه زه به یې بیا راشم!

موهنی! داځه دریاندي وشول؟

موهنی اوښکی پاکولی له غمجنی موسکا سره یی رندهیر ته وکتل اوځواب یی ورکړ:

هیڅ هم نه دي رندهیره! رښتیا ووایه ته خوله مانه کرکه نه کوی.

- کرکه له تانه آخر دځه لپاره؟

- رندهیره ته پوهیږی چی په دی کی زما هیڅ گناه نشته مانه غوښتل چی دلته راشم له هغه سره ما څه خبره هم نه ده کړی.

- موهنی هغه له تا سره مینه کوی هغه مینه چی انسان یی له دیو تاسره کوی، بلکی زه خو داسی پوهیږم چی دا سی مینه له دیو تا گانو سره هم لږ انسانانان کوی، زه شخصاً دمینی په اړه د ذات اوقوم پرتوپیر باور نه لرم.

موهنی تاخو شانتا ولیده هغی پرون زما په خاطر دخپل ژوند قربانی یوه لویه گڼله ،دتولنی قانون ماته له هغی سره دکرکی زده کړه راکوی خوانسانیت ماله هغی نه دمینی له ځوابه نشی راایسارولی زه دهغی زړه ماتول گناه گڼم.

اوکه زه ستا پرځای وای نو په هیڅ ډول به می له هغه نه کرکه نه وای کړی هغه ستا دبوتانو پر جوړولو څه گناه نه ده کړی موهنی رښتیا ووایه له هغه سره ستا مینه نشته؟

موهنی اوښکی پاکولی ویی ویل:

رندهیره! له مانه داسی پوښتنه مه کوه زه ښځه یم چی له خپل حده

چې ستا له هغه سره مينه شته .

- زه نه پوهيږم چې مينه څه شی ده؟ زه يوازې دومره پوهيږم چې دهغه هيرول نور زما دوس خبره نه ده. خو زه له اور سره لوبې نه کوم، زه به دبدنامی او رسوايي له ژوند نه مرګ غوره وبولم، دموراوپلار د رسوا کولو پر ځای به خپله مرې پخپله زندی کړم.

موهنی بيا په سلګيو شوه رندهير يې پراوږو لاس کينبود تسلی يې ورکړه اوويې ويل:

موهنی! زه پوهيږم چې ستا په لاره کې خطر ناک ګړنګونه دي، خو په دنيا کې هيڅ داسې ستونزه نشته چې په همت او اراده بړی پرې تر لاسه نه شی، زه ستا ملګری يم.

موهنی غوښتل څه ووايي خو ناڅاپه يې په وښو کې دځرپ ځرپ غږونه اوچت شول او بيا رام داس راښکاره شو ويل يې:

شاباس زويه شاباس! په رام داس پسې چې موهنی ارجن ولید له خولې يې ډږوکي کرېږه ووته.

او بې هوښه پريوته.

رندهير ور وړاندې شو او غوښتل يې چې را اوچته يې کړي خو ارجن يې لاس ونيو او دې يې شا ته تيل واهه ويې ويل:

بدماشه! لرې شه داپريږده چې همدلته مړه شي .

رام داس ورتيټ شو موهنی يې راجګه کړه او ارجن ته يې وويل:

وکتل، په دې کې شنکر او مذهبي مشر هم دبوتيو له منځه راووتل، رام داس موهني ته تسلي ورکړه ويې ويل:

لورې! موږ ټولې خبرې واوريدلې ته بې ګناه يې، ورځه کور ته دې ولاړه شه. شنکره ته ورسره ولاړ شه.

او ددې خبرې په باب چاته څه ونه وايې، او بيا يې مذهبي مشر ته مخ واړاوه ويې ويل:

اوس زموږ عزت ستا په لاس کې دی.

هغه ځواب ورکړ:

ته غم مه کوه، څوک به پردې خبره خبر نه شي.

موهني له شنکر سره روانه شوه.

رام داس رندهير ترمخ کړ او ويې ويل:

نو پرون تا لاره غلطه کړې وه، پردې هم نه شرميدې چې پلار دې ددې ښار سردار دی. تا له موهني څخه د کومې خبرې بدل اخيست. ارجنه! ته هم ولاړ شه زه ډير درته شرمنده يم.

اوس چې زما څه له لاسه کيږي کوم به يې، دموهني عمر څومره دی؟

هغه پردې خبرو څه خبره ده، داټوله بدماشي د رندهير ده. تر سبا پورې به هر څه سم شي، راځې اوس کورته ځو.

**(٤)**

په لاره کې څو ځلې رندهير اراده وکړه چې رام داس ته څه ووايي، خو

بادار! موږ هنى ديوى مى كورته ورسوله او راغلم، ماته څه بل حكم شته؟

رام داس لږ په ترخه لهجه ځواب ور كړ:

هيڅ نشته، ته ورځه!

رندهير په مړاوى غږ وويل:

پلار جانه!

رام داس په غوسه ورته وكتل او په ريږديدلى غږ يې ځواب ور كړ:

زه نه غواړم چې ستا يوه خبره هم واورم.

- پلار جانه! ... هغه بې گناه دى، هغه ټيټ ذاتى هم نه دى، زه نه پرېږدم چې پر هغه ظلم وشي.

درام داس د صبر كاسه ډكه شوې وه، غابښ يې وچيچل او وړاندې ورغى، په زوروره څپېړه يې رندهير پر مخ وواهه.

بيا يې هغه تر وينښتانو ونيوا و په كشولو يې كورته دننه بوتلو.

د رندهير زغم او آرامى پرى اغيزه ونه كړه او يو ځل بيا يې دوهلو پيل پرى وكړ، رندهير ديوه ديوال په څير ولاړ ؤ او دا هرڅه يې زغمل، تر دې چې درام داس لاسونه ستړى شول.

د رندهير له شونډو وينې راوخوټيدې، چې د رندهير پر سپينو باړخوگانو يې د گوتو سره خاپونه او په شونډو كې وينې وليدې د رام داس پلرنى مينى د هغه لاس ودرول بيا يې وويل:

رندهیر وویل:

پلار جانه زه ربښتیا وایم هغه...!

درام داس درانه غږ د رندهیر شونډې وګنډلې:

چوپ شه! بیا یې هغه تر مټ ونیو او له ځان سره یې کش کړ و زیاته یې کړه:

راځه! رندهیر بې وسه شو او له هغه سره روان شو. رام داس دیوې وړوکې کوټې دروازې ته ورسید دې یې دننه ور ټیل واهه او بهر یې پر دروازه کولپ واچاوه ویې ویل:

ته اوس دلته اوسیږه!

رندهیر دروازه دننه لخوا ټیل وهله او ویې ویل:

پلار جانه! پلار جانه! زما خبره واوره!

دخدای لپاره هغه ټیټ ذاتی نه دی هغه ستا د دوست سکدیو او لاد دی.

خو رام داس تللی ؤ، د ډېرو پرغولی دهغه دبیرته تلو دپښو غږ ورو ورو لرې کېده او ورکېده.

# د ټولنې د قانون برې

بدهو له پاړوګر سره تللی ؤ، يوه ګاونډې شپانه دهغه ميږي دځرولو لپاره ورسره بيولې وې، مادهو ته نوره ورځ په کور کې کيناستل ګران ښکاره شول، هغه بوټان به چې ده پخوا ليدل يو ډول به يې په ننداره کې ورک شو.

اوس هسې دډبرو بې روحه ټوټې ورته ښکاريدلې.

د موهنې دخپګان او په منډه له ځنګړې نه دوتلو اصلي سبب ده ته معلوم نه ؤ.

يوازې دومره يې فکر کولای شوای چې موهنې ددغه بوټانو په ليدو خپه شوه. ده ته په وار وار دا په خيال کې ورغلل چې آيا دا امکان لري چې دا به دلوړ ذاتو دبوټانو جوړول ګناه ګڼي؟

نه، دا امکان نه لري، آخر رندهير هم يو لوړ ذاتې دی، که په دې کې څه بدې واى نو دبوټانو په ليدو به دې هم خپه شوې ؤ. په هر صورت موهنې

دراتلونکی بی خونده او غمجن ژوند له تصور سره وربړدیده.

په ډیره مایوسی او بی وسی کی یی دامید یوه سپرغی ترسترگو شوه. او ده دا احساس کړه چی دی اوس دخدای او یا دهغه سترغواک مرستـه تر لاسـه کولی شی چی دده او موهنی دسره نژدی کولو لپاره یی پـه وار وار داسی نه اټکل کیدونکی حالات پیښ کړل.

هغه غواک چی موهنی یی دده جونگړی ته راکش کړه او رایی وستله، او نن موهنی نه ده تری خپه شوی، خدای تری ناراضه شوی دی، خو ولی؟

ښایی په دی گناه چی ده دموهنی دبوتانو په جوړولو کی خدای هیر کړی ؤ. ده دستر خدای پر ځواک دتکیی پرځای خپل ټول پام هغو بوتانو ته وراړولی ؤ.

مادهو ناکراره شو راجگ شو، بیله دی چی شانتا اوکنول ته څه ووایی له جونگړی نه بهر ته راووت. په هر گام یی له زړه نه دافریاد راپورته کیده چی:

خدایه! زماگناه وبخښه! ای دځمکی او اسمان ستر ځواکه!

معاف می کړه!

مادهو دلوی ډنډ پر غاړه دیوی ونی لاندی کیناست.

او تر ډیره پوری یی سرځوړند اچولی ؤ خدای ته یی ددعا لپاره دمناسبو جملو په باب فکر کاوه، ناڅاپه دموهنی لخوا وربښودل شوی مذهبی سرود ور په زړه شو او په دردناکه لهجه یی زمزمه کړ.

لوړو ته رسیږي چې خدای پکې اوسیږي .

خو ناڅاپه یې یوه ډبره پر ملا ولګیده، پریشانه شو سترګې یې وغړولې او هک پک ودرید. اته تنه تېرونه او لاټې په لاس کې دده شاوخوا ولاړ وو او په غوسه یې ورته کتل.

شنکر وویل:

راځه له موږ سره ولاړ شه!

مادهو په دغه نوي مصیبت کې دخدای رضا لیده او جګ شو بې ویرې او داره ددوی په مخه کې روان شو .

څو ګامه چې ولاړل له شانه دکوم یوه غږ اوچت شو :

ودریږی! دا ډیر درانه دي ټول یې باید په نوبت یوسي. مادهو چې شاته ورو کتل درې کسان یې ولیدل چې دده تراشلي بوتان یې په اوږه کړي وو او ورو ورو ورسره تلل.

دمادهو کنول او شانتا په خیال کې ور وګرځیدلې ودرید او بیا سر تر پایه عذر شو شنکر ته یې وویل:

دا بوتان ما جوړ کړي دي، دمور او خور مې په دې کې هیڅ ګناه نشته.

شنکر په غوسه ورته وویل:

تیت ذاتي سپیه! دا تا جوړ کړي دي که دې زموږ له درمسالونو غلا کړي دي؟!

- نه ما غلا کړې نه دي.

شنکر

چې دلاتیو او تبرونو کسان یې دشنکر حکم منلو ته چمتو ولیدل بیا له پهره دارانو سره روان شو.

**(۲)**

له ماښام نه لږ مخکې درام داس د مانې مخې ته د «پیپل» تریوې ونې لاندې پر یوه سپاچه دښار دنارینه او ښځو بیربار جوړ ؤ، پر چوتره درې بوتان ایښې وو او خلکو یې په مخ کې پیسې، ګلان او غلې انبار ولې.

دښار په شمال کې لږ لرې نن له ډیرې مودې وروسته د توري دیوي په درمسال کې بیروبار او ګڼه ګونه وه.

خلکو به دغو بوتانو ته ددرناوي او عقیدت له وړاندې کولو وروسته هغه لوري ته مخه کړه، درام داس د سرداري په وخت کې خلکو د توري-دیوي په نمانځنه کې یوازې دڅارویو قرباني کوله. خو نن ددوي دډیرې خوښې ورغ وه.

رام داس د درمسالونو دغله لپاره کومه بله سزا ټاکله خو دمذهبي مشر، ارجن او دښار دنورو مخورو په مخکې یې ونه ویلای شو.

دښار اتو داعتبار وړ کسانو ګواهي ورکړې وه چې له مادهو څخه یې سپینې سرود اورید لې دی، له مادهو څخه درې بوتان دده له کوره راپیدا شوي وو چې دښار ټولو برهمنانو پردې باور ؤ چې له لرې درمسالونو څخه یې راغلا کړي دي، ددومره لوی ګناهکار په سزا کې

ده غوښتل چې دبدنامی نه دځان ژغورلو په خاطر مادهو له وطن نه وشړي ،خو ده ته دا څه معلومه وه چې هغه به دمذهبي سرود دويلو په حالت کې نيول کيږي او له کوره به یې بوتان راایستل کیږي. دی دخپلی لوريني له مخی دلوړ ذاتو په منځ کې ډیر بدنام ؤ خو دا داسی پیښه نه وه چې دی دخلکو عامه رايه پکی له پامه وغورځوی او درناوی یې ونکړی.

دهندوانو دسپیڅلو بوتانو پرغلا کولو او پټ پټ دمذهبي سرود په ويلو اوزمزمه کولو برسیره مادهو نيغ درام داس اوازجن پر عزت لاس پورته کړی ؤ. ځکه خو چې تولو برهمنانو او مذهبي پنډتانو په يوه غږ دتوری ديوی دبوت په پښو کی دمادهو دقربانی کولو غوښتنه وکړه نو دی دومره پری ونه ځوريده لکه معمولاً به چې په دغسی پیښو کی ځوريده.

دمادهو کورنی دنورو غړیو په تیره دده دخور په باب درام داس اندیښنه وه او ده غوښتل چې دتولنی دتوپان له راپورته کیدو نه وړاندی دوی یوې خواته و تښتی او ځانونه وباسی.

دډیری غوسی په حالت کی هم ده پر ښځو لاس پورته کول دخپلی تولنی دروایاتو خلاف چلن باله.

دښار خلکو له ډیری مودی وروسته دتوری ديوی په پښو کی دانسانی قربانی وړاندی کولو خبر اوریدلی ؤ.

دوی ته په دی معامله کی نور يوه شيبه ځنډ هم له زغم وتلی ؤ. غوښتل یې چې د شپی له راتلو نه مخکی ددغی سپیڅلی فريضی نه اوږی سپکی کړی، خو له بده مرغه دتوری ديوی ددرمسال مذهبي پیشوا له سینده

يوه کېښتي واستوله او دوی ته يې داډ ورکړ چې مذهبي پيشوا به له لمرختو نه مخکې راشي.

رام داس پردې خبره ؤ چې دمادهو لپاره يې هيڅ ونکړای شول، خو چې کله مشرانو پرېکړه وکړه ده غوښتل چې دغه قرباني څومره ژر کيدای شي ترسره شي ښه ده، چې څومره ځنډ يې رندهير بايد هماغسې په کوټه کې بندي وساتل شي.

درندهير په باب دده پوره باور ؤ چې پر خپله خبره ولاړ دی، او چې دمادهو دژغورنې کومه اراده يې څرګنده کړه هغه به خامخا ترسره کوي.

(۳)

دمادهو دنيولو نه مخکې چې کوم سپاهيان دجونګړي تلاشي ته تللي وو هغوی رام داس په ښځو له تيري او ظلم څخه ايسار کړي وو. ځکه خو چا له شانتا او کنول سره هيڅ خبره هم ونکړه خو شنکر ته دا ډيره ګرانه وه چې دتيټ ذاتو جونګړو ته دې دتلاشي لپاره ورشي او دشانتا په څير نجلې سره دې هيڅ خبره ونکړي.

ده په زړه کې وويل چې ښه ده بيا به ګورم او له نورو سپاهيانو سره دمادهو په لټون پسې ووت. چې سپاهيان ولاړل کنول دمادهو په غم کې شوه. او تر لږ ځنډ انتظار وروسته له جونګړي راووتله.

هغه دلوی ډنډ پر غاړه او شاوخوا کليو څو ځلې راوګرځيده خو دمادهو

پسی وو تله.

ځومره چې شپه رانژدې کېدله دمادهو په باب ددې شک په يقين بدليده چې دښار سپاهيانو نيولی او ورسره بيولی دی. دشپې چې شپا نه را غلل يو ه تن وويل چې دهغه بل کلي يوه شپونکي له مادهو نه شپېلۍ زده کوله، ښايي له هغه سره تللی وي، هغه کلي يو ميل لرې ؤ خو د مايوسۍ په سمندر کې ډوبيدونکي دموړولی ميني يو ځل بيا دخاشاک او خځلو تکيې ته لاس وا چاوه او کنول شانتا ته بيا تسلي ورکړه ، هغه شپون يې ورسره ملګري کړ او هماغه کلي ته روانه شوه.

شانتا له جونګړې نه بهر پرچپر کټ پريوته او ستوريو ته يې کتل، دمادهو په باب دکنول په خير ددې هم داګومان ؤ چې دښار سپاهيانو ورسره بيولی دی.

څو ځله يو ډول داډه وه چې درندهير په شان نرم زړی څوک هلته شته.

ناڅاپه يې دځان په باب فکر شو چې که څوک ماورسره بوزي څه به کوم؟ له دې خيال سره شاوخوا ونې او بوټي ټول ورته دوهمونو ديوان او پيريان شول، وويريده له کټ نه پاڅيده دننه ولاړه او دخپل پلار توره يې ورسره راوړه بيرته راغله پر کټ پريوته او په خيال کې يې خپل ډير دښمنان ليدل چې په خاورو کې ترپيدل.

لږ ځند وروسته دې دچا دپښو غږ واوريد او غږ يې وکړ:

موری! موری راغلې!

يوه درانه او سهمجن غږ پر شانتا لړزه راوسته:

جونګړی ترڅنګ ولاړ ؤ.

شانتا په ویریدلی غږ تری وپوښتل:

ته څوک یی؟

هغه وویل:

شورمه کوه، بیا یی مشال دجونګړی د درګوسرونو ته ورنژدی کړ ،لمبی پورته شوی، شانتا داور په ناکی شنکر وپیژاند چی تک تور ګلیده، له چارپا یی څخه راجګه شوه ودریده اوغوښتل یی چی وتښتی خوشنکر مشال وغورځاوه او وړاندی ورغی اوترمټ یی ونیوله:

راځه راسره!

شانتا لاس تری کش کړ اولری تری ودریده.

- تیټ ذاتی اودومره نخری!

شانتا په حسرت خپلی جونګړی ته وکتل چی لنبی یی ورو ورو زیاتیدی ،شنکر بیا ورنژدی شو اولاس یی ونیو ،شانتا داځل په بل لاس زور وره څپیړه ورکړه او هغه یی لاس پریښود اوخپل مخ یی وموښه.

-خدای شتالاس دڅپړو لپاره نه بلکی دښکلو لو لپاره پیدا کړی دی، دایی وویل او شنکر بیا دی ته ورنژدی شو خو شانتا ګړندی ولاړه دچپرکټ نه یی توره را واخسته اودهغی څوکه یی دشنکردټټر لوری ته ور نژدی کړه ویی ویل:

بی شرمه ،بی حیا ،بی ناموسه که دی یو ګام وړاندی را واخست ټوټی به دی کړم.

وخوږ دجونګړی له یوه دیوال سره چې اور یې اخستی ؤ ولګید. داور لمبو یې مخ اودسرویښتان وسوځول. شانتا په حقارت ورته وکتل اوبیا یې توره ښکته کړه ویې ویل :بې غیرته! په دې څنډکې دکلې خلک راووتل اوشور ماشور یې ګډکړی ؤ داور په لور را غلل. شنکر په منډه وتښتیداودسترګو په رپ کې په ونوکې ورک شو. لږ څنډوروسته ښځې او نارینه پر شانتا راتول شول، دجونګړی داور وژل اوس دچا په وس کې نه وو، شانتا په وار وارویل:

که زه خبره وای چې هغه دومره بې همته دی مابه اور اچولو ته نه وای پرینښی مشال به مې یې له لاسه اخیستی ؤ.

(٤)

لږڅنډوروسته کنول راورسیده ،اوشانتا ورغله موری موری چیغې یې وهلې اوورترغاړی وتله.

کنول تسلی ورکړه اوددې اوښکې یې پرې پاکې کړې ویې ویل:

مورجانې! دازما غلطې وه تری وویریدم که نه هغه ډیر بې غیرته ؤ، که مې همت کړی وای مشال به مې یې له لاسه اخستی ؤ.

کنول ته جونګړی هیڅ ارځښت نه درلود دهغې تول پام مادهو ته وړ اوښتی ؤ. پردې یې فکر کاوه چې په ښار کې څه ډول دهغه درک معلوم کړي؟ خوویریده چې کوم تیت پ ذاتي به ښا رته دتلو زړه ونه کړي.

اوس دامجبوره وه چې خپله وروستې وسیله په کار واچوي جونګړی ته

چې لەنن نەشل کالەپخوا زما پلار وژلی ۀ. هغوی نن زما زوی ونیو اوورسره بويي تلو.

لەدەسره به هم هماغه چلن کوی چې زما لەپلار سره یې کړی ۀ.
پەتاسو کې څوک شتەچې زما دزوی دژوند دژغورلو لپارەرا سره مرسته وکړی؟

خلکو يولەبل سره خبری پيل کړی:

دسردار لور؟ .... څوک کنول، کنول ده!

کنول بيا وويل:

هوکی! زەکنول يم ، تاسو سکديو هم پيژنی ،هغەزما ميړه ۀ.

څو بوډاگان اودپاخەعمر خاوندان دکنول مخی تەلاس پەنامەودريدل.

يو سپين ږيری وړاندی ورغی داور پەرڼا کې يې پەغير کنول تەوکتل او ويې پوښتل!

کنول لوری! ماپيژنی؟

- زه تاکلەهيرولی شم ، کلەچې وړەوم تابەکری ورغ پر اوږه گرځولم، ستا پەياد دی چې يوه ورځ د آم ترونەلاندی ويده شوی وی ستا خولە وازه وه اوزەدرغلم دآم اوبه مې درڅڅولی.

يوځل ما خاوری خوړلی وی اوتادیره وهلی وم اوبيا دی پەپلار جان هم ووهلم تيجوکاکا اوس دی زه وپيژندلم؟

دبوډا سړی اوکنول لەستر گو اوښکی بهيدلی دقوم نورو خلکو تە هم دآزادی اوبی پروايی هغەشپی ورڅی ورپەزړه شوی ، دټولو سترگی لمدی شوی.

کاکا دمادهو درک معلوم کړي!

تیجو وویل:

کنول! ته زموږ دسردار لوریې ، ستا په اشاره ځان قربانول زموږ فرض دی، خو ته پوهیږې چې موږ دخپل دښمن په وړاندې بلکل تش لاس یو، یووالی نه لرو.

ستاد پلار له مرګه وروسته موږ تریوی مودې پورې پټ اوسیدو اوجګړه موکوله،خونوی سردار یو هوښیار سړی ؤ،یوه ورځ یوازې هغه غرونو ته را غی او له موږ سره یې د عدالت اوبرابرۍ وعده وکړه اوزموږ ډیر کسان یې دځان ملګرې کړل ، دښار شاوخوا یې دهستوګنې اجازه راکړه ، خو ځینو یې پر وعدو باورونه کړ اوهغوی له دې ځایه لرې په غرونو کې میشت شول.

رام داس له موږ سره هیڅ وعده خلافي نه ده کړې ، خو دښار تول اوسیدونکي موږ ته په سپک نظر ګوري او موږ ته هلته دتلو اجازه نشته.

موږ ددوی د درمسالونو سره نژدې هم نشو تیریدای موږ چې ترکومه وخته ددې خلکو دښمنان وو نو ځانونه موانسانان ګڼل خو چې له دوی سره موسوله وکړه اوس تیټ ذاتي اوغلامان شوو.

زموږ دقام هغه خلک چې تراوسه پورې په غرونو کې ژوند کوي په آزادۍ کې ساه اخلي ، له حاصل خیزې ځمکې اوښو ورشو ګانو نه محروم دي. خوزه ددوی دژوند ارمان کوم، آزادي داسې نعمت دی چې پرهغو دژوند هرډول آر امې قربانیدای شي ، څو کاله چې موږ په غلامۍ کې تیر کړل اوس موله مغزونو د آزادۍ خیال ورک شویدی . موږ هغو خلکو ته دتل

دوی ددیوتاگانو عبادت وکړای شو.
ددوی دڅاه ګانو اوبه وڅښلی شو او ددوی ښارونه ولیدای شو. رام داس ترننه پوری لهموږ سره داسی څه سلوک نهدی کړی خو ستاسو دجونګړی سوځولو اودمادهونیولو او ورسره بوولو یو سبب چی زما فکر تهراځی ، ښایی داوی چی هغهخلک پهیوه طریقه پردی خبرشوی دی چی تهزموږ دسردار لور یی اودوی بهدسردار لمسی زموږ په منځ کی خطرناک ګڼی ، خوزه پردی حیران یم چی دوی پردی څه ډول خبر شول؟
کنول وویل:
نور چاتهمعلومه نهده ، خو دسردار زوی زموږ کورتهراغلی ؤ ،هغه دشانتا دپلار ګوتی ولیده موږ یی وپیژندلو ، خو هغه......!
شانتا دمور خبره بشپړیدلو ته پرینښوده:
نهموری! ... هغهداسی نهدی ، رندهیر له موږ سره داسی نشی کولی.
تیجو وویل:
لوری! تهداخلک نشی پیژندلی ، دوی خطرڅو میلهلری وینی.
رندهیر ماهم څوځلی ښکار تهدتلو په وخت کی لیدلی دی.
لهڅیری نهډیر نرمزړی ښکاری ، خوموږ باید دچا په څیره دوکهنشو ، دهغو خلکو دمخ پوست نرمدی خوزړونهیی دکانو پهڅیر کلک دی.
شانتا ځواب ورکړ:
خو هغهدهماغه رام داس زوی دی چی تایی دا اوس ستاینهکوله.
– هوکی ، زه پوهیږم چی رام داس لهدی خلکو نهتوپیر لری.

سپا هيانو په اشارو نخښېږي چې کـه ددوی وضعـه بدله‌وای بيا به‌يې په زرگونو سپا هيانو را قابو ساتل.

دوی امر راته‌کوی چې زموږ ښار ته‌مه‌را ځې او موږ نژدې هم‌نه ورځو. داښار هم‌هغه ځای دی چې ترتاداوونو لاندې يې زموږ دجونگړوايری دی.

ته فکر وکړه کـه‌موږ ددوی څا گانو ته ورشـو اويا يې درمسالونوته ورننو زو نو رام‌داس به څه سلوک راسره وکړي.

اوس ته‌ووايه چې‌درام داس له‌اجازې پرته‌چا جونگړې تـه اوراچولی شوای ؟ او مادهو دده له‌امر پرته چانيولی اوبوولی شوای ؟

د تيجو ددلايلو په‌مخکې شانتا څه ونه‌ويلای شوای.

هغـه په زړه کې درندهيـر پر خلاف دراپورته‌شويو بدگومانيـو سره په جنگ وه.

کنول وويل ؟

اوس به‌څه کيږي ، له‌مادهوسره‌به هغوی څه ډول چلند کوي؟

تيجوځواب ورکړ:

دمـادهو لپـاره زمـا سـر حـاضـر دی، خوزه‌فکر نه‌کـوم چې ډير کسـان ملگرتيا راسره وکړي.

دپنځو شپږو کسانو غږونه‌اوچت‌شول:

موږ ټول درسره‌ملگري يو.

کنول يو پربل پسې هغوی‌ته وکتل‌ټول د تيجوپه‌څير بوډا گان او ددوی دپلار دپنځوا نيو وفادارو څخه وو، دځوانانو په‌څيرو کې دخواخوږي پر ځای دويري نخښې وې، دښار دخلکو په

دخپلو زامنو ، میرمنو دخپلو میرونو اوخویندو دخپلو وروڼو لاسونه ونیول او دخپلو کورونو او جونګړو پهلور روان شول لهکنول سره یوازی شپږ تنه بوداګان اویو ١٤ کلن هلک پاتی شول، دغه هلک لالو نومیده چی دتیجو لمسی ؤ.

کنول وویل:

داتول وویریدل،ماخو دوی ته دانهدی ویلی چی دښار لهخلکو سره جګړه وکړی.

لالو ور وړاندی شو ویی ویل:

زه ستالپاره جنګ تهتیاریم ، لهچانهنهویریږم.

کنول دهغه پر سر دمینی لاس کیښود ویی پوښتل:

بچیه! تهڅوک یی ؟

تیجو وویل:

دازمالمسی دی.

لالو لهتیجو نه وپوښتل:

بابا زه دمادهو د درک معلومولو لپاره ښار تهولاړشم!

کنول حیرانهشوه ځواب یی ورکړ:

نهزویه ، تهدیکور تهولاړ شه.

بیا یی تیجو ته مخ ور واړاوه ویی ویل:

کاکا شانتا دی کورته درسره بوزه، زه پخپله ښار ته ځم، رام داس

احساس یی کړی ؤنوزه به یی داده کړم، که دلته هغه زمونږ پر اوسیدوخوښ نه ؤ نوزه به وعده ورسره وکړم چی داملک به پر یږدو هغه به خامخا مادهو راخوشی کړی.

تیجو وویل:

خودرام داس ترکوره تاته رسیدل گران دی. لومړی خو به تا څوک پرینږدی چی ښارته ننوزی ، او که غلی هلته ورسیدی هم نو دهغه سپا هیان به تاله لری وشړی اوداهم امکان لری چی هغوی دالفاظو پرځای خښتی اولوټی درپسی راواخلی ، بله داچی اوس به دښار دروازه هم تړلی وی، زه به لالو واستوم دی به مادهو ولټوی، که هغه ته فرصت په لاس ورغی نودده سره به هم مرسته وکړم.

کنول پوښتنه وکړه:

لالوڅوک دی؟

تیجو خپل لمسی ته اشاره وکړه ویی ویل:

دی دی!

کنول وویل:

نه کاکا، دی ماشوم دی، دا هلک دی څه به وکړای شی؟

تیجو ځواب ورکړ:

لوری ته دی نه پیژنی! دښار هیڅ داسی کور نشته چی دی نه وی ورغلی.

-نو هغوی ده ته څه نه وایی؟

- دی تراوسه پوری چارا قابو کړی نه دی، دښی ... ماشومانو ...

دی دخپل پلار په‌خیر سپین رنگی دی دورځی لخوا هم ددوی نه‌غلا کړی جامی واغوندی کورونو اودرمسالونو ته‌یی ورځی.

اوس ته‌راځه‌زموږ کور ته ،لالو به‌ترسهاره له‌یوه‌ښه خبر سره‌راستون شی، که‌ده په‌یوه‌لاره‌مادهو را خلاص کړای شونو بیا به‌تاسو موږ غرونو ته‌ورسوو.

دمادهو په‌اړه دکنول اندیښنی دا مجبوره کړه چی‌دتیجویلنه ومنی ویی ویل : نور خو دلته څه نه‌دی پاتی شوی‌دغه چپرکتونه‌را واخلی.

شانتا فرصت وموند لالویی ترمټ ونیو اولږ یی‌یوی گوښی ته‌بوتلو ورویی ورته وویل: لالو! ته‌دښار تول کورونه پیژنی؟

هغه ځواب ورکړ:

ډیرښه‌یی پیژنم.

- رندهیردی لیدلی دی؟

- ځو ځلی.

- کور یی درته‌معلوم دی؟

- واه واه، داامکان لری چی‌څوک دی هره ورځ ښارته‌ولاړ شی اود رندهیر کور ورته معلوم نه‌وی.

- ښه لالو نو ته خوزما ورور یی کنه!

لالو خوښ شو دهو پرځای یی سروخوځاوه.

- زما یو کار به‌وکړی؟

- خاو خایه‌یی ورکړه

اوواخله دغه گوتی به هغه ته ورکړی لالو گوتی واخستله اوویی ویل:

بس زه همدا اوس کورته ځم جامی بدلوم اوځم، شانتا وویل:

گوره! زه به هره ورځ شیدی اوکوچ درکوم.

لالو ځواب ورکړ:

اوف! دشیدو اوکوچو نه می زړه تور دی. زه یوازی دلوړ ذاتو دکورونو دوډی خورم.

# قرباني

دشپنو په کلی کی هر چاله لالو سره مینه درلوده، هغه ډیر چالاکه اوزړورۊ، په منهو ، لامبو او ونو ختلو کی چاسیالی نه شوای ورسره کولی، دده دشیطانیو اوچالاکیو کیسی دکلی دزاړه او ځوان پر خولو وی ، دی نه دځنګل له ځناورو ویریده او نه دښار له مهذبو انسانانو ، یوه ورځ به داخبره خپره شوه چی لالو له ځنګل نه دیږی بچی راوړی دی بله ورځ به دا اوریدل کیدل چی له ښاره یی دکوم معتبرسړی جامی اویا دویده شوی پهره دار وسله راوړی ده.

مور اوپلار دواړه یی وفات شوی وو او اوس یی پالنه دخپل بابا تیجو پرغاړه وه. تیجو ډیر زیار ویوست چی دی یوښه کب نیوونکی اوشپون شی ، خو پر لالو دده هیڅ تدبیر اغیزه ونه کړه، ځکه خو تر ۱۲ کلونو پوری دهغه له پوهولو ښکنځلو ، رټلو اوډبولو نه وروسته تری

جامي يې راتولي کړي وي ځکه خو په ښار کې هیڅوا هم دده دقوم اونسب دپوښتنې اړتيا نه وه احساس کړې. دې دهغوى دژوند اوعبادت پرتولو عادتونو اولاروچارو بلد شوی ؤ.

لالودشپې په دريمه برخه کې ښار ته ولاړ، درامداس دکور دروازه تړلې وه اوپهره دار ديوال ته تکيه وهلې وه او ويده ؤ، دماتې ځلور ديوالونه ډير لوړ وو.

لالو دماتې شاته ولاړ د ديوال ترڅنګ دآم له يوى ونى نه يې دزينې کار واخيست اودکور دننه انګړته يې ځان ورساوه، دې ددې کور دهر کونج نه خبر ؤ رام داس اورندهير دګرميو په موسم کې پر بام ويده کيدل دې خپ خپ په زينو کې بام ته وخوت خو هلته نن دمعمول پرخلاف يوازې يو چپرکټ ؤ. لالو پرې ورټيټ شو او په غير يې ورته وکتل پر کټ رام داس پروت ؤ ده په خپل زړه کې وپوښتل: نورندهير چيرته دی؟

له ډيرچورت وهلو وروسته لاندې راکوز شو په انګړ کې څو تنه نوکران ويده وو په خيال کې وروګرځيدل چې ښايي رندهير نن له پهره دارانو سره ويده شوی وي، خو چې هغوى يې تول ښه وليدل بيا مايوس شو.

دسپيده چاودنه لږمخکې چې دې څه ډول کورته ننوتلى ؤ په همغه لاره بيرته ووت، اوس يې بل لورى ته د تلوپرځاى دا غوره وبلله چې چيرته کېښيني او دسهار انتظار وکړي خولوږه يې احساس کړه له ښاره

مور جانی! دخدای لپاره ماپرېږده، هغه بې ګناه دی بوتان یې غلا کړی نه دی که دهغوی کره ور تلل ګناه وی نوددی سزا خو باید موږ ته راکړل شوی وای نه هغوی ته او دا بیا ګناه نه ده، دغې نجلې د رندهیر ژوند ژغورلی ؤ موږ یې پوښتنې ته ورغلو. بلې ښځې ویل:

موهنې! دخپل پلار مخ دی پر سکرومه راتو روه که څوک واوری څه به وایي.

- نه مورجانی ماپرېږده ، که یې هغه قربانی کړ زه به په سیند کی ځان وغورځوم.

- موهنې! زما له شیدو وشرمېږه ! که درمسال ته ولاړه شې دخپل پلار پر سر به دی خاوری ور واړوی هغه به تاهیڅکله هم ژوندی پری نږدی .

- نو مور جانی ته ورشه پلار می پوه کړه هغه به خامخا ستا خبره ومنی.

- نه هغه سوګند خوړلی دی چی قربانی کوی به یې.

نن هغه پر کوم پهره دارهم باور نه کوی پخپله یې د درمسال پهره په غاړه اخیستی ده.

- نو بیا دخدای لپاره بیامی درهندهیر دوی ترکوره پرېږده. که د رند هیر پلار ته دامعلومه شی چی دمادهو خور درند هیر ژوند ژغورلی دی نو هغه به یې خامخا له وژلو وژغوری.

- موهنې دخدای لپاره چوپه شه! رندهیر یې دا خبره پلار ته نشي

معلومه چې سپاهیانو مادهو راوستي دي.

- زما په مخکې دغه سپک سپي نوم مداخله ، که یې څوک واوري څه به وایي؟

-زه ددې پروا نه لرم، که یې هغه قرباني کړ زه به دبام سرته وخیژم او چیغې به ووهم چې داګناه ده هغه بې ګناه ؤ موری دخدای لپاره دهغه دژوند ژغورلو لپاره څه وکړه زه وعده کوم چې هیڅکله به هم دلوی دنه غاړې ته ولاړه نشم.

بیا ترډیره وخته د سلګیو غږ اوریدل کیده.

**(۲)**

لالو ددغه خبرو له اوریدو سره آمو نه هیر کړل او دتوری دیوی د درمسال په لوري یې منډه واخیسته.

دشپې تیاره دسهار پر تته رڼا بدلیده ،درمسال ته چې ورنژدې شو شنکر یې ولید چې راروان دی دهغه مخ دسوځیدو له امله تک تور اوښتی ؤ.

هغه چې لالو له لرې ولید ترې وی پوښتل:

منهبی مشر راغی؟

- کوم منهبی مشر؟

- دتوري دیوی د درمسال!

- هغه چېر ته تللی ؤ ؟

هیڅ نه، اوبیا له ځانه سره وغومبیده اوروان شو.

لالو په منډه دتوري دیوی درمسال ته ځان ورساوه.

مادهو په رسیو ترلي ددرمسال په مخکې پروت ؤ او دارجن نه پرته پنځلس تنه سپاهیان لږ له هغه نه لري ناست وو لالو هلته یوه شیبه هم ضایع کول مناسبه نه بلله اوبیرته دښار په لور راوګڅاست په لاره کې دښځو اونارینه ؤ څو ډلې په مخه ورغلې چې ددرمسال په لور را تلل.

درام داس دکور دروازه اوس پرانیستې وه اودی ژړه ور ورننوت رام داس دښار له څو مخورو اوبرهمنانو سره ناست ؤ اوخبرې اترې یې کولې دخبرو موضوع دمادهو دقربانولو وه.

لالو ترلږ ځنډه له دروازې سره بهره ولاړ ؤ او دغوجبرو ته یې غوږ نیولی ؤ بیا په کور کې دننه یوه اویل لوری ته راوګرځید اودرندهیر درا پیدا کولو هڅه یې وکړه.

دهغې کوټې په پیدا کولو کې ډیر سرګردانه نه شو چې رندهیر پکې بندي ؤ خوپر دروازه یې کولپ پروت ؤ اوبهر یو پهره دار ریدلی ؤ.

له لږ فکر وروسته دلالو مغزته یو تدبیر ورغی اوپهره دار ته ورغی ورته ویې ویل:

سردار وربللی یې.

پهره دار درام داس دکوټې په لوری ورغی او لالو په بیړه دروازې ته ورنژدې شو اورندهیر ته یې غږ وکړ.

هغه له خونې څخه وپوښتل:

دخبرو وخت نشته، غوږونیسه! نن ما دهو دتوري دیوی پر درشل حلالوی ، زه شانتنا را استولی یم.

هغه دمار دزهرو په سبب مرگوني ده دغه گوتي یی راکړه او تاته یی راواستولم هغی ویل چی زما ورور وژغوره! واخله زه گوته دوره دپلی له چاکه درغورځوم.

رندهیر په بیړه وویل:

ودریږه! گوتیی دننه مه راغورځوه ، که ته زما پلار ته ورتلای شی نوداگوتي هغه ته ورورړه ورته ووایه چی دادده ددوست وروستی نخښه ده ، پردی چی دکوم سړی نوم کیندل شوی هغه دمادهو پلار دی.

پهره دار غوسمیدلی بیرته راروان ؤ اولالوچی هغه ولید دستنیو ترشاغلی شو اوځان یی دلویی کوټی لوری ته وکشاوه.

درام داس په کوټه کی دخلکو بیروبار تر پخوا زیات شوی ؤ .ترلږ ځنده له دروازی سره ودرید او د موقع دموندلو په انتظار شو په دی کی یو سړی کوټی ته په منډه ورغی اوویی ویل:

باداره! مذهبی پیشوا راورسید، په درمسال کی تول ستاسو دراتگ انتظار کوی.

رام داس حاضرو کسانو ته مخ واړاوه ویی ویل:

تاسو درځی زه درپسی یم، خلک یو پربل پسی ووتل، رام داس یو سړی دلاس په اشاره را ایسار کړ او په ټیټ غږ یی ورته وویل:

ویل:

باداره ! تاتراوسه پوری دغه هلک نه دی لیدلی ؟

رام داس ځواب ورکړ:

نه، خووایی چی ډیر ښکلی هلک دی.

- باداره! هغه کټ مټ سکدیو ته ورته دی.

- سکدیو ته ورته دی؟

- هوکی باداره! ګوپال داوویل اوله کوټی نه ووت رام داس په کوټه کی قدم واهه لا لالو غلی دننه ورغی.

رام داس چی ولید چیغی یی کړی:

ته څوک یی لری شه ورک شه!

- باداره! دغه ګوتی!...

لالو د خپلی خبری له پوره کولو نه وړاندی ګوتی درام داس په لاس کی ورکښیوده هغه ګوتی په بی پروایی په یوه تاخچه کی کښښوده.

لالو بیا دخه ویلو جرئت وکړ:

صاحبه! داستا د دوست...!!

رام داس دی ترغوږو نیوبهر ته یی ویوست ویی ویل:

چی دچا وی هغه ته به ورسیږی نور می غوږو نه مه خوره.

لالو وروستی ځل لپاره همت وکړ:

باداره! داستا....

- ځه زغله له دی ځایه .... څوک شته؟

کورته وونثوت.

- باداره ! باداره تکه راولویده!

رام داس چی چیغی واوریدی توره په لاس کی له کوټی راووت وبی پوښتل.

څه خبره ده ؟

- باداره مصیبت دی ښارته یو ټیټ ذاتی را ننوتلی دی په لاس کی یی توره ده ،سپاهیانو راایسار کړ خو هغه وایی چی ستاسوله سردارسره گورم.

دوه سپاهیان یی ټپیان کړل دیوه سپاهی توره دده پرټټر ولگیده خودی پری خبر هم نه شو، صاحبه هغه پلید دی همدی لوری ته زاروان دی او څوک نشته چی را ایساریی کړی د ښار ټول خلک د درمسال لوری ته تللی دی باداره؟ هغه دی راغی هغه دی راغی.

لالو دبهر دروازی په لوری وکتل ، یوه تن په وینو سره توره په لاس کی ورو ورو گامونه اخستل اوددوی لوری ته وررروان ؤ، هغه بدهو ؤ پښی یی پرڅـای نه لگیـدی او دلوڅ ټټـر نه یی دوینو داری روانی وی دهغـه شونډی بوڅی وی اوله سترگو یی مظلومیت اوبی وسی څرتیده.

رام داس وویل:

ودریږه! ته څوک یی ؟ بیا یی توره وکښله او وراندی ورغی.

بدهو هغه کوله چی دسرپه اشاره دی وپوهوی چی دجگړی په نیت نه دی راغلی دهغه دسترگو له چوپ فریاد څخه رام داس دیر اغیزمن شووی وبل:

دبدهو په‌برو سو شونډو کې خپ خوځښت ښکاره شو وې پوښتل:

ته‌رام داس یې؟

- هو کې ووایه څه وایې؟

- مادهو دسکدیو زوی دی، رندهیر ته‌معلوم دی هغه‌وژغوره دهغه ژوند وژغوره هغه‌دسکدیو زوی دی!!!

دوروستیو خبروله څو ځلې تکرار نه‌وروسته دهغه له خولې دوینو داره ووته او بیا را وغورځید. دهغه شونډې همغسې خوځیدې اودبې خودې په‌حالت کې یې هم‌ویل:

هغه‌وژغوره! هغه وژغوره، غږیې ورو ورو کراریده تردې چې بالاخره یې یوازې شونډې خوځیدې خو غږیې نه‌اوریدل کیده بیا یې یوزګیروی وکړ اودبدهو شونډې دوروستې ځل لپاره یو له‌بله سره بیلې شوې ، دژوند دډګر ستومانه‌مسافر بلې نړۍ ته‌ولاړ خوبې روحه سترګو یې تراوسه پورې دخپل چوپ فریاداغیزې درام‌داس په‌ څیره کې‌لټولې ، لالو خپلې اوښکې راتم نکړای شوې.

**(۳)**

دبدهومــرګ پررام‌داس هم‌اغــیــزه‌وکــړه ترلږ ځنډه یې دبدهو دپیژندلونکا مه‌هغه‌کوله بیا یې ګړندې ګامونه راواخیستل درندهیر دکوټې په‌لورې ورغې او پهره دار ته‌یې ددروازې دکولپ دپرانیستلو امروکړ .

همدا عدالت اوانصاف ؤدتولنى لەقانون نەسر غړاوى ستازوى كړيى ؤ خو دقربانى اپارەدى يو داسى څوک وتپاکه چى دوينو، هر څاڅكى بەيى ترپيړيو پورى دتولنى پر تندى دبدنامى تور داغ وى اوځليږى بە.
رام داس رندهير ترلاس ونيو اوويى ويل زما سرە راځه! بيا يى هغەځاى تەراوست چى بدهو پروتؤ ،رام‌داس دبدهو مړى تەاشارە وكړه لە رندهير نەيى وپوښتل:
داپيژنى څوک دى؟
رندهير ترلږ ځنډه هک پک دبدهو مړى تەكتل بالاخرە يى نمجنى سترگى راپورتەكړى اورام داس تەيى وكتل ويى ويل:
پلار جانه! دا ستا دوهم برى دى، زه يى پيژنم.
لەدى سرە درندهير پەسترگو كى داوښكو سيلاب راوخوټيده.دبدهو تورە دهغەترخنگ پرتەوه رندهير يى موتى وپيژانده راپورتەيى كړه او رام داس تەيى ورووړاندى كړه ويى يل:
پلار جانه! دادمادهو دپلار اوستاد دوست دوهمه نښەده گوتيى خو مى مخكى درتەرا ليږلى ،ورام داس تورە واخيستە اوويى پوښتل:
كومه گوتيى؟
رندهير يوى اوبلى خوا تەوكتل اولالوددە پەمطلب وپوهيده پەمنډه كرتى تەورغى اولە تاخچى نەيى گوتەرا واخيستەراييوړه ويى ويل:
صاحبه! داده! مالږ مخكى تاته دركړه خو تا پەتاخچه كى وغورځوله.

شوي دي.

رام داس يو پرېل پسې گوتيې او توري تەوكتل او دواړه شيان يې له لړزيدونكيو لاسونو څخه پريوتل.

پەوارخطا يې يې لەخولې ووتل:

اوف خدايه! آيا دا امكان لري ؟ هغەرندهير تەوكتل او ويې ويل:

رندهيره ! ستاباوردي چې هغه د سكديو زوى دى؟

رندهير ځواب وركړ:

پلار جانه! اوس بەدا څه گټەوكړي، كاشكې تاپرون‌زه خبروته پريښې واى اوس خو چې څه كيدل وشول.

رام‌داس وويل:

نه، تراوسه پوري هيڅ نەدى شوى ، هغه تر اوسه پوري ژوندى دى زه يې ژغورلى شم، ويەيې ژغورم. رام‌داس دا وويل اوبيا يې دطبيلې په لوري منډه واخستله ، رندهير پرتەتوره اولالو گوتيې ورسره واخستل اودواړو منډه واخسته.

څو شيبې وروستەرندير اورام‌نات پر شاتوريو اسونو سپاره وو او د درمسال پەلور ولاړل.

لالو لەرندهير سره دآس پر شا نبنتى ؤ.

**(٤)**

دتوري ديوي بوت نمانځونكې دهغې پەمخكې لاس پەنامه دريدلي وو، مادهويې پەرسيو كلك تړلې دبوت پەمخكې څملولې ؤ،

دماد هو په خیر ه کي دويرى پرځاى دغير معمولي ارادي او خپلواكي نخښي وى، دهغه ستر گي دداسي آرامي هنداره وى چي يوستومانه يي خپل منزل ته په رسيدو کي ترلاسه كوى.

دى هره شيبه له نږى څخه لرى كيده اوخداى ته ورنژدى كيده ، دنږى په هره پيښه اوكار كي دخداى اويا دكايناتو ديوه ستر ځواك پر رضا قايل كيده دموهني په باب خيالونو به يى په زړه كي دژوندى پاتى كيدو هيلو ترلږ ځنډه وځوراوه خو هرځل به يى په زړه كي ځان ته تسلى وركړه چي موهني دده دالوت وروستى منزل نه ؤ. هغه دربښتيني هدف لور ته دلاربښووني يو ستوري ؤ.

كله چي جلاد له تورى سره دده سرته ودريد نو يوه شيبه يى پر بدن لړزه راغله خو ديرزر يى زړه ته تسلى وركړه چي اوس په لړزيدو اوويريدو هيڅ نشي كيداى ،كه خداى غواړي چي ته ژوندى پاتى شي نودغه توره دى يوويښته نشي غوڅولى او كه هغه ستاژوندى پاتى كيدل نه غواړي نو دنږى هيڅ ځواك دى نشي ژغورلى.

دسرود غږوونكي مذهبي پيشواغږ نور هم اوچت شو. اوحاضر ينود «توره د يوى دى ژوندى وى»چيغي اوچتي كړي. جلا دتوره په دواړو لاسونو اوچته كړه اودمذهبي پيشوا د امرانتظار يى كاوه.

دخپل ټول همت اوارادى سره مادهو دومره نژدى دمرگ ليدو همت ونكړاى شو اوسترگي يى پټي كړى.

، خلکو دروازي ته منخونه ور واړول په دې څند کې رام داس اورندهير درمسال ته ور ننوتلى وو خلکو له يو بل سره ګونګوسي پيل کړل، رام داس بيله دې چې څه ووايي خلک يې يوې اوبلې خوا ته کړل اود بوت مخې ته ورغى مادهويى ولېد بيايى خلکو ته مخ واړاوه:

تاسو ټول خپلو خپلو کورو نو ته ولاړ شي نن قرباني نه کيږي.

که دورغې رڼا دشپې پرتيارو بدله شوې واى خلک به دومره نه وو حيران او وارخطا شوي.

مذهبي پيشوا!

دقرباني ټول رسمونه پوره شوي دي اوس يې څنهول نه ستا په وس کې دي او نه زموږ. رام داس دماد هو دلاس اوپښو پرې په توره غوڅ کړل ويې ويل:

زه هر وخت دظلم دمخنيوي حق لرم.

دتوري ديوى د درمسال مشر لږ وويريده خو د لوى درمسال مشر راوړاندې شو ويې ويل:

واکمنه! داته څه کوي دا خو دمذهب دعزت خبره ده.

رام داس پرې پرې کول ځواب يې ورکړ.

دمذهب عزت په بې عدالتى کې نه دى په انصاف کې دى ، مذهبي مشر وويل:

باداره! څنګه بې عدالتي! هغه مذهبي سرود ويلى، بوتان يې غلا کړي دي اودبرهمنانو قومي مشرانو چې کومه پريکړه وکړه ته هم ورسره

نه، د ديوى سپكاوى به نه كيږى قربانى به خامخا كيږى!

خلكو هم شور ګډ كړ:

قربانى به كيږى ، قربانى به كيږى.

رام داس دمادهو دلاس اوپښو تول پرى غوڅ كړى وو ارجن ته يى وكتل او لږ په تونده لهجه يى وويل:

ارجنه! ته پوهيږى چى دا بى ګناه دى ، بوتان يى نه دى غلا كړى.

ته پردى هم پوهيږى چى دا بوتان دچادى؟ زه ستا دعزت لپاره هرڅه كولى شم خو پرده ظلم نشم كولى.

ارجن پښيمانه شو سترګى يى ټيټى كړى ، خو خلكو همغسى شور كاوه چى قربانى به خامخا كيږى ، قربانى به كيږى .دښاريوه برهمن مخور چى دراجه په دربار كى دلوى مذهبى مشر له خپلوانو څخه ؤ وويل:

باداره! ته د مذهب په چاروكى دلاسوهنى حق نه لرى تاسو دى له دى ځايه نشى بوولى كه تاسو له زور نه كار واخلى نو موږ به راجه ته ورشو.

رام داس ځواب وركړ:

زه دعدالت په معامله كى له هيچا نه ويريږم ، ما ته معلومه شوى ده چى دغه بوتان ده پخپله تراشلى دى له درمسالونو څخه يى غلا كړى نه دى.

- واكمنه! ستاسره يى څه ثبوت دى چى بوتان يى پخپله جوړ كړى

رندهیر وویل:

ماپخپلو سترګو دلوی ډنډ پر غاړه لیدلی دی چی بوتان یی تراشل.

– اومذهبی سرود ؟

رام داس وویل:

هغه کسان چی پرده دسرودویلو تورلګوی زه یی داعتبار وړ نه بولم رندهیره! دی درسره بوزه.

برهمنی مشرانو دسردار په وړاندی خپله ماته نشوای زغملی ، په درمسال کی راټولوشویو خلکو ته یی دبی همتی پیغور ورکړ اوغوښتل یی راویی پارویی. ترنیمایی زیات لوړذاتی دهغه پلویان شول.

دلوی درمسال مشر وویل:

باداره! اوس مورږ پردی بحث نه کوو چی دی بی ګناه دی او که ګناهکار ، چی ټول مراسم ترسره شوی دی نو خامخا باید قربانی وشی.

نجیب زاده ګان چی دمذهبی مشرانو پلویان شول رام داس خپه شو ویی ویل: ښه ده قربانی به ترسره کیږی

په درمسال کی دتوره دیوی دی ژوندی وی ، ټولواک دی ژوندی وی ، ناری اوچتی شوی رام داس دلاس په اشاره خلک چوپ کړل اوویی ویل:

مګر قربانی به دی نه ورکوی زه یی ورکوم.

په شلګونو غږونه په یو غل اوچت شول:

ښکته واچاوه او زیاته یې کړه:

که قربانی دومره ضروري وي نو دادې زه حاضریم.

مذهبي پیشوا! تاسو ټول مراسم ترسره کړي دي جلادته امروکړ چې زما سر ووهي زه ددیوې په در ناوې کې خپل سرورکولی شم خو هغه دیوه بې گناه دوینو په څاڅکو داغدارولی نشم.

رام داس دانساني فطرت پرکمزوریو خبرؤ، دهغه دغه چل کار وکړ دمشرانو خولې ترلږ څنده گونگې شوې.

ارجن یې لاس ونیو اورا اوچت یې کړ.

رام داس مذهبي مشر ته وکتل وې ویل:

جنابه! بس دهمدومره خبرې نه وویریدې؟

رام داس دا وویل او مادهو یې ترلاس ونیوله درمسال څخه راووت، رندهیر هم ورسره راووت.

خلک دومره وارخطا وو چې دچا په زړه کې ددوې دمخې نیولو خیال هم نه تیریده.

چې له درمسال څخه را ووتل رام داس له مادهو څخه پوښتنه وکړه:

مادهو سکدیو چیرته دی؟

هغه ځواب ورکړ:

دهغه دمرگ ډیره موده تیره شوې ده.

دمور نوم دې کنول دی که نه؟

مادهو په اثبات سر وخوځاوه رام داس وویل:

اودغرونولوري تەولاړ شي. هلتەوګوره دهغې غونډې پەلمن کې یوه چینه ده دشپې هلتەځانونەورسوي اوزما انتظار کوي ،زه بەسبا تە مخکې لەدې چې سهارشي ځان دررسوم بیره کوه وخت مەتیروه.

ددغو خلکو احساسات تر ډیره وختەساره نشي پاتې کیدای.

دمنني لپاره الفاظ دمادهو پەسینه کې ښخ پاتې شول اوده بیله دې چې څه ووايي د درمسال لەانګړ څخه منډه واخیسته.

رندهیر وویل:

پلار جانه! کەستا اجازه وي زه به هم ترڅایه ورسره ولاړ شم اوبیا به بیرتەراوګرځم. رام داس وموسکل اورندهیرته یې وکتل پوښتنه یې وکړه:

دمادهو دخور نوم څه شی دی؟

دده سترګې را ډکې شوې ځواب یې ورکړ:

شانتا.

رام داس وویل:

رندهیره! اوس هلته تګ مناسب نەدی ته زما سره راځه!

- مګرپلار جانەهغەمری.

-څوک ؟ شانتا پر هغې څه شوي دي؟

رندهیر غوښتل دهغه دپوښتنې ځواب ورکړي خولەدرمسال څخه دبرهمنا نو یوه ډله پەشور ماشور راووتله.

رام داس وویل:

راخلاصاوه چې لالو ګرندی ورغی اوتری ویې پوښتل:

ته ښارته ځې؟

– نه زه بل چیرته ځم دایې وویل اوبیا یې پر آس پښه واړوله خو لالو یې جلب ونیو او ورته ویې ویل:

زه پوهیږم چې ته دشانتا دلیدو لپاره ځې خو هغه په کورکې نشته مادرسره بوزه ماته معلومه ده چې هغه چیرته ده.

– ښه ده په ماپسې راسپور شه خو ته ځوک یې؟

شانتا څنګه پیژنې اوهغه ګوتیې دی چې راوړه تاله کومه کړه؟

لالو بیله دې چې ځواب ورکړي په یوه ټوپ د آس پر شا سپور شو اوچې آس چار ګام په زغلیدشو ده وویل:

زه یو زیری درته واوروم؟

رندهیر ځواب ورکړ:

اوس ماهیڅ خبر نشي خوشاله کولی، ووایه څه وایې؟

لالو وویل:

خبره اصلاً داسې ده چې شانتا رکه روغه ده!

درندهیر زړه دخوښیو په سمندر کې لاهو شو هغه د آس جلب راکش کړ

لالو ته یې مخ راواړاوه ویې ویل:

دخدای لپاره رښتیا رښتیا ووایه!

لالو وویل:

- هلته!

- هوکې.

- نو ته په ښار کې نه اوسېږې؟

- نه

- ته لوړ ذاتې نه یې؟

- نه

-نو څوک یې؟

-لومړی وعده وکړه چې له آس نه به مې نه غورځوې.

- ولې به دې غورځوم؟

-زه ټیټ ذاتې یم.

- ټیټ ذاتې! .. مگر ستاجامې خو ...!

- داټول ستا سو خلکو راکړه ده.

- زما ستا پر خبرو باور نه راځي ستاژبه هم د ښار دخلکو په څیر ده.

کـه مې ستاسو په شان خبرې نه وای زده کړې نوستاسو په کوررونو اودرمسالونو کې به داسې آزاد نشوای گرځیدای.

- ته ډیر زړور ښکارې، رندهیر داوویل اوآس یې پونده کړ.

لوی ډنډ ته چې نژدې ورسیدل مادهویې ولید چې منډې یې وهلې چې هغه ته ورنژدې شول رندهیر لالو ته وویل: گوره اوس دبدهو په باب ده ته څه مه وایه.

لالو ځواب ورکړ:

# اقرار

دلمرلویدو نه لړمخکی رام داس اورندهیر دخپل کور په انګړ کی تریوه ونه لاندی پرچوتره ناست وو، رندهیر هغه ته خپله کیسه اوروله، چی کله یی دماشومتوب لەلو مړی ملاقات نه دځوانی تروروستی لیدو پوری تولی کیسی واورولی نورام داس وویل:

رندهیره! ربښتیا وایه شانتا ربښتیا هم ډیره ښایسته ده؟

رندهیر پلار جانه! وویل اوبیا یی سترګی ښکته واچولی.

رام داس بیا وویل:

دسکدیو او کنول لور خامخا باید ښایسته وی ښه ته داراته وایه چی تەربښتیا له هغی سره مینه لری؟

رندهیر خجالت غوندی سترګی راپورته کړی ویل یې:

پلار جانه!..... زه..... زه له هغی پرته ژوندی نشم اوسیدای.

– ته پوهیږی چی تول عمر باید دسکدیو پەخیر پر ازغیو مزلونه وکړی؟ ددغو ښارونو اوښکلیو مانیو دروازی بەدتل لپاره ستا پرمخ

-رندهيره! كه‌زه درته ووايم چې ددې نجلۍ په‌باب سوچونه پرېږده څه‌وايې؟

- پلار جانه! بيا به‌زه درته‌ووايم چې په خپلو لاسومې‌زندې كړه.

- اوس به‌هغه‌ډېر لرې تللې وي.

- هو كې پلاره، زما په‌گومان به‌يې اوس نيمايې لاره وهلې وي.

- شانتنا اوس بلكل روغه‌ده كه‌نه؟

- هو كې‌پلار ه هغه‌هلک دروغ ويل:

- هغه څوک ؤ؟

- رندهير ددې‌پوښتنې په ځواب كې دلالو په‌باب ټوله كيسه وكړه.

رامداس له‌ لږ فكر كولو وروسته پوښتنه وكړه:

رندهيره! ته‌خبريې چې موهنې له‌ماد هوسره مينه‌لرې؟

-زما باور دې.

- داپرې خبره‌ده چې‌ماد هودسكديو زوی دی؟

-نه‌لكه چې خبره‌نه‌ده.

رام‌داس بيا به‌سوچونو كې ډوب شو.

موهنې په منډه دكور انگړ ته ورننوته اوچې رام داس ته‌نژدې شوه ويې ويل:

كاكا جانه! هغوی وژغوره، زما پلار جان دښار ډېر كسان ورسره ملگرې كړل اوپر هغوی دحملې اراده لرې.

نوزه څه وکړم؟

کاکا ته دښار مشر یی پلار جان می منع کولی شی.

تا هغه دقربانیدونه وژغوره ایا اوس داخوښوی چی ووژل شی؟

- لوری! ته هغه ته دومره ولی په اندیښنه کی یی دتقدیر لیک څوک ورکولی شی؟

موهنی چی له‌رامداس نه‌مایوسه‌شوه رندهیرته یی مخ واړاوه:

رندهیره! ته څه وکړه دوی غواړی چی هغه‌ژوندی وسوځوی! دخدای لپاره ورشه!

درندهیر په‌خیره کی چی موهنی داندیښنی پرڅای د ډاډینی نخښی لیدی زیاته یی کړه:

نودا هر څه هسی دړپالپاره وو، ستا په‌سینه کی هم همغسی زړه دی لکه داد نورو ته‌بی همته یی.

اوبیا یی په‌سترګو کی اوښکی راغلی، رامداس له چوتری څخه لاندی کوز شو او په‌مینه یی دهغی پر سرلاس راتیرکړ وی‌ویل:

لوری! دیوه‌تیټ ذاتی سره دومره خواخوږی؟

موهنی سلګی وهلی ویی ویل:

زه پوهیدم چی دپلار جان په‌خیر تیټ ذاتی تاسو هم انسانان نه بولی.

- لوری! زه نه‌وم خبرچی ته له‌هغه سره دومره مینه کوی، زه به‌مرسته

- چیرته ځیر لری؟

- غرونو ته.

- دموهنی په خیره کی دخوښیو اوغم څپی یو پربل پسی واوښتی زړه یی یو ځل په درزاشو اوبیا بیرته ودرید دسترګو چراغ یی دیوی شیبی لپاره روښانه شو او بیرته ګل شو ، دهغه له شونډو د درد له تل نه غږ اوچت شو:

تاهغوی له وطنه وشړل؟

رام داس ځواب ورکړ:

دهغوی دژوند دژغورنی لپاره داضروری وو چی لری چیرته ولاړ شی.

- لری کوم ځای ته؟

- بس داسی یوه ځای ته چی دښا رهیڅوک هم هلته دتلو توان ونه لری.

دموهنی سترګی له اوښکو راډکی شوی. رام داس وویل:

هی هی... ته اوس هم ژاړی اوس خو ستا دغم هیڅ سبب پاتی نشو ، هغه ژوندی دی ژوند ته یی هیڅ خطر نشته تردی زیات څه غواړی؟

موهنی رام داس ته دځه ځواب پرځای رندهیر ته وکتل ویی ویل:

دهغه مور اوشانتا هم ورسره تللی دی؟

رام داس رندهیر ته دځواب موقع ورنکړه ویی ویل:

هوکی! هغوی هم ورسره دی اورندهیر هم په هغو پسی ورتلونکی دی ، دی دهغی نجلی پرسر زموږ نه بیلیږی.

پريښوداى شم بيله هغې زه ژوندى نشم اوسيداى.

رام داس دموهنى ترمټ ونيوه ويې ويل:

مگر ستا پلار، موردى داتول به پرېږدې؟

موهنى بې دريغه وژړل ويې ويل:

زه دهيچا پروانه لرم.

- مگر دنيا به څه وايې؟

-زه ددنيا پرواهم نه لرم كاكا! پر ما لورينه وكړه كه نه چيرته به په سيند كې ځان ډوب كړم اويا به گړنگ ته ځان وغورځوم.

-ښه ده لورې! اوس ځان تيار وه.

رندهير دشپې مهال له ښاره بهر دهغې غونډې سره نژدې چې پر سر يې دپيپل ونې دې ستا انتظار كوي ستا سو دواړو لپاره به هلته اسونه هم تياروى خو څوک درنه خبرنه شي.

**(٢)**

دشپې مهال رام داس ترډير ځنډه دكور پر بام له قدم وهلو وروسته پر چپر كټ پريووت دهغه پر زړه له زغم نه وتلى بوج ؤ. خپل پراخ كور تول ورته ويده معلوميده ،له نن نه لس كاله مخكې درندهيرد مور دمړينې نه وروسته دده تولـه مينه اوزړه خوالى له خپل ايكې يوازې زوى رندهير سره وه، له ماشومتوبه ترځوانى پورې درندهير مختلف تصويرونه دده مخې ته را تلل ، هغه ماشوم هلک چې په وړوكو خپرو به

غیشي ویشتل ، دآس سپارلي اونیزه وهل ورزده کول اوبیا هغه ځوان چي هره خبره یې ده ته دنړۍ ترټولو انسانانو ځانګړې او غوره ښکاریده ،ده ته به درندهیر په خیره کې دپاچاهانو دبدبه اوددیو تا ګانو سپیڅلتیا ترسترګو کیده د ورځې به یې ځوځلې ترخوله وتل:

زما زوی.زما رندهیر!!

درندهیر مور دموهني دمور اندیواله وه او ارجن درام داس له غوره دوستانو څخه یو ؤ. ځکه خو له رندهیر سره دارجن اوساوتري زړه خواله طبیعي وه دوی درندهیر اوموهني دشریک ژوند پریکړه په خپلو زړوکی له ډیري مودي راهیسي کړې وه خو دتازه پیښو نه اتکل کیدونکي توپان ددوی دهیلو ډیوې ورمړې کړې دوی ته له شانتا سره درندهیر دمیني خبر له زغم نه اوچت ؤ بیا یې هم دا تمه وه چي په منت اوګوا ښلو به هغه وپوهیږي.

خو دمادهو اوشانتا دپلار نه چي خبر شو ده دمایوسي وروستی ګوټ ترستوني تیر کړ.

دسکډیو سره دده پخواني میني یو ځل بیا دی دتولني له قانون نه بغاوت ته اړ کړ اورندهیراو موهني یې رخصت کړې وو.

نوکرنن هم دپخوا په څیردرندهیر بستره دده دکټ ترڅنګ وغوړوله، رام داس هماغسي چي پروت ؤ لاس یې وروغځاوه اودرندهیر بالښت یې راواخیست پرتتر پوري یې کلک کړ.

هغه سترګي چي له ډیري مودي راهیسي له اوښکو سره نا آشنا وی

ښايي پرديرو پريوزي او زه.... ؟
رام داس داوويل او بيا راچگ شو.

ورو ورو يې قدم واهه نژدې له نيمې شپې وروسته يې يو نوکر ته غږ وکړ او داس دزين کولو امر يې ورته وکړ نوکر دامرله اوريدو وروسته بيرته ولاړ او لږ څند وروسته بيا راغي ويې ويل:

باداره ! اس تيار شوی خو ارجن لاندی ولاړ دی او غواړي له تاسره ووينې.

رام داس وويل:
پاس يې راوله او پخپله بيا پر کټ کيناست.

**(۳)**

ارجن چې پاس ورغی ويې ويل:
باداره! موهنې دشپې مهال له کوره وتلې ده تراوسه پورې بيرته نه ده راغلې.

ماپه تول ښار کې ولټوله رندهير چيرته دی؟
رام داس ځواب ورکړ.
رندهير دلته نشته ته کښېنه!

– نه زه ډير پريشانه يم رندهير له څه وخت را په دې خوا په کور کې نشته؟

رام داس وويل:
ارجنه! کښېنه زه غواړم څه در ته

ارجن پريشانه شو کښيناست.

رام داس وويل:

ارجنه! تاخو به سکديو هير کړی نه وی؟

هغه ځواب ورکړ:

زه سکديو چيرته هيرولی شم خودد ی خبری له موهنی سره څه دی؟

ارجنه! رنډهير اوموهنی موږ پريښودو او وتښتيدل.

ارجن وارخطا جګ شو ويې ويل:

موږ يې پريښې يو وتښتيدل؟

- هو کې وتښتيدل، رنډهير دسکديو په لور پسې اوموهنی دهغه په زوی پسې ولاړل.

- دسکديو په زوی اولور پسې! زه پوه نه شوم دخدای لپاره مامه پريشانه کوه.

رام داس جګ شو دارجن پراوږه يې لاس کيښود ويې ويل:

ارجنه! زه رښتيا وايم.

ارجن وويل:

مگر دا څنګه امکان لري؟ ايا هغه تيښته ذاتی . . . ؟

- هو کې هغه تيښته ذاتی دسکديو لور اوزوی دی.

ارجن ترلږ ځنډه هک پک ولاړ ؤ بالاخره په غوسه شو ويې ويل:

نه، زه دانه منم، دا دروغ دی هغوی تيښته ذاتی وو دښار ټول خلک خبر دی چې هغوی دغلام اولاده وه تاځيل مذهب پريښې دی اوځيل زوی

ووژنم.

تانن ددوستی حق اداکړ هغه ذلیل ، سپک تیټ ذاتی زما عزت ته لاس اچولی ؤ اوتا دتوری دیوی له درمسال نه را ویوست اوخوشی دی کړ، راته ووایه هغه چیرته دی؟ ماپه تولو کلیو کی لټولی دی ، بیشکه سردارته یی خوزه بی غیرته نه یم زه به ترسهاره د ښار ټول خلک راپورته کړم اودتیټ ذاتو پر کلیو به حمله وروړم ته مشریی پوځیان درسره شته خوددی سیلاب مخه نشی پری نیولی.

په عادی وضع کی رام داس دداسی خبرو له زغملو سره عادت نه ؤ خودارجن خبری یی چی واوریدی غوسه یی غلی کړه په نرمی یی وویل:

ارجنه! ته پوهیږی چی زه داسی څوک یم چی ویریږی نه ، زه به له ظلم څخه دبی وزلو اوبی ګناهو کسانو په ژغورلو کی دخپلو وینو تروروستی څاڅکی پوری تویی کړم، خوته زما پر خبره باور وکړه زه سوګند یادوم چی هغه دسکدیو زوی دی ماددی ثبوت پخپلو سترګو لیدلی دی له جیل څخه دسکدیو په خوشی کولو کی ته زما سره ملګری وی ،هغه د باغیانو دمشرله لورسره واده کړی ؤ سکدیو مړشویدی خوښځه او بچیان یی ژوندی دی ،دوی دی ښار ته نژدی آباد شول دټولنی قانونی دښار دروازی پر هغوی دتل لپاره تړلی وی خود خدای هم عجیب تقدیر دی هغه رندهیر اوموهنی ته ددوی دجونګړی لاره وروښوده.

دارجن غوسه ورو ورو کیمده هغه وپوښتل:

مادسکدیو گوتیی او خپله توره ولیده چی دجیل نه له راایستلو وروسته
می درخصتولو په وخت کی ورکړی وه.

اوتاپخپله هم ولیده چی دهغه هلک ځیره کټ مټ سکدیو ته ورته وه.

ارجن وویل:

بیا هم زه موهنی دبخښنی وړ نه بولم هغه زما مخ تور کړی دی زه یی
په دنیا وشرمولم دسکدیو زوی دیوی تیټ ذاتی نجلی له خیتی پیدا
شوی دی هغه پلید دی.

رام داس وویل :

ارجنه! مینه لوړ اوتیټ ذات نه پیژنی ،دهغی له تولنی سره هیڅ اړیکی
نشته له انسانیت سره دی ، ته وو ایه زموږ په ښار کی ددغه هلک په ځیر
ښا یسته څوک دی؟تایو وخت دباغیانو دسردار له لور سره سکدیو په
مینه کی پرحق باله اوزما په ځیر دی ویل چی هغوی دواړه خدای یو دبل
لپاره پیدا کړی دی ،زه اوس هم همدا وایم چی دسکدیو زوی اوستا لور
خدای سره یو ځای کړی دی ،هغه پرموهنی خپل سرورکولو ته تیارو او
موهنی دهغه لپاره په سیند کی ځان ورغورځولو اویا ګړنګ ته توپ ته
تیاره وه.

ستا په ځوریدو زه پوهیدم خو چی باور می شو چی موهنی دهغه لپاره
ترهر څه تیره ده بیا می یی لاره ونه نیولی شوای زه په موهنی همدومره
خپه یم لکه پر رندهیر.

ارجن وویل:

دخوښی لپاره دخپلو اولادونو قربانی نشی لیدلی.

– اومذهب؟

– موږ دمذهب ترپردی لاندی دفطرت سره په جګړه یو دانسانیت ځیره مسخه کوو، یوه انسان ته له بل سره دکرکی اونفرت درس ورکوو د خدای دانسانانو ترمنځ دلوړ ذاتو اوټیټ ذاتو په نامه دیوالونه دروو داسی دین نه خدای خوشاله کولی شی نه دخدای دپیدا کړیو انسانانو په خیر دی.

ارجن له لږچوپتیا وروسته وویل:

ته داخبره ددی لپاره کوی چی رندهیر یو نارینه دی ته له کوره دهغه دتیښتی په اړه دیر ی پلمی کولی شی، خوزه دیوی لور پلار یم سبا ته به دښار هرزوړ او ځوان له مانه دموهنی په اړه پوښتنه کوی زه به هغوی ته څه ځواب ورکړای شم؟

رام داس وویل:

فرض کړه چی که هغې دمایوسی په سبب ځان په سیند کی غورځولی وای یایی له ګړنګه ټوپ وهلی وای نوتابه څه ځواب وایه؟

– رام داسه! زما عزت وساته راته ووایه هغوی چیرته دی زه به یی وپوهوم زه وعده درسره کوم چی دغه خطایی به یی وبخښم.

– ارجنه! زه یوازی دومره خبر یم چی هغوی د سکدیو له زوی سره تللی دی اودنړی هیڅ ځواک یی اراده پری بدلولی نشی، امکان لری زه یی ستا په خبرو نرم شی اودخپلی رضا پرخلاف بیرته درسره راشی خو بیا به هغه دلته هغه ژوندی موهنی نه وی بلکی یو بی روحه بدن به

د قانون د درناوي پرځاى دپلار ولي د ميني تکانونه پکي زيات دي.

ايا ته به پردى خوښ شي چي موهني تپى تپى شي اومړه شي؟ ارجنه؟ زما دخبرى ځواب راکړه ايا لەواده نه مخکي تادهمدغه قوم له يوى نجلي سره مينه نه درلوده؟ که هغي ستا ميني تەشانەواى کړى اوله خپل پلار سره غرونو تەنەواى تللي ته دهغي لپاره دتولني دهر قانون ماتولو ته تيار نەوى؟

ايا تاڅاوس هم کله کله دهغي خيالونه نەانديښمن کوى؟ کەهغي ستا سره يو ځاى ژوند منلي واى آيا تا به ددوى پەجونګړو کي ژونددښار ترمانيو غوره نەؤبللي؟ يادېږى دى چي ما پوهولي اوتابەخپل دښمن ګڼلم، ايا تەهماغه ارجن يى؟

ارجن ديوه زخم خوړلي انسان په څير بى سيکه پر کټ کيناست دهغه مخي تەدنى نەشل کالەوړاندى پيښو تصويرونه را غلل، هغه ښکلي سهار چي ده يوه تيټ ذاتي نجلي پەسيند کي دلامبو پەحال کي ليدله، هغه دسپوږمي شپه يى پەياد شوه چي دهغي لاس يى نيولي ؤ ويل يى:

سنتي! زه ستا لپاره هرڅه پريښودوتەتيار يم ،دده پەځواب کي دهغي ساده اومعصومي خبرى شل کاله وروسته پەغوږو کي کړنګيدلي چي ويل يى:

نه، نه، زه خبره نەوم چي ته دپاچا سپاهى يى ،ستا پر غاړه زموږ دقوم سلګونو تنو بى ګناهو وينى دى تەزموږ دښمن يى زه بەله تاسره دميني کولو پرځاى مرګ غوره وبولم ستا پر هيڅ خبره زما باور نشته.

ارجن ټکان وخوړ رام داس ته یې وکتل اوویې ویل:

رام داسه ماخجالت کوه مه هغه زما دځوانی او ناپوهی شپی ورځی وی.

– نه، یوازی ته نه! په داسی عمر کی هر انسان ساده او کم عقل وی زه پخپله که ستا یاسکدیو پرځای وای نو همداسی به می کول او که درندهیر مور دکومی نجیبی کورنی پرځای دتیټ ذاتو په کور کی زیږیدلی وای نو مابه هم دهغی لپاره دټولنی دکوم قانون پروانه وه کړی ، ته دا دځوانی ناپوهی بولی خو زه یې دفطرت د قانون پیروی بولم تقدیر چی کله وغواړی دوه زړونه یو ځای کړی نو دلوړ او ټیټ ذات دیوالو نه ماتوی.

خدای ځو ک لوی او ځو ک وړوکی نه دی پیدا کړی، زموږ دټولنی قانون دتقدیر دقانون پرخلاف بغاوت دی .

زه پوهیږم چی دټولنی له قانون څخه سرغړاوی به دلږی مودی لپاره موهنی اورندهیر ته یو تکلیف وی خو کـه دټولنی له ویری دوی دفطرت قانون ماتوی پردوی به یو همیشنی عذاب مسلط وی.

ارجن بی ځوابه شو ویی ویل:

رام داسه! ما وبخښه، زما تر خوله ځو تر خی خبری ووتلی ، خو دموهنی پرهمیشنی بیلتون به یی دمور څه حال وی؟

رام داس ځواب ورکړ:

مور ته دخپلو اولادونو تر ښه ژوند هیڅ شی هم غوره نه وی، دموهنی

رام داس ځواب ورکړ:

ددې ذمه واري پرما!

- هغوی اوس چیرته دي؟

- اوس کورته ولاړ شه ساوتري خور ته تسلي ورکړه، زه به مو په ځو ورځو کې هغوی ته بوزم، که چا پوښتنه کوله ورته ووايه چې موهنې له سينده پورې غاړې ته د بابا خيلو کره تللي ده.

ارجن جګ شو او ښکته کوز ويدو چې رام داس ورته وويل:

زه يو ه ضروري خبره درته کوم.

ارجن مخ راوګرځاوه او ورته ويې کتل، رام داس وويل:

زه سهار ته چيرته ځم، ښايي ترماسپښين پورې را نشم. دښـــار زياتره خلک دتيتې ذاتو په باب راپاريدلي دي. زمـــا تر راتګه دهغوی دجونګړو دساتنې ذمه واري ستا پر غاړه ده.

ارجن وپوښتل:

ته چيرته ځې؟

رام داس ځواب ورکړ:

ديوه طبي بوټي په لټون پسې، زما دپښو بندونه بيا خوږيږي.

درام داس ځواب ارجن داده نه کړ، ښايي هم دساوتري لپاره ځان کورته رسول ضروري وبلل.

دارجن د تلو نه وروسته رام داس احساس کړه چې له زړه څخه يې يو درونده بار سپک شو.

# د هیلو سهار

نژدی تر نیمی شپی پوری رندهیر او موهنی په سختو غرنیو لارو کی یوی او بلی خواته سرگردانه وو، بالآخره یی یوځای اور تر سترگو شو او رندهیر وویل:

بس نور راورسیدو، لالو ویل چی زه به اور بل کړم هغه ډیر هوښیار هلک دی.

موهنی تری وپوښتل:

لالو څوک دی؟

رندهیر ځواب ورکړ:

یو عجیب هلک دی، زړه یی دزمری دی، سترگی یی دشاهین او بدن یی دپړانگ په څیر دی، ته خو به یی دعمر تر پایه داحسان بدل ورنکړای شی، که دی یوه شیبه مخکی درمسال ته نه وای رسیدلی او دجلاد لاس یی نه وای نیولی نو دهغه تیغ دمادهو ورمیږ ته وررسیدلی.

-بیا هم هغه څوک دی؟

دموهنی ددی پوښتنی په ځواب کی د لالو په اړه رندهیر ټوله کیسه هغی

شو چې سهار راپاڅيد څادر او پايزار يې نه وو.

ښايي دا هم دده کارنامه وي.

ناڅاپه له يوه لوري غږ راغی:

ديوی! هغه څادر اوس هم له ماسره شته خو پايزار مې په کار رانغلل ستا

د پلار پښې ډيرې لويې دي.

رندهير او موهني آسونه ودرول او په تياره کې يې سترګې په ځير ځير

يوې او بلې خواته اړولې ، رندهير وويل:

لالو ته يې؟

لالو په کړس کړس وخندل او وړاندې ورغی د رندهير د آس جلب يې ونيو

ويې ويل:

څنګه جنابه! تا خو ويل چې تو له لاره راته معلومه ده که ما اور نه وای بل

کړی څه به مو کول؟

اوس دلته راکوز شي وړاندې لاره خطرناکه مخ ځوړې ده.

دوی دواړه له آسونو پلې شول رندهير د موهنی آس تر جلب ونيو او له لالو

نه يې وپوښتل:

په لاره کې خو به تکليف نه وي دررسيدلی؟

لالو ځواب ورکړ:

په لاره کې څه تکليف نه ؤ خو چې دلته راورسيدلو ما د بدهو په مرګ خبر

کړل ، مادهو او دهغه خور او مور درې واړه تر اوسه ژاړي.

راسپړلی وو.

کنول به په وار وار دهغه د مینې ،قربانۍ او خلوص یادونه کوله اوژړل به یې او رندهیر به دادینه ورکوله.

موهنی دحیا په سبب زیاتره چوپه وه.

مـادهو تـه دهغـه راتلل له اتکل لری وو ، کـه دبدهو د مـرگ ویر نه وای خدای خبر دی چې دموهنی راتګ به دده په زړه څه ډول اغیزه کړی وه.

بیا به هم هغه په زړه کې داپوښتنې تکرارولې چې آیا هغه ربښتیا راغلی ده ، داامکان لری او هسې خوب خو نه دی؟

دهغوی ټولو لپاره دا دوهمه ناآرامه شپه وه.

شانتا دشپې په وروستی برخه کې پریوه ډېره سرکیښود او ویده شوه ، موهنی هم له خوبه زنګیدله، کنول چې هغه په دې حالت کې ولیده سریې په غیږ کې کیښود او ورته وېی ویل:

لوری ویده شه.

سهار چې موهنی سترګې وغړولې کنول به پرې ورتیته شوه اوښکلو له یې ، موهنی بیا لاسونه وغځول او ورسره غیږ په غیږ شوه وېی ویل:

موری!

-لوری.

دموهنی په سترګو کې دمننې اوښکې وځلیدې.

رندهیر د چینې پر غاړه ناست ؤ او لاسونه او مخ یې مینځل.

شانتا دوزې دشیدو له یوې پیالې سره ورغله او چوپه ودریده ، رندهیر ي...

دا واخله!

رندهیر له یوې شوخې موسکا سره ورته وکتل او چې شانتا ورته موسکې شوه نو رندهیر ته ټول کاینات په خندا کې ډوب ښکاره شول.

ده ورته وويل:

لومړی یې موهنې ته ورکړه چې وېې څښې.

شانتا ځواب ورکړ:

مورمې هغې ته هغه وخت وروڅښلې چې ته ویده وې.

رندهیر پیاله واخیسته او خوله یې پرې کېښوده.

په شیدو کې نن ده نوی خوند او خوږ والی احساساوه.

(۳)

لږ څند وروسته رام داس راورسید، لالو په منډه ورغی.

د آس جلب یې ونیو، موهنې او رندهیر ورانده ورغلل او دهغه پر پښو یې لاسونه ورکېښودل او چې دوی یې ولیدل، مادهو او شانتا هم په دې نیت ور نژدې شول، رام داس دشانتا پر سر دمینې لاس کېښود، کنول ته یې وکتل او وېې ویل:

خورې ما پیژنې؟

کنول هغه ته دمننې په نظر وکتل او ځواب یې ورکړ:

نو زه تا چیرته هیرولی شم!

دواړو یو بل ته تر لږ څنډه په چوپتیا کتل بالاخره رام داس وویل:

ښايي له لارې سره تاسو نابلده وئ خو ددې غونډۍ شاته به خامخا کوم شپون او يا ښکارې په مخه درشي.

کنول ځواب ورکړ:

زه په دې سيمه کې لويشت په لويشت بلده يم، خو تر ما زيات تيجو او لالو په دې لارو ښه بلد دي.

تيجو څو گامه لرې لاس په نامه ولاړ ؤ، رام داس هغه ته وکتل او ترې وپوښتل:

ته له دوی سره ځې ؟

هغه ځواب ورکړ:

هو کې باداره.

–ډير ښه! نور مه نا وخته کوی، زه هم تر لږ ځايه درسره ځم.

لالو درام داس د آس جلب مادهو ته ورکړ او پخپله دمېږو په راغونډولو کې له تيجو سره ملگرې شو.

رام داس د مادهو له لاسه د آس جلب واخيست او رندهير او مادهو ته يې وويل چې هغه دوه آسان را اولي چې هلته نږدې په يوه بوټي پورې تړلي وو. کله چې هغوی آسان راوستل ده بيا موهني او شانتا ته وويل:

تاسو دواړه پراسونو سپرې شئ.

شانتا او موهني داداب او حيا په وجه زړه نازړه وې، خو درام داس پر ټينگار موهني رندهير او شانتا مادهو پر آس سپرې کړې.

نه زه پلی ځم.

رام داس وویل: نه خوری په پیچو می ختل در ته گران دی نور باید ځند ونه کړو.

رندهیر د رام داس خبره تائید کړه او کنول مجبوره شوه چی پر آس سپره شی.

رندهیر، مادهو او رام داس د موهنی، شانتا او کنول د اسونو جلبونه ونیول او په یوه تونده او نری لاره پر غره ور وختل.

رام داس په لاره کی دسکدیو په باب وپوښتنل او کنول له جیل څخه د خلاصون نه دهغه تر مرگه تو له کیسه ورته تیره کړه.

کله چی دبدهو یاد راغی بی اختیاره په ژړا شوه، رام داس د تولی کیسی له اوریدو وروسته وویل:

خوری! افسوس چی ته دومره وخت دلته وی خو زه دربانده خبر نه شوم، زه دبدهو په مرگ خپه شوم اوس دهغه پرځای رندهیر او موهنی در ته سپارم.

رام داس موهنی ته مخ ور واړاوه، هغی سر ښکته اچولی ؤ او اوښکی یی تویولی.

(۴)

نژدی ماسپښین دغه خلک پر غره واوښتل او یوی سمسوری دری ته ورننوتل، هلته یو ځای تم شول او دلالو او تیجو دورتلو په انتظار شول.

داډ ورکړ اوس له تا نه خپه نه دی هغه پردی خبر نه ؤ چی مادهو دسکديو زوی دی.

ما وعده ورسره کړی ده او ډير زر به هغه او مور دی دواړه تاته راولم.

بيا يی رندهير ته وويل:

زويه! ماته دی تر څو ور ځو پوری دنوی کور ځای راوښيه.

رندهير په غمجنه لهجه وويل:

پلار جانه! ته ولی له موږ سره نه ځی؟

کنول هم وويل:

هوکی وروره راسره ولاړ شه!

موهنی هم ور غبرګه کړه:

راځه کاکا!

مادهو وويل:

راځه هلته به تاته هيڅ تکليف نه وي.

شانتا تر اوسه چوپه وه، ر [illegible] هی ته وکتل ويی ويل:

لکه چی شانتا لور می نه غواړی چی ورسره ولاړ شم.

هغه تراوسه چوپه ده.

شانتا وارخطا غوندی شوه ويی ويل:

پلار جانه! که زما خبره منی نو يو ځل نه زر ځله به ووايم چی راسره ولاړ شه.

رام داس له مينی ځخه په ډکه لهجه وويل:

زه چې هلته او سیږم د زړګونو مظلومانو ساتنه کولای شم . که زه نن ښار پریږدم امکان لري بیا دګنګا رام په څیر څوک دښار سردار شي او دتیټ ذاتو دقرباني لپاره به د توري ديوي د درمسال دروازي بیا پرانستل شي. زه چې تر څو پردي ډاډه نشم چې زما پرځای به یو نرم زړی انسان راځي همالته به وم او دهغو خلکو ساتنه به کوم.

رندهیر وویل:

مګر پلار جانه ددي پيښو نه وروسته به خلک ستا په باب خامخا پاچا ته دشکایت لپاره ورشي او امکان لري چې راجه ستا سره ښه سلوک ونکړي. هغه ریښتیا ستا ډیر عزت کوي خو دا هیله مي نشته چې هغه دي دا ټولي خبري وزغملای شي.

رام داس ځواب ورکړ:

راجه هر څه زغملی شي ، خو دانشي زغملی چې دخپلی واکمنی له کرمي برخي څخه دتل لپاره بي برخي شي. دهغه باور دي چې زما نه پرته نور څوک دغه خلک نشي رام کولی. که څه هم په دي خلکو کي نور دبغاوت جذبه نه ده پاتي شوي بیا هم دتیرو جګړو ناکامیو دهغه په زړه ډیري ژوري اغیزي پریښي دي.

دي په زړه کي تراوسه له هغو برهمنانو نه کرکه کوي چې دي یي دسکدیو پر خلاف راپارولي ؤ.

لومړي زما لورینه له هغو خلکو سره دڅه مصلحتونو په خاطر وه خو اوس ورسره خواخوږي زه خپل دين او مذهب بولم. زما لورینه ددوی لپاره یوه

رام داس مادهو ته وکتل او ویې ویل:

مادهو! زه ستا په باب ډیر نا امیده شوی یم.

په رنګینو خوبونو زړه خوشالوونکی انسان نه دځان لپاره څه کولی شي او نه نورو ته، تورلنه دغلطو قوانینو بدلولو ته په زاریو او غوړه مالی نشي تیاریدای. دادنیا یوې واټ دی، چې دمختلفو قومونو کاروانونه پرې تیر شویدي او نور به هم پرې تیر شي، په دغه واټ کې هر قوم ګام پر ګام له ویروونکیو کندو، هیبتناکو تیارو او خطرناکو توپانونو سره مخ کیږي.

پردې واټ دتیریدونکی هر کاروان دا هیله ده چې تر نورو وروسته پاتې نشي، خو تاریخ موږ ته دا را ښیي چې تقدیر دبرې تاج یوازې دهغو پرسر ږدي چې اراده یې ددغو کندو په لیدو نه کمزوري کیږي او په ډیره میړانه دتیارو او توپانونو سره ډغرې وهي. کوم قومونه چې دغه کندې ویني او ښنې یې ولړزیږي او په تیارو او توپانونو کې وویریږي او پاتې شي، دتقدیر لاس ددوی دمرستې لپاره نه راوړاندې کیږي. ګړندیو کاروانونو هم دوی تر لاس ورسره ونه نیول او دملګ تیا هڅه یې ونکړه بلکې خپل بوج یې هم پر هغوی ورواچاوه، هغوی ولویدل او دشانه چې نوري قافلې راتلې دهغو تر پښو لاندې او همغسې پاتې شول.

دتاریخ په پاڼو کې یوازې دځو پرمختللو اولسونو داستانونه لیکلي دي، خو تر ننه په تیارو کې پاتې او په کندو کې لویدلیو او مړو شویو

دریږي.

په حوصله ماتوونکیو تیاروکې دخپل ایمان او عمل دیوې بلې ګرځوي.

په نړۍ کې بري او سرلوړي ددوی پښې ښکلوي.

دغه لوی واټ چیرته له سپیرو دښتو او چیرته له سمسورو او شنو باغونو څخه تیریږي.

څوک چې د دښتو په ننداره ستومانه شوي او په سمسورو باغونو کې یې ددمې جوړولو لپاره اړولې دي هغوی له څو ارګمیو وروسته خوب وړی او بیا هغوی چې له دوی نه ډیر وروسته وو وړاندې تري ولاړل.

دتلو پر وخت یې هغوی ورسره راوینې نه کړل بلکې دغلامۍ په زنځیرونو کې یې وتړل، چې بیا ددوی دغه هیله چې دوی تل باید زموږ غلامان وي دمحکومانو لپاره قانون شو.

په کومو خلکو کې چې تاسو دژوند څو کلونه تیر کړل هغوی نوي غلامان شوي دي. په دوی کې تر اوسه پورې لږ څه دآزادۍ جذبه ژوندۍ پاتې ده، تاسو هغه تیټ ذاتي نه پیژنئ چې له کلونو راسې په غلامۍ کې پراته دي.

دوی دځواکمنو دمتروکې اشاره دخدای قانون ګڼي.

که ته هغوی ته ورشې او ورته ووایې چې ستاسو او ستاسو دلوړ ذاتو بادارانو تر منځ توپیر نشته نو هک پک به درته وګوري. که ته هغوی ته ووایې چې خپلواکي ستاسو فطري حق دی نو تا به لیونی وګڼي.

که ته ورته ووایې چې دخدای په وړاندې لوړ ذاتي او تیټ ذاتي یوشان دي

اعلان کړي.

چې کله په کوم قوم کې دڅان کم ګڼلو احساس د مذهب تر حده ورسیږي دهغوی بیا لاری ته برابرول ډیره ګرانه شي.

بیا هم زه نه غواړم چې تا مایوس کړم.

تاریخ راښیي چې ځینې قومونه دعروج له لوړو څوکو نه دزوال او ځوړ تیا تیتو کندوته لویدلي دي، او ځینې بیا دذلت له ډیرو ژورو کندو نه دعروج او لوړتیا وروستیو څوکو ته ختلي دي.

خو په یاد لره چې تاسو دهغوی له ډلي نه یاست چې لویدلي قومونه راپورته کوي او کندي پخپلو لاشونو او مړیو ډکوي او له ځواکمنو څخه دخپل حق داخستلو لپاره خپل تتر سپر کولي شي.

له لوړ ذاتو سره ستاسو جګړه ددي لپاره نه ده چې هغوی ستاسو ټول حقوق درنه اخیستي دي.

نه، تاسو له خپلو ځواکمنو بادارانو څخه یوازې څه آسانتیاوې غواړئ، هغه دا چې دوی دې تاسو ته دخپلو درمسالو دروازې پرانیزي، تاسو دې پریږدي چې ددوی له څاګانو څخه اوبه وڅښئ. خپلو ښارونو ته مو ورپریږدي او ددوی دبوتانو عبادت ته دې تاسو پریږدي.

ستاسو مثال دهغه چا دی چې کور ته یې غله ورشي او ددوی لاسونه او پښې کلک په زنځیرونو وتړي او په یوه تنګه او تیاره کوټه کې یې واچوي. دوی بیا دغلو څخه وغواړي بس همدومره ورته ووایي چې دغه زنځیرونه

کله چې تاسو زموږ په پراخو کوټو کې کینئ او سندرې وایئ نو زموږ هم همداسې زړه غواړي ځکه خو موږ ته هم د کومې شلولو اجازه راکړئ. دوی یوازې د څو ټنګو سوال کوي او دایې هیر کړی دی چې دغه ټولې خزانې د دوی وې، چې اوس څه تري ترلاسه کړي.

دا ځانته یو لوی انعام ګڼي او چې څه شی نشي ترلاسه کولی دهغو په باب ګومان کوي چې دایې حق نه ؤ.

غلامي، بې وسي او مجبوري یې مذهب او دین شي. او ځواکمن لوټماران انسان نه دیوتا ورته ښکاري.

فرض کړئ چې ټولنه تاسو ته دخپلو درمسالونو دروازې پرانیزي، تاسو ته اجازه درکړي چې د دوی له ځاګانو او به وڅښئ، ښارونو ته یې ورشئ او دبوتانو عبادت یې وکړئ. نو آیا ستاسو مثال به دهغه سړي په څیر نه وي چې کور یې چا تري نیولی وي بیا هغه په تیاره کوټه کې یو چراغ ورته مخې ته کیږدي او یا یوه کړکۍ ورته پرانیزي؟

آیا ددې آسانتیاؤ له ترلاسه کولو وروسته دټولنې له نورو قومونو سره دسیالۍ او برابرۍ دعوه کولی شئ؟

هیڅکله هم نه! دوه انسان که په یوه ښار کې اوسي، له یوه کوهي او به وڅښي او دیوه بوت نمانځنه وکړي هم بادار او غلام کیدای شي.

په دې نړۍ کې به دزورور لاس تل پر کمزورو بر وي.

کمزوري که له زورور سره یو ځای کښیني هم له هغه سره دبرابرۍ دعوه

مادهوا درالویدلی اولس راپاځول ډیر ګران کار دی.

ستا پلار یو زړور سړی ؤ دهغه ارادې ډیرې اوچتې وې.

او زه پوهیدم چې تقدیر هغه دلویدلی قوم دراپورته کولو لپاره پیدا کړی دی او دی به په دې هیواد کې یو لوی انقلاب راولي، خو هغه دپیښو په سمندر کې له یو ځل غوټې وهلو وروسته دتل لپاره ځنډی ته ووت. دی ددې خلکو دراپورته کولو لپاره راغلی ؤ خو پخپله ویده شو، بیا هم دهغه په زړه کې داخلاص او صداقت تکانونه وو.

هغه ظلم وزغملو خو دظلم ملاتړ یې ونه کړ.

له مظلومانو سره یې مینه وکړه خو دده مینې دې دمظلومانو دحق ترلاسه کولو لپاره تر سپر کولو ته تیار نه کړ.

که په کنول خور بده نه لګیږي نو ویه وایم چې دهغه دذهنی انقلاب سبب دا وه چې اوس ستا وروستي هدف موهنی ده.

ته تر دې زیات ځه نه غواړې، ته هغه ځای ته ځې چې آزاد خلک اوسیږي، هلته به ته له موهنی سره وې چې دښارونو او درمسالونو یاد به دې نه ځوروي.

دا ټول به هیر کړې، د بوتانو جوړولو اړتیا به هم نه وینې.

خو خپل زړه ته دا دوکه مه ورکوه چې ته خپلواک یې او خپلواک به اوسې، ته به هم هغو خلکو ته ورشې او ورسره ویده به شې او ویده کیدونکې تر ډیره وخته په امن کې نشي ویده کیدای، په دې دره کې به بیا

او دی د موهنی لپاره دژوند دهر ډول خوښیو قربانولو ته تیار ؤ. خو دایی نشوای منلی چی ساحل ته دخپلی کښتی له رسولو وروسته به دگرداب په منځ کی دراښکیلو خلکو چیغی او فریادونه نه اوری او غوږونه به پری کاڼه کړی. ده دهغه ستومانه مسافر غوندی غوښتل چی تر لږ ځنډه په دښته کی دیوی چینی پر غاړه دونی سیوری ته دمه جوړه کړی او بیا دلاروارکو لپاره دلارښوونی تدبیرونه سنجوی.

دغه یخه او خوږه چینه موهنی وه چی ده یی په لټون پسی ډیر کسان په دښتو کی سرگردانه ولیدل چی له تندی یی ساه ورکړه..

ده ددی پر ځای چی موهنی دیوی نیشه یی دوا په څیر وگنی او پری ویده شی دخپل ژوند داوچتو ارمانونو لپاره یی دلاری توښه بلله. ده دموهنی په ملگرتیا له توپان سره دغری وهلی شوای. موهنی ورته هغه چراغ ؤ چی دهدف په لور دلاری کندی او ژوری یی پری لیدای شوای.

بیا هم ده درام داس دخبرو نه وروسته په زړه کی یوه نوی اندیښنه او کشمکش احساساوه.

ده په زړه کی په وار وار داپوښتنی کولی چی آیا دی لویدلیو انسانانو ته یوازی دیوه داسی لارښود ضرورت دی؟ آیا دنړی دټولو مسایلو حل یوازی په زور او ځواک کی دی؟

آیا کمزوری چی ځواکمن شی په عام ډول ظالمان نه تری جوړیږی؟ آیا دژوند پرواړ وړاندی تلونکو ځواکمنو انسانانو داحق دی چی پر کمزوریو انسانانو خپل بوج ور واچوی، هغوی دذلت او غلامی کندو ته ورټیل وهی،

بیا یې سر راپورته کړ او رام داس ته یې وکتل ویې ویل:

تا زه سم نه یم پیژندلی ، زه بې همته نه یم ، زه دا هم نشم کولی چې آرام ژوند وکړم او دنورو له حاله بې پروا شم ، خو دلویدلیو انسانانو دراپورته کولو په اړه زما نظر ستا سره ډیر توپیر لري. زه دغواکمنو دا حق نه منم چې کمزوري تر پښو لاندې کړي ، زه په نړۍ کې دزور قانون نه بلکې دعدالت او برابرۍ قانون غواړم.

دغواک قانون فطرتاً انسانانو نه ځناور جوړوي او پر نړۍ دیوه داسې جنګ تخم کري چې هیڅکله پای نه لري. ظالم چې کمزوری شي مظلوم شي او مظلوم چې ځواکمن شي ظالم به ترې جوړیږي .

له غلام نه به بادار او له بادار نه غلام جوړیږي. په دې نړۍ کې نه دکمزوري غلامي غواړم نه دځواکمنو پاچاهي او واکمني. زه دځواک لپاره نه بلکې دعدالت لپاره غواړم چې مبارزه وکړم. او په دنیا کې دعدالت قانون هغه کیدای شي چې دغلام او بادار له وجود څخه منکر وي. چې دلوړ ذاتي او ټیټ ذاتي تر منځ توپیر پکې نه وي او انسان دبل انسان پر درناوي او احترام مجبور کړي او دهغه ویره زوروړ دکمزوریو پر کورونو له ورختلو نه ایسار کړي.

رام داس وویل:

زویه! دا یوازې ستا آرزو ګانې او خیالونه دي.

ددنیا په هیڅ هیواد کې هم داسې قانون نشته. او که چا داسې قانون راوړی هم دی نو دنړۍ ټول باغي انسانان به یې په وړاندې سره یو شي. په دنیا کې دلوړ او ټیټ په ...

ماده ځواب ورکړ:

په نړۍ کې ديو شي د نشتوالي مطلب دا نه دی چې اړتيا يې هم نشته په غارونو کې او سيدونکيو انسانانو د ځنګړو جوړولو اړتيا احساس کړه، ځو ځنګړي د توند باد او باران په وړاندې نشي ټينګيدای نو دوی د ختو او ډبرو د کورونو جوړولو ته اړ شول. امن د نړۍ تر ټولو ستره اړتيا ده. د ځواک تر قانون لاندې نه پای ته رسيدونکې جګړې به انسان د داسې قانون هڅو ته اړ کړي. زه دا منم چې د داسې قانون اړتيا به مظلوم انسانان زيات احساسوي. او د کمزوريو پر هڅو کو د خپلو مانيو او محلونو جوړوونکي به يې مقابلې ته ودريږي. خو د خلوص او سپينه به بالآخره د جبر زنځيرونه وشلوي او هغه به د داسې قانون بري وي.

د داسې قانون علمبردار به ديوه داسې ديوتا نظريه وړاندې کړي چې ټولو ته په يوه سترګه ګوري.

هغه به داسې عبادتځای جوړ کړي چې دروازې به يې د تيټ ذاتي او لوړ ذاتي دواړو لپاره يو ډول پرانيستې وي. هغه ورځ لرې نه ده چې انسانان په قوم او ذات نه بلکې په کړو وړو وپيژندل شي.

د ځواک متروکه د نيکي د توري په مقابل کې ښکته شي.

د نړۍ د غه جګړه به د ظلم پر خلاف د نيکي جګړه وي. او که زه ژوندی وم نو په دې جګړه کې به د يوه سرتيري او سپاهي په توګه شريک وم. بيا به نړۍ وګوري چې زه بې همته او ډارن نه يم.

رام داس ووېل:

مادهو په غمجنه لهجه ځواب ورکړ:

دچا په لاس کې چې دشپې لخوا په مزله کې مشال نه وي، هغه ددې پرته بله هیڅ چاره نه لري چې باید دسهار راتلو ته انتظار وکړي، زه به هم انتظار کوم.

رام داس وموسکل ویې ویل:

تر څو سهار شوی نه وي ښارونو او درمسالونو ته مخه مه کوی. تا په تیارو کې ډیر څه له لاسه ورکړي دي.



کنول وویل:

زه به یې اوس ځار نه کوم.

کنول ته دلته بدهو ورپه یاد شو او موسکایې ناڅاپه پر شونډو ورکه شوه.

رام داس رندهیر ته وکتل ویې ویل:

ښه نور په مانا وخته کیږي. زویه! کنول خور ته خبله مور وګڼه، شانتا ته څه تکلیف پیښ نه شي.

مادهو خپل مشر ورور وګڼه. او مادهو تا ته خو ددې وینا ضرورت نشته چې موهنی ته څه تکلیف ونه رسیږي.

کنول خورې! ددوی په واده زمور د ټولنې یو مذهبي مشر هم خوښ نه دی. زه دا نه غواړم هم چې هغوی دې پرې خبر شي. تر پنځلس ورځو پورې رندهیر ما ته راولیږه. زه به ورسره راشم او موهنی ستا پلار جان به هم راسره راولم.

د ښـسنولو په وخت کی رام داس خپل آس کنول ته ورکاوه او غوښتل یی پلی ولاړ شی، خو کنول درام داس غم کاوه او پر خره سپریدل یی غوره وبلل.

هغه مجبور شو چی خپل آس بیر ته واخلی.

**(٥)**

دوریځو کاروانونه دختیځو دنگو غرونو څخه دلویدیځو پراخو میدانونو په لور خوځیدل. رام داس چی دغونډی څوکی ته ورسید آس یی ودراوه او مخ یی واړاوه لاندی یی وکتل.

کنول او دهغه دسفر نور ملگری له دری څخه تیر شوی وو او او س په یوه گرځندی کی پر غره پورته ختل.

رام داس تر ډیره ځنډه په هغوی پسی کتل. چی دغه کاروان دغونډی شاته واوښت او پناه شو هغه د آس جلب پرښنبود او ورو ورو ښکته روان شو.

دخیالونو چپاو رام داس له خپل شاو خوا څخه ناخبره کړی ؤ.

ده په خیال کی دکوم لوړ غره په لمن کی دښر شرو تر څنگ دگڼو ونو تر سیوری لاندی یوه جونگړه لیده چی زوی او نږوریی پکی اوسی. دی دهغوی دواړو په مینځ کی ناست ؤ. شانتا یو وړوکی ماشوم په غیږ کی نیولی ؤ چی بیا یی ده ته په غیږ کی ورکړ، وی‌یی ویل:

بابا ته دی ورشه! ته ډیر شوخ یی.

او هغه وړوکی ماشوم په خپلو وړوکو لاسونو دده دبریتونو درانیولو هڅه کوله.

